


# د پښتو ادبياتو تاريخ

## (لرغوني او منځنۍ دورې)

**لومړی ټوک**

**پنځم چاپ**

ليکوال:

سرمحقق زلمی هېوادمل

# د پښتو ادبیاتو تاریخ

## لومړی ټوک

(په ۱۳۷۰/۱۹۹۱م کال د افغانستان د پوهنځیو د
لسمو او یوولسمو ټولګیو لپاره لیکل شوی دی)



لیکوال
سرمحقق زلمی هیوادمل

۱۳۷۹

بسم الله الرحمن الرحيم




## کتاب پېژندنه:


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | : د پښتو ادبیاتو تاریخ |
| لیکوال | : سر محقق زلمی هېوادمل |
| خپروونکی | : دانش خپرندویه ټولنه |
| کمپوز چارې | : وحیدالله «وردګ» |
| لومړی چاپ | : ۱۳۷۹ لمریز / ۲۰۰۰ م |
| دریم چاپ | : ۱۳۹۳ لمریز / ۲۰۱۴ م |
| د چاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه |

## چاپځی:

د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه

WWW.danishpree.com

Tel:2564513

# د خپرندوی یادښت

څه موده وړاندې د هېواد نومیالي څېړونکي ښاغلي استاد هېوادمل صاحب دانش خپرندویې ټولنې ته له یوې ګېډۍ کاغذونو سره راننووت. موږ ټول یې په لیدو ډېر خوښ شو او د دوی په ګډون مو رواني خبرې اترې او مرکه لا پسې توده او زړه راکښونکې شوه. په دغه لړ کې هېوادمل صاحب د خپلې پخوانۍ ژمنې له مخې زېرې راباندې وکړ چې "د پښتو ادبیاتو تاریخ" د لومړي ټوک لیکلې پاڼې یې له ځان سره راوړې دي.

خدای شته، موږ ډېر خوښ شو چې د داسې یوه نومیالي پوه د کار و زیار یوه بله ارزښتمنه پایله چاپ ته چمتو ده چې زموږ د فرهنګي پانګې په خوندیینه کې به د یوه رانه غمې په توګه وځلېږي او زموږ د ادبیاتو اوچته مانۍ به پرې رڼه، روښانه شي.

استاد هېواد مل، تر ټولو لومړی موږ ته دا ویاړ راوباښه چې ( دانش خپرندویه ټولنه ) به یې چاپچارې سرته رسوي. ټولنې هم چې ـیده د استاد اوږد مهالیو، پوهنیزو، اکاډمیکو هاندو هڅو ته په ـې پایه درناوي، د همداسې یوې سترې مانیزې پېرزوینې اټکل کاوه: په ډېره مینه یې د کتاب د چاپېدو هر اړخیزه سپارښتنه وکړه چې دا دی نن چمتو ستاسې مخ ته ایښی دی.

موږ د دغه ستر و ارزښتمن کار د خورا ښې بشپړېدا له امله په خپل وار درانه استاد هېواد مل صاحب ته د زړه له کومې مبارکي وایو؛ له لوی خدای (ج) نه د لاکټورو هڅو، بریوو او بریاوو هیله ورته کوو او درنو لوستونکیو ته یې د لوربینې له مخې د ژورې او ځیرلې لوستنې بلنه ورکوو.

*په ادبي او فرهنګي مینه*

*دانش خپرندویه ټولنه*

# اهدا

پوهاند دوکتور حبیب الله تږي او استاد سعد الدین شپون ته چې (د ادبي تاریخ په باب د دوارو استادانو لیکنو د ادبیاتو تاریخ په مفهوم پوه کړی یم) او استاد پیر محمد وردګ ته چې: دا کتاب یې د کابل په سختو جنګونو کې له ورکې ژغورلی دی.

# فهرست

گڼه٠عنوان صفحه



"۱"

"۱۲"



"۱"



"۲"



"۳"



"۴"



"۵"



"۶"



"۷"

"۸"



"۹"



"۱۰"

"۱۱"



"۱۲"



"۱۳"



"۱۵"

# یادښت

د ۱۳۷۸ هـ ش کال د میزان د میاشتې په لومړۍ اوونۍ کې د ارواښاد استاد روهي لیکلی د پښتو ادبیاتو تاریخ له چاپه راووت. پردې تاریخ لیکل شوي دي. دویم ټوک. یوه ورځ د ښاغلي دانش پر کتاب پلورنځي پېښ شوم، ښاغلی صمیم صاحب هم هلته ناست و او د استاد روهي د لیکلي ادبي تاریخ یوه نسخه یې په لاس کې وه.

له ما یې پوښتنه وکړه، چې پردې کتاب یې لیکلی دویم ټوک، نو لومړی ټوک یې چېرې دی؟ ما ځواب ورکړ: لومړی ټوک یې ما د لسمو او یوولسمو ټولګیو لپاره لیکلی دی. ده بیا پوښتنه وکړه: نو دا اول ټوک اوس شته او که نه؟ ما بیا ځواب ورکړ: په کابل کې دی.

استاد صمیم وویل پکار وو چې دواړه ټوکه یوځای چاپ شوي وای، که نور نه وي زموږ د ادبي تاریخ دا درسي لړۍ خو به تکمیله شوې وه.

ښاغلي دانش هم تمایل وښود، چې دا جلد هم باید چاپ شي. د میزان په دویمه اوونۍ کې زه کابل ته لاړم. کابل ته د رسېدو په سبا یې په استاد پیرمحمد وردګ پسې ولاړم او د ادبي تاریخ پوښتنه مې ځنې وکړه

هغه په ډېره مهربانۍ راته وویل: دا کتاب مې لکه سوی لاس ساتلی دی. په دومره جنګونو او کوچ کشیو کې مې له ځانه سره هرچېرې ګرځاوه استاد پیرمحمد وردګ په ډېره مننه د پښتو ادبیاتو تاریخ د لومړي ټوک مسوده او ټایپي پاڼې راواخیستل چې ومومیدل نه مسوده بشپړه وه او نه ټایپي پاڼې، خو له نېکه مرغه

چې له ټايپي پاڼو او مسودو دواړو څخه يوه بشپړه نسخه جوړه شوه او په ډېره مينه يې ماته راکړه او ما له خانه سره پېښور ته راوړه.

بيا مې ښاغلي اسدالله صافي ته وويل: ما د لومړي ټوک پاڼې له خانه سره راوړې دي. اول ستا حق دی، که ته يې په خپل شوق چاپوې، نو دا پاڼې ستا له سره جار دي او که دې طبع ورته نه وي، د تحميل خبره نشته.

ښاغلي اسدالله صافي په ډېره مينه د دغه اثر چاپ ومانه او ما بيا له سره وکوت.

په بيا خلي کتنه کې مې څه ورزيات نه کړل او دا هم په دې دليل چې دا کتاب د افغانستان د ښوونځيو د لسمو او يوولسمو ټولګيو لپاره ليکل شوی دی، هغه وخت چې ما دا کتاب کيښ، نو د شاګردانو سويې او اړتياوو ته مې پام و. اوس چې مې بيا وکوت، دا راته ښکاره شوه، چې نه يوازې د شاګردانو لپاره، بلکه که زموږ خوان څېړونکي او د پښتو ادبي تاريخ عام لوستونکي يې هم ولولي، د دوی لپاره هم بې ګټې نه دی.

د دې کتاب د ليکلو ټول جريان ما د استاد روهي ليکلي د پښتو ادبياتو تاريخ په مقدمه کې ليکلی دی، زه همغه خبرې بيا نه تکراروم يوازې دومره وايم، چې د پښتو د ادبي تاريخ دا ټوک، ما د ښوونې او روزنې وزارت په غوښتنه په ۱۹۹۱/۱۳۷۰م کال ليکلی و. د پښتو د ادبي تاريخ د لومړي او دويمې دورې يو اجمال لوستونکي ته مخې ته ږدي. ډېر ژور بحثونه او تحليلونه نه لري. بايد ووايو چې دا ډول درسي ادبي تاريخونه په فارسي او اردو ژبو کې هم ليکل شوي دي، چې له شاګردانو سربېره عام لوستونکي او حتی څېړونکي ترې ګټه اخلي.

که لوی رب ته منظوره وه، په بشپړو ادبي تاريخونو کې به د ادبي پديدو ايجاد او ودې شرايط له نورو پېښو او د آثارو له ژور تحليق سره يوځای وړاندې کېږي.

زه د دې يادښت په پای کې يوځل بيا له ښاغلي پيرمحمد وردګ، استاد محمد آصف صميم او ګران اسدالله صافي نه د زړه له کومي منڼه کوم چې: ښاغلي وردګ دا کتاب ساتلی و، استاد صميم يې د چاپ سپارښت وکړ او ښاغلي اسدالله صافي يې چاپول ومنل او ښاغلي حبيب الله رفيع يې د پروف زيار وګاله، د څلورو واړو دې کور ودان وي.

زلمی هېوادمل

د ۱۹۹۹م کال د اکتوبر ۲۱ - پېښور

بسم الله الرحمن الرحيم

# سریزه

د پښتو ادبیاتو د تاریخ دا ټوک چې تاسې لولئ، د پښتو د ادبي تاریخ د لومړۍ ادبي دورې په باب یو لړ عمومي معلومات وړاندې کوي.

په دې ادبي تاریخ کې د شاګردانو تعلیمي سویې او د اثر د درسي ارزښتونو په پام کې نیولو سره زیات ایستل شوی دی، چې د معاصرې ادبي تاریخ لیکنې له روښونو سره سم لاندې اصول پکې مراعات شي:

(۱) په دمخنیو ادبي تاریخونو کې په یوه ژبه کې لیکل شوي هر ډول آثار په ادبي تاریخ کې مطالعه کېدل، حال دا چې اوس د یوې ژبې هر ډول آثار په ادبي تاریخ کې نه مطالعه کېږي. یوازې هغه آثار (که نظم وي یا نثر) په دې تاریخ کې راځي، چې ادبي- هنري ارزښتونه ولري.

د پښتو د ادبي تاریخ په لومړۍ دورې پورې مربوط آثار. خینې یې ادبي ارزښتونه یا لږ لري، او یا هم خینې داسې آثار دي، چې په ادبي تاریخ کې یې مطالعه کول ډېر مورد نه لري. خو دا چې موږ په لومړۍ ادبي دوره کې منظم آثار یا نه لرو او یا یې ډېر نه لرو. څه چې وو. هغه

ضایع شوي. او تر موږه نه دي رسېدلي، نو څکه مو په دې دورې پورې مربوط ګرده ترلاسه شوي آثار په دې تاریخ کې لړ لړ ښوولي دي

(۲) د دې حاضر ادبي تاریخ یو خصوصیت دا دی. چې په پیل کې یې تر هر څه دمخه د پښتو شفاهي ادبیات هم د پیلامې په ډول معرفي شوي دي، او دا کار مو په دې دلیل کړی دی، چې د یوې ژبې نالیکلي هنري آثار هم په ادبیاتو کې شاملېږي.

(۳) په دې ادبي تاریخ کې د راغلو اشعارو ژبني او ګرامري تحلیلونه نه دي وړاندې شوي، دا څکه چې دا ډول څېړنې د ادبي تاریخ له موضوعاتو سره ډېره اړه نه لري، او بله دا چې هضمول یې د شاګردانو لپاره ګران دي.

(۴) ادبي تاریخ د یوه ملت له ملي او سیاسي تاریخ سره یوځه اړه لري او ځینې مطالب له دې تاریخ څخه اخلي. په دې تاریخ کې هم د ځینو ادبي پېښو او د ادبیاتو د رشد د جریاناتو د څېړنې په منظور له عمومي تاریخ څخه استفاده شوې ده. خو د ډېرو اوږدو تاریخي تفسیرونو او تحلیلونو په راوړو سره مو دا اثر له اصلي مجری څخه لیرې کړی نه دی، بلکه کوشش شوی دی، چې په ځینو مواردو کې له تاریخي پېښو سره په ارتباط کې اصلي مرکزي موضوع ته توجه وشي.

(۵) زموږ په پخوانیو ادبي تاریخونو کې په تاریخ کې راغلي موضوعات او عناوین د شاعرانو نومونو په اساس اوډل شوي دي؛ مانا دا چې د هر شاعر تر نامه لاندې د شاعر پر احوالو او آثارو تر بحث وروسته د هغه د کلام نمونې راغلې دي، او دا روش تر ډېره حده د شاعرانو د تذکرو لیکلو ته ورته دی، او په شرقي فرهنګ کې دغسې په سلګونو تذکرې لیکل شوې دي. چې د ادبي تاریخ لپاره د یوې اساسي او عمده منبع کار ورکوي، خو د ادبي تاریخ نوم ورته نه شو ورکولای. په دې ادبي تاریخ کې کوشش شوی دی، چې د ادبي آثارو د ایجاد او ودې شرایطو او هم د ادبي پدیدو شکلي او موضوعي خانګړنو ته په پاملرنه د پښتو د ادبي تاریخ لومړۍ دورې ته مربوط موارد په خوارلسو عمده عناوینو وویشل شي او تر هر عنوان لاندې په هماغې ټاکلې موضوع پورې مربوط آثار او د دې آثارو پر هستوونکو خبرې وشي، له ځینو خاصو مواردو پرته د اختصار او د شاګردانو سویې ته په پاملرنه د شاعرانو د کلام نمونې لږ لږ اخیستل شوې دي او اوږدې او ډېرې نمونې نه دي راوړل شوې.

(٦) زموږ په هېواد کې چې ځینې ادبي تاریخونه لیکل شوي دي، د زیاترو په لیکلو کې د پښتو ژبې په تاریخ او له لرغونو آریایي ژبو سره د دې ژبې پر اړیکو او نورو ژورو ژبنیو مسایلو هم بحثونه شوي دي. دا ډول بحثونه له ادبي تاریخ سره څه اړه نه لري، نو ځکه دغې ګران ژبنې بحثونه نه په یوه درسي ادبي تاریخ کې مورد لري او نه په بشپړو او سترو ادبي تاریخونو کې د بحث وړ ګرځي.

په همدې اساس د دې ادبي تاریخ پیل له ژبنیو څېړنو څخه نه دی شوی، بلکه په مستقیم ډول موضوع له پښتو ادبیاتو څخه پیل شوې ده او تاسې به ددې تاریخ په پیل کې همدا بحث ولولئ، او دا به درته ښکاره شي، چې په پښتو ادبیاتو کې څه ډول آثار مطالعه کېږي. خو د دې لپاره چې ګران شاګردان په دې پوه شي، چې پښتو نو څه ډول ژبه ده؟ د همدې اړتیا له مخې زه د دغې مقدمې په پای کې د دې ژبې د اصل او منشاء په باب څو لنډې خبرې وړاندې کوم.

پښتو یوه آریایي ژبه ده، چې د هندو اروپایي ژبو د سترې کورنۍ په هندو آریاني څانګه کې راځي او په هندو آریاني څانګه کې بیا په آریاني ګروپ کې شاملېږي او د اریاني ګروپ په شمال ختیځ ښاخ پورې اړه لري له پامیري، پارسي، بلوڅي، کردي او اسیتي ژبو سره روابط لري او په پامیري ژبو کې یې له شغني او هم ځینو نورو پامیري ژبو سره او هم په قفقازي ژبو کې له ایستي سره یې اړیکې ډېرې نژدې دي.

دا ژبه ډېرې لهجې لري، چې تر ټولو پخوانۍ او زړه اوس ژوندۍ لهجه یې ونیڅي نومېږي، چې د بلوچستان په سیمو کې ویونکي لري.

دا ادبي تاریخ د لسمو او یوولسمو ټولګیو د شاګردانو لپاره تهیه شوی دی، هیله کېږي چې ګران شاګردان د دې تاریخ په لوستلو سره د پښتو ادبیاتو د تاریخ د لومړۍ دورې د ادبي آثارو او د دې آثارو د شاعرانو، لیکوالو او هم د دې آثارو د ایجاد د مراحلو په باب څه لومړني معلومات ترلاسه کړي.

ومن الله التوفیق

# پښتو ادبيات

د لدبياتو د اوسنيو تعبيرونو له مخې د يوې ژبې ټول ليکلي (تحريري) او نا ليکلي (شفاهي) منظوم او منثور هنري آثار ادبيات ګڼل کېږي

هر ډول ليکنې اوس څوک په ادبياتو کې نه شمېري. يوازې هغه آثار د ادبياتو تر عنوان لاندې د مطالعې ځاى لري، چې هنري ارزښت ولري.

د مثال په ډول، مورږ هر منثور اثر چې د علومو او فنونو په بېلابېلو څانګو کې ليکل شوى وي، او يا هر نظم او منظوم اثر، چې د تاريخ، جغرافيا، طب او نورو علومو اوفنونو تشريح ته وقف وي، په ادبياتو کې نه راولو، بلکه هغه آثار هنري، ادبي بولو، چې له تخيله رازېږېدلي او د ژوند واقعيتونه په هنري ډول منعکس کړي؛ پر لوستونکي او اورېدونکي خپل خاص ظريفانه او ښکلى هنري اثر ولري او د هغه هنري ذوق تسکين کړي.

دغه ادبي، هنري اثر بايد په داسې يو ژبني چوکاټ کې بيان شوى وي، چې هم د ټولنيز ژوند هينداره وي او هم په لوستونکي، اوريدونکي کې يو عاطفي احساس پيدا کړي اوښکلاييز ارزښت ولري.

د ادبياتو ددغه تعبير لوړې ساده او ابتدايي تشريح ته په پاملرنه اوس مورږ ګورو چې پښتو ژبه دغسې هنري. ادبي اثار لري او که يه؟

د دې پوښتنې ځواب مثبت دى او مورږ چې د خپلې ژبې (پښتو) ادبي ذخيرې وپلټو، نو وينو چې له پخوا زمانې نه ترننه پورې د دې ژبې ويونکو هنري، ادبي اثار ايجاد کړي دي. چې هم يې شفاهي (ناليکلي) او هم يې تحريري (ليکلي) نمونې موجودې دي.

په همدې اساس کله چې موږ پښتو ادبيات وايو، نو موږ مجبوريو، چې دا ادبيات لومړی په نا ليکلو او ليکلو ادبياتو سره وويشو

## ۱). پښتو شفاهي (ناليکلي) ادبيات:

دا به مبالغه نه وي او نه به کومه تېره زياته خبره وي،که وواېو چې د سيمې په ژبو کې پښتو د شفاهي ادبياتو د سرشارو چينو د لرلو له امله په لومړي کتار کې ولاړه ژبه ده.

دا چې د پښتو د شفاهي ادبياتو ذخاير نسبت نورو ژبو ته زيات دی، ددې خبرې عمده علت دا دی. چې په پښتنو کې سواد له پخوا نه تر اوسه لا سم نه دی عام شوی او زموږ دخلکو يوه زياته فيصدي د خپلو خاصو سياسي، اجتماعي، اقتصادي، فرهنګي او جغرافي عواملو له امله له سواده محروم پاتې دي. په دغسې ټولنو کې چې سواد نه وي عام. د ليکلو ادبياتو پر ځای د شفاهي ادبياتو د ايجاد زمينې ډېرزياتې موجودې وي.

همدا علت دی، چې د پښتونخوا، افغانستان، بلوچستان، سند، پنجاب او کشمير په زياترو پښتني سيمو کې اوس هم د شفاهي ادبياتو بېلابېلې نمونې ايجادېږي او د دغو سيمو په ښارونو کې د پښتو د شفاهي ادبياتو دايجاد زمينې محدودې دي او حتی له منځه تللې دي. په پښتو کې د شفاهي ادبياتو دغه بېلابيل ډولونه او د دغه ډول ادبياتو زياتوالی سړی په دې باوري کوي، چې زموږ خلکو که سواد نه درلود، خو هنري ذوق او احساس ورسره وو او خپل دغه ذوق او احساس يې ددغو ادبياتو په بېلابېلو کالبونو کې ځاياوه.

زموږ خلکو د پېړيو په اوږدو کې خپل ارمانونه، خپلې خوښۍ، خپل غمونه، خپلې مينې او د خپل اجتماعي ژوند کړه وړه په دغو شفاهي ادبياتو کې بيان کړي دي. دغه ادبيات لکه چې يې له نامه ښکاري، په شفاهي ډول خوله په خوله انتقال شوي او د انتقال په دې پروسه کې يې کليوالي موسيقي هم خپل نقش ادا کړی دی. خو د انتقال دې لړۍ تر يوه وخته دوام کړی دی او د راويانو په له منځه تللو سره دغه وخت په وخت ايجاد شوي شفاهي ادبيات هم له منځه تللي دي او لکه هغه صحرايي ګلان خودرويه راټوکېدلي او بې د باغوان له پالنې له منځه تللي دي.

څنګه چې په هره ټولنه کې شفاهي ادبيات سينه په سينه انتقال مومي، نو ځکه يې لرغوني اشکال تر وروستيو پېړيو پورې نه رارسي. اوس چې موږ د پښتو د شفاهي ادبياتو کومې ثبت شوې نمونې لرو، له څينو استثنايي مواردو پرته په تاريخي لحاظ ډېرې لرغونې نه دي. خو مفکوره او طرز فکر په څينو دغه ډول

سندرو کې لرغونی دی او ورسره یې د ځینو انواعو شکلي جوړښتونه هم له ډېرو لرغونو زمانو روایت کوي او له هغو آریایي سندرو سره نږدېوالی او نښتون لري، چې زرګونه کاله دمخه په دې خاوره کې ایجاد شوې، پالل شوې او روزل شوي دي. *د پښتو د شفاهي سندرو یوه مهمه ځانګړنه دا ده چې په غاړه (لحن) ویلې کېږي.*

د پښتو شفاهي ادبیات بېلابېل ډولونه لري. چې دغه ډولونه ځینې سیمه ییز دي،داپه دې مانا چې په یوه خاصه جغرافي سیمه کې ایجادېږي او په نورو پښتنې سیمو کې چندان باب نه دي، خو ځینې ډولونه یې په ګردو هغو سیمو پورې اړه لري، چې ددغه ډول ادبیاتو، ایجاد، وده، مینه وال او روزونکي لري.

د پښتو د دغو شفاهي ادبیاتو د بېلابېلو ډولونو دثبت او ټولولو لپاره له څه دپاسه سلو کلونو راپدې خوا کار پیل شوی دی او تر ټولو دمخه د پښتو شفاهي ادبیاتو ته غربیان متوجه شوي دي.

انګرېزانو د هند پر نیمه وچه د خپل تسلط په دوران کې د پښتونخوا، بلوچستان او افغانستان له سیمو د پښتو د شفاهي ادبیاتو نمونې راټولې او ثبت کړې دي، چې د غربي پوهانو ددغسې کارونو په لړ کې د جیمز ډارمستټر (۱۸۴۹ – ۱۸۹۴) کار تر ټولو ارزښتمن دی، ده د پښتو دشفاهي ادبیاتو نمونې په خپل مشهور اثر (د پښتونخوا د شعر هار و بهار) کې خوندي کړې او دا کتاب یې په لومړي ځل په ۱۸۸۸ کال په پاریس کې چاپ او خپور کړ.

زموږ په هېواد کې هم د پښتو د شفاهي ادبیاتو د نمونو ثبت ته له شلمې پېړۍ راپدې خوا توجه شوې ده.

په افغاني پوهانو کې ارواښاد غلام محی الدین افغان (۱۳۰۰هـ ش مړ) دا کار تر هر چا دمخه کړی دی او په سراج الاخبار افغانیه کې یې د پښتو متلونو نمونې چاپ کړې دي.

تر ده وروسته په کندهار کې د پښتو ادبي انجمن په جوړېدو سره او بیا په کابل کې د پښتو ټولنې له تاسیس سره سم زموږ خواخوږو ادب دوستانو د پښتو د شفاهي ادبیاتو دغو مرغلرو ته ډېره توجه وکړه او د پښتو د شفاهي ادبیاتو د بېلابېلو ډولو نمونې یې ثبت او خوندي کړې. په دې کسانو کې ارواښادمحمد ګل نوري (۱۳۵۲هـ ش مړ) د لوی حق خاوند دی، ده د پښتو د شفاهي ادبیاتو د ځینو ډولونو ډېرې خوندورې او زیاتې نمونې راټولې کړې دي.

تر نوري وروسته په افغانستان کې د پښتو ژبې حقدار لیکوال او شاعر حبیب الله رفیع، په پښتونخوا کې پروفیسور محمد نواز خان طایر او په بلوچستان کې نومیالي لیکوال او شاعر ولي محمدخان سیال کاکړ نومونه د یادونې او مننې وړ

دي، دوی چې د پښتود شفاهي ادبیاتو د ټولولو او څېړنو په لاره کې کوم کارونه کړي دي، په وروستي بهیر کې یې د کیفیت او کمیت له نظره لړ ساری مومو د پښتو شفاهي ادبیاتو او پښتني فولکلورتیوریکي او علمي مطالعې په لاره کې د کاندید اکادمیسن محمد صدیق روهي، کاندید اکادمیسن عطایي او سرمحقق دوست شینواري کارونه او نومونه نه شو هیرولای.

زموږ دغو خواخوږو او په راوروسته کې ډېرو نورو خوانانو د پښتو د شفاهي ادبیاتو بېلابېل ډولونه معرفي کړي اونمونې یې ورته له اولس نه راټولې کړې او خوندي کړي دي. اوس ددغو ښاغلو کارونو ته په پاملرنه د پښتو د شفاهي ادبیاتو ډولونه په لاندې ډول ښیو.

## د پښتو شفاهي ادبیاتو ډولونه

د پښتو د شفاهي ادبیاتو په څېړونکو کې ښاغلی حبیب الله رفیع یوازینی سړی دی، چې د پښتو منظوم شفاهي ادبیات یې د خپلو ځینو خصوصیاتو له امله په دوو برخو وېشلي دي:

(۱) عامې سندرې، یعنې هغه سندرې چې ویونکي یې نه دي ښکاره او په ګرد ولس پورې اړه لري، لکه: لنډۍ، سروکی، نارې، لنډکی، د ښادۍ بدلې او نور...

(۲) خاصې سندرې، په دې سندرو کې یې هغه سندرې راوړې دي، چې اکثر د بېسوادو ولسي شاعرانو له خوا جوړېږي او یا جوړې شوې دي، یعنې شاعران یې معلوم کسان دي، لکه: چاربیتې، بدلې، بګتۍ، لوبې، داستان، مقام، کسرونه او نور...

دا لوړ وېش تر ډېره حده پر ځای دی او د پښتو د ولسي ادبیاتو په ډېرو څېړنو کې منل شوی دی. داخاصې سندرې سره له دې چې زیاتره د بېسوادو ولسي شاعرانو له خوا ویلې شوې دي، د خپرېدو او انتقال جریان یې هم کټ مټ هماغسې دی، لکه د پښتو د شفاهي ادبیاتو عامې سندرې او دا خاصې سندرې هم زیاتره لیکلی ډول نه لري او سینه په سینه په شفاهي ډول انتقالیږي.

خو د یادونې وړ ټکی د دې خاصو سندرو په باب دادی، چې دا سندرې په ټولنه کې د مشخصو افرادو له خوا ویل شوې دي، د ځینو دغو سندرو د اشارو او قراینو له مخې یې هم د ویونکي د ژوند مهال او هم د سندرې د ویلو تقریبي زمانه ټاکل کېدای شي او په همدې اساس موږ دغو کسانو اود دوی دا ډول ایجادیاتو ته د پښتو د ادبي تاریخ په خانګړو ادبي دورو اوادبي پړاوونو کې د مطالعې ځای ورکولای شو.

په همدې اساس دا ډول سندرې سره له دې چې ډېره زیاته برخه یې شفاهي ده او ځینې ځانګړتیاوې یې هم له شفاهي عامو سندرو سره یو شی دي، خو بیا هم ګرده هغه خصوصیات چې د پښتو د شفاهي ادبیاتو عامې سندرې یې لري، پر دغو سندرو کټ مټ د تطبیق وړ نه دي. نو موږ کولای شو دغه سندرې د ولسي ادبیاتو تر سرلیک لاندې مطالعه کړو دا ځکه چې د شفاهي ادبیاتو اصطلاح له ځینو ټولو کلي او جزیي خصوصیاتو سره پر دغو خاصو سندرو د تطبیق وړ نه ده

ځکه چې د پښتو د ولسي ادبیاتو دا ډول سندرې له ځینو ویونکو سره ددغه کتاب په بېلابېلو برخو کې مطالعه کېږي، نو ځکه ره بېر دې سندرو بحث دلته ختموم اود پښتو د شفاهي ادبیاتو نور ډولونه درښیم، چې منظومې او منثورې برخې لري باید د پښتو ژبې د بوې ګړنۍ ذخیرې په توګه تېرې شاګردان خپروې په منظومو ادبیاتو کې د دمخه ذکر شوي وېش له مخې باید د پښتو د شفاهي ادبیاتو پر عامو سندرو خبرې وکړو، چې دا سندرې ډېر انواع او هره نوع یې بیا ځانته ډولونه لري.

(۱) **لنډۍ:** د پښتو په شفاهي ادبیاتو کې ډېرې مشهورې سندرې لنډۍ دي، چې ګرده پښتانه یې پېژني او اشنایي ورسره لري

لنډۍ یوه دوه مسریزه منظومه ده، چې لومړۍ مسرۍ یې لنډه نه سیلابه (هجا) او دوهمه یې اوږده دیارلس سیلابه ده او په هرځلورم سیلاب باندې یې څخ هم راځي د لنډیو یوه عمده ځانګړنه داده، چې په دغه لنډ شکلي چوکاټ کې بشپړ مفاهیم ځایولای او بیانولای شي.

دې شفاهي سندرو ته په ځینو پښتني سیمو کې ټیکۍ هم ویل کېږي، خو زیات خلک یې لنډۍ او ټپې بولي. زیاتره لنډۍ په هنري لحاظ ډېرې ښکلې دي، انځورونه پکې په خورا لوړه هنري پیرایه اوډل شوي دي، په ساده ګۍ کې دومره ښکلې ویلې شوې دي، چې زموږ په شفاهي سندرو کې نورې سندرې ددغو خصوصیاتو له امله له لنډیو سره سیالي نه شي کولای.

د لنډیو ویونکي نه دي معلوم، لنډۍ د عام ولس مال دی، یو شپون، یو اوښبه، یو بزګر او په زیاته زموږ کلیوالي ښځمنې د دې لنډیو په ایجاد کې برخه لري.

که څه هم د پښتو په ځینو لرغونو دیوانونو کې ځینې لنډۍ هم راغلې دي، لکه: ګ حسین په دیوان کې، د سید غلام ننګرهاري په دیوان کې او ځینې نورو دیوانونو کې، همدا راز د ځینو معاصرو لیکوالو، لکه بهایي جان صاحبزاده، مرحوم صالح محمد هوتک، صاحبزاده محمد ادریس او نورو هم د لنډیو د جوړولو خواته

توجه کړې ده او ځینې لنډۍ یې ویلې یا جوړې کړې هم دي، مګر دا لنډۍ دپښتو د عامو لنډیو یا هغو لنډیو په څېر چې په ولس کې ایجاد شوې دي، ښکلا او ادبي، هنري ارزښتونه نه لري او د لفظي جوړښت له مخې هم لیکلي ادب ته ورته دي. د پښتنو په کلیوالو سیمو، غرو او رغو لو درو او د شپنو په کېږدیو کې د پښتو لنډیو کافي ذخیره شته.

ځینې دغسې لنډۍ د پښتو د شفاهي ادبیاتو ځینو خواخوږو له ولس نه راټولې کړې دي.

په دې برخه کې تر ټولو پخوانی کار د هندوستان د یوه نواب محمد ارتضاخان دی. ده د ۱۲۲۵ هـ ق کال شاوخوا په خپل فرهنګ ارتضایي نومي کتاب کې ځینې پښتو لنډۍ ثبت کړې دي.

ډارمستتر په ختیځ پوهانو کې د لنډیو د ثبت کار کړی دی او په افغانستان کې مرحوم نوري، مرحوم استاد بینوا، ارواښاد محمد دین ژواک، په وروستیو کې ښاغلو عبدالکریم پتنګ، ارواښاد مصطفی جهاد او د پښتو ټولنې د فولکلور څانګې دغه ډول لنډۍ راټولې کړې دي، د لنډیو په ځانګړو مجموعو او یا د فولکلور د نورو مجموعو په ترڅ کې یې چاپ کړې دي.

په بلوچستان کې ښاغلي ګل محمد کاکړ د (ګل ټپې) په نامه د پښتو لنډیو څلور مجموعې چاپ کړې دي اوپه پېښور کې پښتو اکېډیمي د (روهي سندرې) په نامه د لنډیو دوې ښې مجموعې چاپ کړې دي.

دا ټولې شوې لنډۍ په ګردو پښتنو کې د لنډیو د موجودې ذخیرې نماینده ګي نه شي کولی، بلکه یوه برخه یې راټوله شوې ده او نورې ډېرې داسې لنډۍ په ولس کې شته چې تراوسه لا د کاغذ پر مخ نه دي لیکل شوې.

په لنډیوکې د پښتنو د کلیوالي ژوند او د دوی د کلتور د بېلابېلو اړخونو ځانګړنو انعکاس موندلی دی، او په بېلابېلو موضوعاتو پورې مربوطې لنډۍ موږ د خپلو دغو شفاهي سندرو په مجموعه کې میندلای شو، لکه دا لنډۍ:

خان یې زړو جامو کې جوړ کړ
دجنازې بازو مې نیسه
ټوکر، ټوکر په تورو راشې
تن مې د شنې نکریزې پانه
د سترګو تور لالی مې ورک دی
سپوږمیه سر وهه راخېژه
قبر سوري شو تختې ماتې

لکه په وران کلي کې باغ د ګلو وینه
کله به مایه راستې خوله درکړې وینه
چې پرهارونه دې ګنډم خوله درکومه
ظاهر تازه دننه رنګ په وینو یمه
په زرګر ناسته یم څېره یې جوړومه
یار مې د ګلو لو کوې ګوتې ریبینه
پر ګلابي جانان مې پربوتل ګردونه

(۲) **کاکړۍ:** د پښتو د شفاهي ادبیاتو د معرفي په لړ کې تر لنډیو وروسته (کاکړۍ) د سرې مخې نه راځي

دا ډول سندرې د کاکړیو، کاکړیو لنډیو او کاکړیو غاړو په نامه بللې شوې او یادې شوې دي.

دا سندرې هم لکه لنډۍ دوې مسرۍ لري، چې دا دواړې مسرۍ زیاتره سره هم قافیه او د هجایي سیستم له پلوه سره برابرې دي دا په دې مانا چې د ټولو کاکړیو مسرۍ اته اویا اووه سیلابه وي. خینې داسې کاکړۍ هم شته چې مسرۍ یې سره هم قافیه نه دي. کاکړۍ هم د هرډول مفاهیمو بیان ته وقف شوې او د پښتنو د ژوند بېلابېل اړخونه پکې منعکس شوي دي.

د کاکړیو د ایجاد سیمه د بلوچستان د کاکړستان سیمې دي او ویونکي یې د نورو شفاهي سندرو په څېر معلوم نه دي او د کاکړو ترلو ونده یې په ایجاد کې درنه ده. اما د دې سیمې ځینو ادیبانو هم د کاکړیو په ویلو کې خپله طبع ازمایلې ده او ډېرې کاکړۍ یې جوړې کړې دي، خو د دغه ډول کاکړیو خوند رنګ د هغو طبیعي او په ولس کې ایجاد شویو کاکړیو په څېر نه دی.

د بلوچستان ځینو خواخوږو پښتنو لکه صاحبزاده حمیدالله او پروفیسور سیال کاکړ ددغو سندرو نمونې له خلکو راټولې کړې او د دې سندرو مجموعې یې چاپ ته آماده کړې او چاپ کړې دي.

ددغو ثبت شویو کاکړیو له مطالعې سړی د کاکړو د اجتماعي، اقتصادي او حتی سیاسي، ملي ژوندانه د څېړلو لپاره د خوند مواد ترلاسه کولای شي، دا هم د کاکړیو څو نمونې:

خدای دې مل سه حسن خانه ... خې د سرو ګورو میان له
غازیان ډېر دي جنګ به وسي ... که غورلم حسن خان نه سي
زه چې تلم بورې ژړل ... ډېره وهلې وه زاولن
دا په ګل پرتې ړلۍ دي ... که سپین غابن د شین خالي دي
زه دننه ته د باندې ... اور مې بل دی تبۍ باندې
لو د سرې غرمې کوم ... غرمه د سرې کره ورځم

(۳) **پړاکې (لنډکۍ):** د دې ډول سندرو د ایجاد سیمې خوست او د پکتیا ځینې غرنۍ برخې دي. دا سندرې تر ۱۳۵۴ هـ ش کال پورې زموږ د شفاهي ادبیاتو په لړ کې چا نه وې څېړلې، په همدې کال څېړنمل محمد عارف غروال دغه سندرې معرفي کړې.

دا سندرې د پښتو د شفاهي ادبیاتو یو ځانګړی ډول دی. هره سندره یې یوه څوارلس سیلابیزه مسره لري چې معمولاً د یوې بلې سندرې په پای کې په خاصه غاړه (لحن) ویله کېږي او په ځانګړي ډول د استعمال مورد نه لري. لنډکیو ته د پکتیا په سیمو کې بندۍ، سورې، پړاکې او بچکي هم وایي او دا یې څو نمونې دي:

جار بې غمه خدای دی بنده تل په غم کې وینه
پاڅېږه لالیه خوب به بیا وکړې مینه
رنګه بنګه راشه، په ما واچوه لاسونه
جګ کړه مروندونه جلۍ غېږې ته درځمه

**(۴) سروکی:** د پښتو د شفاهي ادبیاتو دغه سندرې، لکه چې یې له نامه څخه څرګندېږي،د سندرې د (سر) حیثیت لري او نوره سندره د لنډیو په وسیله بشپړېږي، له دې څخه ښکاري چې د سروکو بشپړوونکې لنډۍ دي او سروکي له لنډیو پرته په ځانګړي ډول د استعمال موارد نه لري.

داسې ښکاري چې سروکي د پښتو د خاصو سندرو، لکه: چاربیتو، بدلو، بګتیو او لوبو پاتې شوني دي. مانا دا چې د پښتو د ولسي ادبیاتو دغه ګردې یادې شوې سندرې هره یوه یو سر او په سر پسې بندونه لري، څنګه چې دا سندرې هم اکثر شفاهي بڼه لري، د وختونو په تېرېدو سره یې بندونه د خلکو له حافظو وزي او یوازې سر یې پاتېږي، چې بیا یې د محلي تنګ تکور څښتنان د لنډیو په وسیله بشپړوي او د یوې بشپړې سندرې په بڼه یې وړاندې کوي. سروکي سره له دې چې چې ذوقیانو جوړ کړي دي له هغو پاتې شونو او دغو نوو جوړو کړو سروکو څخه د پښتو د شفاهي ادبیاتو دغه ډول راپیدا شوی دی چې په عام ډول (سروکي) بلل کېږي، په ځینو پښتني سیمو کې نیمکۍ هم ورته وایي او د پکتیا د منګلو پښتانه یې پامونه بولي.

د سروکو شکلي جوړښت مختلفې بڼې لري، ځینې سروکي یوازې یوه مسره وي؛ ځینې دوې مسرۍ لري او ځینې یې درې، څلور، پنځه او حتی لا زیاتې مسرۍ لري چې زموږ ځینو فولکلور څېړونکو د سروکو دغه جوړښتي اجزا د پارکو په نامه نوملي دي، لکه یو پارکیز سروکي، دوه پارکیز او نور...

د سروکو مسرۍ د قافیوي جوړښتونو او هجایي سیستم له مخې تر یوه واحد قانون لاندې نه شي راتلای، دغه سیستمونه په بېلابېلو سروکو کې توپیر مومي.

سروکي په موضوعي لحاظ زیاتره د عشق او میني مسایل رانغاړي، نور اجتماعي مسایل او حتی د رزم خبرې هم پکې منعکس شوې دي

سروکي هم زموږ ځینو ښاغلو رانول کړي دي، لکه د پښتني سندرې د دوهم توک ټولوونکو، ښاغلي حبیب الله رفیع، په پېښور کې پروفیسور محمد نواز خان طایر، دغه راز سید محمد عمر د کوټې هم تر ټولو دمخه حتی د ټولسمې پېړۍ په اواخرو کې د پښتو سروکو ځینې نمونې خوندي کړې دي. ښاغلي عبدالکریم پتنګ د سروکو یوه ځانګړې مجموعه برابره کړې ده، چې په پېښور کې چاپ شوې ده، دغه راز اوس د پښتو ټولنې د فولکلور څانګې د سروکو یوه لویه مجموعه چاپ ته آماده کړې ده.

سروکي په دوو برخو ویشل شوي دي: یو یې عام سروکي دي، چې د هر ډول ساز او سرود په محافلو کې ویل کېږي، لکه دا سروکی:

پسی ورجګ کړه سره لاسونه
لنډ کړه د تیکی مزی دې
خال به دې وران شي

توري سترګې خماري
درته کړم ناله زاري
د زړه زخم مې کاري
شوم رسوا ستا په یاري

شینکي رودونه
وُ پاچا د بلخ
بلخ درې درې
شینکي رودونه

له دغو سروکو سربېره ځینې داسې سروکي شته، چې خاص د اتڼ په میدانونو کې ویل کېږي، لکه دا سروکی:

تا ویشتلی یمه وا بې غوره یاره
خوب خوب مې وړینه

درځم له ګلو
اوس به لمن ډکه دروړم د ګلو

**۵) نارې یا غړونه:** د پښتو د شفاهي ادبیاتو ځینې ډولونه زموږ فولکلور څېړونکو دپښتو د شفاهي ادبیاتو د خانګړیو ډولونو په توګه معرفي کړي دي، لکه:
د اتڼ نارې، د هوتکو نارې، سنځر خیلي نارې، د نکلونو نارې او نور...

د نارو دغه ګرده ډولونه موږ د نارو یا غړونه تر یوه واحد سرلیک لاندې مطالعه کولای شو، چې ځینې یې د اتڼ په میدانونو کې دوینګ موقع مومي، ځینې یې تاریخي حیثیت لري، چې د تاریخي نارو تر سرلیک لاندې راځي، او ځینې یې بیا نکل چیان د نکل په بېلابېلو برخو کې د نکل د کرکټرونو له خولو بیانوي، په دې ځای کې موږ دغه ګردې نارې په دریو عمده برخو وېشلای شو:

**الف) د اتڼ نارې:** دا نارې په عام ډول د اتڼ په میدانونو کې د اتڼ چیانو له خوا ویلې کېږي د اتڼ دا نارې د اتڼ له سروکو بېلې دي.

د اتڼ نارې یا سندرې د نارینه وو په اتڼ کې هم ویلې کېږي او په ښځینه اتڼونو کې هم دا سندرې د ویلو موارد لري. د ښځینه اتڼونو سندرې د اتڼ سروکو ته ډېرې نژدې دي او یا هماغه داتڼ سروکي دي چې په ښځینه اتڼونو کې ویل کېږي.

د اتڼ سندرې د خپل جوړښت له مخې دوه مسریزې، درې مسریزې او څلور مسریزې وي او ښایي تر دې د زیاتو مسرو لرونکو سندرې هم پیدا شي، قافیوي جوړښت، د مسریو لنډوالی، اوږدوالی او هجایي سیستم یې هم ډول ډول دي.

د ښځینه اتڼ د سندرو یوه نمونه داده:

لونګینــــه، پــر خنــګ ځــنــګ راواړه
چې دې شړنګ د بنګړو شینه، لونګینه!

د نارینه وو د اتڼ سندرې:

چــتی چې پــه پښو دې کــړې چــوتې
څوانـــــان دې لېونــــــي کــــړه
زاړه خــــواران دې وایســـــتل د ګتې

دا پــورې پــه دامـان تـوره کېږدیـــه
کـــېږدی مـــې اوبـــو یـــووړه
د ژمـــي شـــپې بـــه چـــېرې تېرومـــه

خانــــــه، زمـــــوږ خانــــــه
دا ستا خاني دې خدای نه کـړي بېرانـه
ملکونـــــه دې رعیـــنــت کــــړه
د دښمـن کـلا دې وکـښـه لــه میدانــه

د اتڼ سندرې یا نارې په موضوعي لحاظ ډول ډول دي، د ټوکو او مسخرو مطالب هم د خلکو د تفريح په منظور په دغو سندرو کې ځای شوي دي. د اتڼ د نارو او سندرو په ټولولو کې مرحوم نوري، پروفيسور سيال کاکړ، ځېرنمل غروال، علي محمد منګل، عبدالکريم پتنګ او نورو کار کړی دی.

ب) *تاريخي نارې:* دا يو ډول نارې دي، چې د پښتنو له اجتماعي، سياسي تاريخ سره اړه لري. دا ډول نارې د هوتکو د باچهۍ په واقعاتو، د نادر افشار د راتګ او يا د لوی احمدشاه بابا د دوران په پېښو اړه پيدا کوي.

دا تاريخي نارې ددغودورانونو په بېلابېلو وختونو کې ويل شوې او په خلکو کې خورې راغلې دي، ډېر امکان لري چې د هوتکو پر پاچاهۍ د دمخنيو دورو نارې به هم وي خو متاسفانه اوس تر موږه نه دي رارسېدلې. دا نارې ځيني مهمو تاريخي نکاتو ته هم اشارې لري او د افغانستان د هغو دورانونو د تاريخ په ليکنه کې د دغو نارو له محتوياتو استفاده کېدای شي.

د دې نارو جوړښت په عام ډول دوه مسريز دی، چې يوه مسری يې لنډه او بله يې اوږده ده، خو د دواړو قافيه يوه ده او دا هم د بېلابېلو مهالونو څو تاريخي نارې:

که تېرې ګورجي بيا کړې تېرې نارې
يو مير خان و ځنې پاتې، مير خان هم اوس کندهار ته ګرګين غواړي

⊛⊛⊛

که بکې پښتني نجونه دي بکې
نادر لوړې تر شاه برج کړې زنبورکې

⊛⊛⊛

که زمری دی شاه ولي دجنګ زمری دی
له سنګرو يې ايستلی مربتی دی

دا نارې مولوي محمد يعقوب ناصری، حبيب الله رفيع، نيک محمد پکتياني، سيال کاکړ او نورو سره راټولې کړې دي.

ج) د نکلونو نارې: د پښتو د شفاهي ادبياتو يوه عمده برخه نکلونه دي، پښتو نکلونه زياتره د نکل د بيانونو او قصو په ترڅ کې ځيني منظومې ټوټې هم لري، چې دا ټوټې د نکل په بېلابېلو برخو او ټاکلو مواقعو کې ځای لري او د نکل نارې بلل کېږي.

دا نارې دوه مسريزې او درې مسريزې دي. د نکلونو دوه مسريزې نارې کله هم قافيه وي او کله نه وي. په درې مسريزو کې په عام ډول لومړی او دريمه مسری

يوه قافيه لري، دوهمه يې قافيه يې هم آهنګي نه ساتي په ځينو درې مسريزو نارو
کې درې واړه مسرۍ يوه قافيه نه لري.

سر د سره پـالنګه هسک کړه فتح خانـه
يـاغي سـوي هندوسـتان رعيـت ملکونـه



دروازه ژر کـړئ را خلاصـه ګواريـانو
راپـسې د زرغونـو توتيـانو سـيل دی



دا کاروان د شمس الدين په طلا بـار دی
دغـه ټول د ښيځانـو ککـې ښکـار دی

که اور ګډ کړې د ښيـځو پـه سپين زيـرو
مـرور يـې پښـولا نـه کـړل
لا د لاسه ورښيي، ورښيـي يـاغي ملکونـه



کرميـه چې غم نـه وي تـه غـم راوړې
کرميـه کـه زمـا پـه دعـا کـېږې
کرميـه پـه لـم غـوته سـپرو واوړې

(٦) **فالونه**: د پښتو د شفاهي سندرو په لړ کې يو ډول سندرې د فـالونو په
نامه ښوولې شوې دي، فالونه ځکه ورته وايي، چې پـه ځينـې پښتنـې سيموکې د
برات په شپه پر دغو سندرو فالونه نيسي.

دا سندرې دوه مسريزې او څلور مسريزې دي، لکه دا سندرې:

د جنـــت پـــه منـــارې سـور چـــرګ وهـــي نـــارې
شـــير د خـــدای تـــېرېږي خلکـــو کـــاندئ ننـــدارې

د مکـې پـه سـپين بامونـه
پـــنې وکـــاره رادرومـــه

د پښتو ددغه ډول سندرو په ټولولو کې استاد حبيب الله رفيع، پروفيسور سيال
کاکړ، علي محمد متکل او نورو کار کړی دی.

(٧) **چغيان (انګی)**: د پښتو د شفاهي سندرو په لـړ کـې انګی يـو ډول
ځانګړې سندرې دي، چې په ځينو سيمو کې يې "انـګی"، پـه ځينـو کـې د (هـوی

سندرې) او په ځينو ځايونو کې ځينې نورمحلي نومونه لري. دا ډول سندرې موږ ته د انګۍ او چغيان په نومونو را رسېدلې دي.

د دې سندرو دوې مجموعې، د چغيان او انګۍ په نومونو پروفيسور ولي محمد خان سيال کاکړ تهيه او چاپ کړې دي.

چغيان د خپل جوړښت له پلوه دوه مسريزې، درې مسريزې او څلور مسريزې دي او حتی تر دې زياتې مسرۍ هم لري.

دا سندرې ناوې هغه وخت وايي، چې د پلار له کوره يې د مېړه کور ته بيايي. په دې سندرو کې په عام ډول ناوياني خپلې بې وسۍ او د پلار له کوره خپل بېلتون ژاړي، د دې ډول سندرو څو نمونې دا دي:

وروره لاس کــه پــه کــڅوړه يـــو اصيـــل غمـــی راباســـه

خور دې ځي د بابک له کوره



ز‌ه په خپل کور کې وم په راحـت بـابک کـرم خـرخه پـه ډېر دولـت

په پردي کور کې مې نسته عزت خـود بـه ژړا کـرم پـه هـر سـاعت

**(۸) د ښادۍ سندرې:** که څه هم د پښتو زياترې شفاهي سندرې د ښادۍ او خوښۍ په بېلابېلو مراسمو کـې ويـل کـېږي، خـو د دې شفاهي اديـاتو ځينې سندرې خاصې بيا د همدې مراسمو دي، چې د کوژدې او واده پـه مراسـمو کې له لومړنۍ هوکې نيولې بيا تر کوژدې، د واده د بېلابېلو مرحلو، د ناوې د بېولو او د واده د درېمې او اوومې ورځې په مراسمو کې د ښځمنو له خوا ويلې کېږي.

بابولالې د دې سندرو يـوه برخـه ده، چـې د ښادۍ پـه مراسـمو کـې د ويلو خاص ځايونه لري. د ښادۍ سندرې له دوو ټوټو، دريو ټوټو او حتی کله تـر دې لـه زياتو ټوټو جوړې دي، د دې سندرو څو نمونې:

راغـی رومـال راغـی، رومـال پـټ دی پـه قبـو کـې
د (پلانکي) په سر يې ابنی سر يې لوړدی په تربرو کې

شـــين بـــادرنګ اوبـــو راوړی
مـــوره داســـې پـــوښ راوړی
چـــا يـــې ګل، ګل نـــه دی ليـــدلی

ســـپيني پـــايځې مـــې مبلمنـــې دي
دا سرې پـايځې مـې تـر قيامتـه زولنـې دي

د بنادي سندرې په زياترو پښتني سيمو کې شته، په ځينو ځايونو کې يې استعمال ډېر دی، خو په ځينو کې لږ رواج لري، دغه سندرې ځينې د پښتنو له بېلابېلو سيمو څخه راټولې شوې دي او د ډېرې يې لا نه دي ټولې شوې او تر اوسه زموږ په اولس کې خورې ورې په حافظو کې ساتلې کېږي هغو ښاغليو چې دا ډول سندرې ټولې کړې دي، په هغو کې د مرحوم محمد ګل نوري، حبيب الله رفيع، پروفيسور سيال کاکړ، عبدالکريم پتنګ، علي محمد منګل، احسان الله اريښزی او نورو نومونه مخې ته راځي.

**(۹) ساندې:** دا يو ډول منظومې دي، چې د ښځو له خوا پر مړي ويلې کېږي، دا منظومې چې له ژړا سره ملې ويلې کېږي، زياتره د مړي بې وسي او د پاتې کسانو بې کسي، د هغه صفات او نور پکې بيانېږي.

ساندې ځينې د لنډيو په فورم کې ويلې شوې دي، خانته خاص اشکال هم لري. ساندې هم زموږ په اولس کې خورې ورې موجودې دي، ځينو ښاغليو لکه: حبيب الله رفيع، عبدالکريم پتنګ، او علي محمد منګل يې ځينې نمونې له خپلو سيمو را ټولې کړې دي.

د ساندو کومې نمونې چې ليدل شوې دي، زياتره دوه مسريزې دي، درې مسريزې ساندې هم پکې پيدا کېږي، لکه دا لاندې نمونې:

(پلانکيه) مه شپه کړه مه کلونه
کور ته دې رادرومه
په خيالي جامو دې ولوېدل ګردونه

پلانکيه راشه د ګور د پاسه
دا ګمکی زوی دې د لاسه کړه د خپله لاسه

**(۱۰) د ميندو سندرې:** پښتني ميندې د خپلو ماشومانود ويدولو، لوبولو، ارامولو لپاره ځينې سندرې لري، چې زموږ فولکلور څېړونکو هغه د ميندو سندرې بللې دي. دا سندرې تر ټولو دمخه فرانسوي ډارمستتر ثبت کړې دي او بيا وروسته ډېرو نورو فولکلور څېړونکو دا ډول سندرې راټولې کړې دي، چې دا هم د دې سندرو نمونه کېداى شي:

اللو للو
پيشو مه راځه د غرو
پلانکی جان داسې ويده دی لکه ګوډی د رنجو
اللو للو

(۱۱) **نکلونه** : د پښتو د شفاهي ادبیاتو ډېره خوندوره برخه نکلونه دي.

دا نکلونه د پېړیو، پېړیو راهیسې د ولس په حافظه کې پاتې شوي او ځینې اشکال يې تر نن ورځې پورې رارسېدلي دي.

نکلونه د پښتنو د بېلابېلو سیمو په کلیو او باندو کې موجود دي، که یو نکل په یوه سیمه کې ایجاد شوی هم وي، په هماغې مشخصې سیمې پورې مربوط نه دی پاتې شوی، بلکه نورو پښتنو ته هم ورانتقال شوی او عام شوی دی. په نکلونو کې د انتقال په دې جریان کې ځینې محیطي اصطلاحات، جغرافي نمونې او روایات تبدیل شوي او پر ځای يې د بلې سیمې اصطلاحات او نمونه راغلي دي.

د زمان په تېرېدو سره د نکلونو په ژبه کې هم تغییر راغلی دی او همدا راز د نکلونو په ځینو روایاتو کې هم تغییرات واقع شوي دي.

د پښتنو په سیمو کې موجود نکلونه په دوو برخوویشلای شو:

(۱) د پښتنو خپل نکلونه، چې قهرمانان، محیط او ټول کره وره يې پښتني دي او د پښتنو د اجتماعي ژوندانه په څېړنه کې له دې ډول نکلونو څخه ډېره استفاده کېدای شي او د دوی د فرهنګ د ډېرو پخوانیو خصوصیاتو ځینې څرکونه هم ځنې ایستل کېدای شي.

په دې پښتني نکلونو کې بیان شوي حکایات او پېښې د پښتنو له هماغه وختني اجتماعي فرهنګي ژوند څخه رنګ اخلي.

پښتني نکلونه ځینې ډېر اوږده او زموږ ځینو ښاغلیو اوسنیو ناولونو ته ورته بللي دي، یعنې دناولونو پخواني او لومړني اشکال دي، په دغسې نکلونو کې په قصو کې قصې بیانېږي، خو ځینې یې بیا ډېر اوږده نه دي او د شرقي ادبیاتو حکایتي اثارو ته ورته دي.

ددغو نکلونو اوسني اشکال د خلکو له خبرو او ویناوو سره سم اوډل شوي دي، په دې نکلو کې ځای ځای ځینې نارې هم شته، چې نکل چیان يې د نکل د بیان په ترڅ کې په مخصوصو ځایونو کې د نکل د کرکټر له خولې وايي.

په پښتو نکلونو کې ددغسې نارو موجودیت ځینې څېړونکي په دې باوري کړي دي، چې دغه نکلونه به په لومړي سر کې منظوم ایجاد شوي وي او بیا به يې د وختونو په تېرېدو سره منظوم اشکال هېر شوي وي او د نکل خاکه به د خلکو په حافظو کې پاتې وي او بیا به د همدغې خاکې له مخې د ولس له عامې محاورې سره سم د نکلونو اوسنۍ بڼې عیارې شوې وي او کومې منظومې چې د نکل له لومړنیو اشکالو څخه د خلکو په حافظو کې پاتې شوې دي، هغه يې د نارو په توګه د نکل د اوسني شکل په خپلو خپلو ځایونو کې ځای کړې دي.

د پښتنو په خپلو ملي نکلونو کې ادم خان درخانۍ، دلې شهو، مومن خان شيرينو، طالب جان او ګل بشره، ولي جان او تانو، موسی جان او ګلمکۍ، فتح خان او رابيا، ښادي او بيبو، جمال خان او زيب النسا، ظريف خان او مابۍ او نور ډېر مشهور دي، د پښتنو خپل نور ملي نکلونه هم شته.

(۲) له نورو ولسونو څخه راغلي نکلونه: د بېلابېلو اولسونو ترمنځ د شفاهي ادبياتو د لېږد د پروسې په ترڅ کې له نورو ولسونو څخه هم ځينې نکلونه پښتون ولس اخيستي دي، په ځينو کې يې د خپلو محيطي او اجتماعي، فرهنګي شرايطو سره سم څه ورزيات کړي او يا لږ کړي دي په دې کټيګوري نکلونو کې: شهزاده بهرام ګلندامه، سيف الملوک بدرۍ جماله او نور د ډېر د ديوانو او ښاپېريانو نکلونه شامل دي.

د پښتنو په کليو او بانډو کې اوس هم نکل چيان شته، دا نکل چيان هغه خلک دي، چې دا نکلونه يې په خپلو حافظو کې ساتلي دي اود کال په بېلابېلو وختونو په تېره د ژمي په اوږدو شپو کې يې کليوالو ته وايي.

د پښتنو ځينو خواخوږو، لکه مرحوم محمد ګل نوري، عابد شاه عابد، پروفيسور ولي محمد خان سيال کاکړ، پروفيسور محمد نواز خان طاير، عبدالکريم پتنګ دا ډول نکلونه له اولسه راټول کړي او چاپ کړي دي.

په وروستيو وختونو کې: نورالله ولسپال، محمد مومن پتوال، غوتۍ خاورې، ميراحمد ګربز او علي محمد منګل هم له خپلو سيمو د پښتو ځينې نکلونه راټول کړي دي. د دې وروستۍ ډلې په راټولو کړو نکلونو کې ځينې نکلونه نوي او ځينې يې مشهور نکلونه دي، چې دوی بيا د خپلې سيمې له روايت سره سم راټول کړي دي.

**(۱۲) متلونه** : متلونه د پښتو شفاهي ادبياتو هغه درنې، پخې او په تول تللې خبرې دي، چې هغه د ارواښاد استاد قيام الدين خبره، د پښتنو حياتي فلسفه ټوله په متلونو کې بيان شوې ده. متلونه هغه لنډې ويناوې دي، چې د معنی له پلوه بشپړې او د مفهوم او مورد په لحاظ عامې وي.

د متلونو فصاحت او بلاغت په دې کې دی، چې متلونه د فورم په لحاظ لنډې او موجزې جملې دي، خو د معنی له لحاظه ژور مفاهيم پکې ځای شوي وي، ژبه يې ساده او عام فهمه وي او افاده يې مستقيمه هدف ته متوجه وي.

د پښتو په شفاهي ادبياتو کې متلونه په لوی سر کې په دوو برخو وېشلای شو، يو يې عادي متلونه دي، چې دخلکو د عامو خبرو په څېر په لنډو جملو کې اوډل

شوي دي، او بله برخه يې هغه متلونه دي، چې منظوم شکل لري، او د دوو مسريو په بنه تنظيم شوې وي، لکه دا متل

بد بـه دې پـه زړه لـرم
سلام بـه دې پـه خولـه لـرم

عام متلونه هم ځينو څېړونکو د شکلي جوړښت له پلوه پـه دوو برخـو وېشـلي دي:

۱) هغه متلونه چې يوه بشپړه جمله وي، مسند او مسنداليه، مبتدا او خبر ولـري او اهنګ هم ورسره مل وي، لکه دا متل: که غر لوړ دی په سر يې لاره ده.

۲) هغه متلونه، چې که بشپړه جمله هم نه وي، خو د متـل تـر تعريـف لانـدې راتلای شي، لکه دا متل:

اوړه په اوړه منت يې په څه

پښتو متلونه د موضوعاتو په لحاظ ډېره پراخـه سـاحه راچـاپېروي، د پښتنـو د فرهنګ او فکري مسيرونو په څېړلو کـې لـه دې متلونـو څخـه ډېره زياتـه اسـتفاده کېدای شي. په متلونو کې ځينې داسـې عنـاصر او نکـات شـته، چـې د تـاريخي او اتنوګرافي څېړنو په مرسته سړی د پښتنو د ژوند ډېرو ليرو زمانو ته رسوي.

ځينې متلونه له ځينو حکاياتو او ځينو تاريخي پېښو هـم زېږېدلي دي، مـوږ د پښتو د متلونو په ذخيره کې دا راز متلونه ډېر پيدا کولای شو.

په افغانستان، بلوچستان او پښتونخوا کې ډېر پوهان د متلونو ارزښت ته متوجـه شوي دي او زيار يې ايستلی دی، چې زموږ د شفاهي ادبياتو دغه ذخـيره لـه ولسـه راټوله کړي. په افغانستان کې مرحوم غلام محـی الديـن افغـان، مرحـوم امـين الله خان زمرياٰلی، مرحوم محمد قدير تره کي، مرحوم محمد ګل نوري، اروانباد محمـد دين ژواک او نورو، په بلوچستان کې سيال کاکړ او په پښتونخوا کې پروفيسور محمـد نواز خان طاير متلونه ټول کړي دي.

له دغو پښتنو سربېره غربي پښتوپوهانو او نورو اروپـايي پښتـو څېړونکـو هـم د پښتو متلونو ټولولو ته هڅه کړې ده، چې په هغو کې موږ د تاربرن، ډارمستتر، بوايـل او نورو نومونه يادولای شو.

**(۱۳) پښتو لنډې شفاهي قصې:** د پښتـو پـه شـفاهي ادبيـاتو کـې ځينې لنډ حکايات هم شته، په دغو حکاياتو کې ځينـې زمـوږ پـه ټولنـه کـې ايجـاد شوي دي او ځينې له نورو ولسونو څخه راغلي او پښتو شوي دي، دغه لنډ حکايـات او قصې که څېله د پښتنو د محيط زېږنده دي او که لـه نـورو ولسـونو څخـه راغلـي

دي، ګرده شفاهي بنه لري او په ولس کې خورې دي. دا حکايات په موضوعي لحاظ بېلابېل موضوعات چاپېروي، لکه:

الف) د دې لړۍ ځينې حکايتونه په حيواناتو پورې مربوط دي، دا ډول حکايات زياتره د زاړه شرقي ادب له کتابونو پښتو ته راغلي دي.

ب) ځينې حکايات يې د ټوکو او طنزونو په چوکاټ کې جوړ شوي دي.

ج) په ځينو کې په متلونو او اصطلاحاتو پورې مربوط حکايات هم شته

دا لنډې قصې او حکايات زياتره په اجتماعي او اخلاقي نتايجو بنا قصې دي، چې په ولس کې داخلاقي نورمونو له پياوړتيا سره مرسته کوي او د دې ټولنې د خلکود اجتماعي ځانګړنو په معرفي کې يې هم له څېړونکو سره د مرستې له ارزښته سترګې نه شي پټېداى.

پښتو لنډې قصې تر ټولو دمخه تاربرن انګريز راټولې کړې دي، نورو غربي پښتو پوهانو هم په دې ساحه کې کار کړى دى، په افغانستان کې پوهاند رښتين او ډجرار او عبدالکريم پتنګ ځينې کارونه کړي دي او په کوټه او پېښور کې هم د متلونو د قصو په ټولولو کې ځينې کارونه شوي دي.

**(۱۴) د ماشومانو شفاهي ادبيات:** موږ د پښتو شفاهي ادبياتو د مطالعې په لړ کې ځينې داسې سندرې او د خلکو له ويناوو سره برابر ځينې ټوکې د پښتنو په کليو او باندو کې ګورو، چې پښتانه ماشومان يې د لوبو او ساعتيرۍ په مهال کې سره وايي. دا ګرده سندرې او نور د ماشومانو د شفاهي ادبياتو په نامه يادولای شو.

دا ډول ادبيات په ماشومانو کې له هغه وخته رواج پيدا کوي، چې ژبه زده کړي، او د کلي له نورو ماشومانو سره په لوبو کې ګډون وکړي، او تر هغه وخته په دغو ماشومانو کې خواره وي، تر هغې پورې چې د ماشومانو او تنکيو ځوانانو د لوبو له قطاره وزي.

د ماشومانوادبيات څو ډوله لري، چې ځينې يې دا دي:

الف) سندرې: د ماشومانو ترمنځ په دې خورو سندرو کې ځينې نامفهومه کلمات هم راغلي دي. دا سندرې د لوبو په ترڅ کې د ماشومانو تر منځ ويلې کېږي، د دې سندرو يوه نمونه دا ده:

اکو بکو،

سرسيندکو

غوا مې لاړه په ترپکو

هلک ناست دی په دکان

غیشي ولي په میدان
مچ یې وویشت په لکۍ
نه یې هډ نه یې پوښتۍ

دا کلا د چا ده؟
داد ادم خان ده
پکې ناسته درخانۍ
مور یې چنګه بوډیالۍ

ب) سوال و ځواب: د ماشومانو په شفاهي ادبیاتو کې ځینې داسې منظومې هم شته، چې د سوال و ځواب بڼه لري، دا په دې معنې چې یو ماشوم د سوال په بڼه څه وايي، بل ماشوم یې ټاکلی ځواب، چې د ماشومانو تر منځ موجود وي ورته وايي، لکه:

دیو تر غزني
وورکی پروت دی بې سوزني
دیو تر کابله
د کابل دروازه بله

ج) کیسې: د ماشومانو په ادبیاتو کې ډېره خوندوره برخه کیسې دي، چې د کلیوالو ماشومانو په ذهني وده کې ستره برخه لري.

کیسیو ته ځینې پښتانه دونی، ځینې اړونه او ځینې ټکونه وايي، په پارسي کې کیسیو ته چیستان ویل کېږي، هغه کیسې چې د پښتو په شفاهي ادبیاتو کې شته، زیاتره د ماشومانو تر منځ د ذهني ازموینې په ډول د استعمال موارد لري. د کیسیو یو دوه نمونې دا دي:

سور دی سندوخک دی
د سرو غمیو ډک دی

لښته ده زرلښته ده
نه ماتېږي سخته ده.

د) وړې قصې: د ماشومانو په ادبیاتو کې ځینې ډېرې وړې او لنډې قصې هم شاملې دي، چې د دغو ماشومانو لپاره د وخت د تېرولو، بوختیا او سرګرمۍ بڼه وسیله ده. دا وړې قصې ماشومان یا د خپلې کورنۍ له مشرانو زده کوي او یا یې له نورو ماشومانو زده کوي، او بیا یې د خپلو لوبو ملګرو ته وایي، په دې ډول لنډو

ماشومانه قصو کې موږ د (انګک بنګ) قصه، د (سرکۍ وزې) قصه او نور یادولای شو.

د ماشومانو د شفاهي پښتو ادبیاتو د ټولولو په لړ کې په افغانستان کې حبیب الله رفیع، علي محمد منګل، عبدالکریم پنګ، په بلوچستان کې پروفیسور سیال کاکړ او په پښتونخوا کې پروفیسور محمد نواز خان طایر د یادونې وړ کارونه کړي دي.

یادونه: په تیرو مباحثو کې تاسې ته د پښتو د شفاهي ادبیاتو ډیر مشهور ډولونه وښودل شول له دغو مشهورو ډولونو سربیره د پښتو په شفاهي ادبیاتو کې ځینې نور ډولونه هم زموږ فولکلور څیړونکو ښوولي دي، لکه سولې، برغازې او بلندۍ دا سندرې د بلوچستان د سیمو په ځینو پښتني قبایلو کې باب دي، پروفیسور سیال کاکړ دا لورې خلور ډوله سندرې راټولې کړې دي او د پښتو د شفاهي ادبیاتو لمن یې پرې بډایه کړې ده.

د بې بې دستي سندرې او ځینې شفاهي ننداړلوبې، چې د پښتنو په ځینو سیمو کې شته د پښتو د شفاهي ادبیاتو په پراخو څیړنو کې تر بحث لاندې راتلای شي.

## د پښتو د شفاهي ادبیاتو ارزښتونه:

د لوړ بحث له لوستلو څخه به ګرانو شاګردانو ته څرګنده شوې وي، چې پښتو ژبه د شفاهي ادبیاتو یوه بډایه ذخیره لري د پښتو د شفاهي ادبیاتو خزانه بېلابېل ډولونه لري، دا ډولونه دومره ډیر او رنګارنګ دي، چې د سیمې په نورو ژبو کې بنایي شفاهي ادبیات دغسې ډیر ډولونه ونه لري.

د پښتو د شفاهي ادبیاتو خزانه لکه چې تاسې ته معلومه شوه، ځینو ښاغلو پښتو څیړونکو او فولکلور ټولوونکو راټوله کړې ده، خو د دې شفاهي ادبیاتو یوه عمده ذخیره لا په ولس کې خوره ده اود ټولولو انتظار باسي.

دا خبره باید هیره نه کړو، چې د پښتو شفاهي ادبیات په ګردو هغو پښتني سیمو کې پیدا کیږي، چې هلته لا د ښاري ژوند مناسبات نه دي باب شوي او خلک د خپل کلیوالي ژوند د شرایطو تابع دي.

د دې خبرې مانا داده، چې شفاهي ادبیات په هغو سیمو او خلکو کې د رامنځ ته کېدو او ایجاد زمینې لري، چې سواد پکې عام نه وي، کله چې په یوه

تولنه کې سواد څه عمومیت پیدا کړي، نو هلته بیا د شفاهي ادبیاتو د پیدایښت زمینې محدودېږي او ځای یې لیکلي ادبیات نیسي.

د پښتو د شفاهي ادبیاتو کومه ذخیره چې تراوسه ټوله شوې ده، دهغې له مطالعې څخه سړي ته د دې ډول ادبیاتو ځینې ارزښتونه څرګندېږي، چې دا ارزښتونه په لاندې ډول ښیو:

۱) د پښتو شفاهي ادبیات سره له دې چې د خپلو شکلي جوړښتونو له پلوه رنګارنګ دي، دغه ډول د پښتنو د اجتماعي، ملي، سیاسي او فرهنګي ژوند ټولو خواوو، د دې ادبیاتو په بېلابېلو ډولونو کې انعکاس موندلی دی او د دغو ادبیاتو له څېړنو څخه موږ د پښتنو د فرهنګ په څېړنه کې ډېره دقیقه استفاده کولای شو.

۲) هغه څه چې د پښتنو د ژوند د بېلابېلو خواوو په باب په دې ادبیاتو کې بیان شوي دي، ډېر طبیعي رنګ لري له هر ډول لاسوهنو او تصنعي خبرو څخه پاک دي.

د اجتماعي څېړنو د بېلابېلو برخو څېړونکي کولای شي، ددې ادبیاتو په ځینو ډولونو کې له ځینو بیان شوو خبرو څخه د اصلي او اساسي موادو په توګه استفاده وکړي.

۳) د پښتو شفاهي ادبیات د خپلو اجتماعي ارزښتونو تر څنګه په هنري لحاظ هم د بحث وړ ادبیات دي. د دې ادبیاتو په ځینو ډولونو کې ښکلا اوتصویرونه په ډېر لوړ هنري انداز سره غاړه غړې دي.

۴) پښتو شفاهي ادبیات د پښتنو د عام ولس اود دوی د کلیوالو خلکو دهنري ذوق او فکري ودې د څرګندولو په بهیر کې خپل نقش لري.

د دې ادبیاتو مطالعه دا راښیي، چې که زموږ عام اولس له ښاري او متمدن ژوند نه لیرې په غرو، درو، بیدیاوو، دښتو او کیږدیو کې هم ژوند کړی دی، د هنري ذوق ترڅنګه یې د اجتماعي اومحیطي مسایلو په باب خاص فکر هم درلود. د دوی دغه ډول فکري اوهنري ځانګړنې (خصوصیات) موږ د دغو ادبیاتو په بېلابېلو ډولونو کې لیدلای شو.

لنډه دا چې پښتو ژبه د خپلو لیکلو ادبیاتو ترڅنګه د شفاهي ادبیاتو داسې ګرانبها ذخیرې هم لري، چې موږ یې د پښتو د ادبي تاریخ په مطالعاتو کې له پامه نه شو غورځولای.

د پښتو د شفاهي ادبیاتو د پېژندنې ترڅنګه اوس موږ د دې تاریخ بلې اساسي برخې ته راځو، چې هغه د پښتو د لیکلو (تحریري) ادبیاتو پېژندنه ده او د دې کتاب نورې راتلونکې برخې د دغو لیکلو ادبیاتو معرفۍ ته وقف شوې دي.

ښوونکي باید شاګردان وهڅوي چې د کورني کار په توګه دوه درې متلونه، لنډۍ، توکې، د ماشومانو سندرې له خپلو کلیو راټولې کړي او په ټولګي کې یې د نورو شاګردانو په وړاندې ولولي.

## ۲) لیکلي (تحریري) پښتو ادبیات:

د پښتو اثارو کوم اسناد چې تر موږه رسېدلي دي، د دغو اسنادوله مخې د پښتو تر ټولو پخواني لیکل شوي او ثبت شوي ادبي اثر د دوهمې هجري پېړۍ دی.

له دوهمې هجري پېړۍ نه تراوسه پورې په زرګونو شاعران، ناظمان او لیکوال په دې ژبه کې تېر شوي دي، چې په پښتو ژبه یې کتابونه لیکلي او د اشعارو دیوانونه یې ترتیب کړي دي او له نورو ژبو څخه یې اشعار او اثار په پښتو ترجمه کړي دي، چې دغه ګرده اثار اوس زموږ لیکلي فرهنګي ذخیره ده.

فرهنګي ذخیره مې ځکه ورته وویله چې د پښتو ژبې ګرده لیکلي ذخیره چې د دې څه د پاسه دوولس نیم سوو کلونو په جریان کې ایجاد شوې، ټول ادبي، هنري ارزښت نه لري او موږ له خپل تعبیر سره سم دلته یوازې د هنري، ادبي ارزښت لرونکي اثار په ادبیاتو کې راولو او په دغه کتاب کې بحث باندې کوو.

د پښتو د تحریري اثارو کومه ذخیره چې اوس معلومه ده، په هغو کې منظوم او منثور اثار شامل دي، چې په منثورو کې له مسجع او قافیه والو نثرونو نه نیولې د نن ورځې تر روانو، ساده او د هنر او ښکلا په ګاڼه سمبال نثرونه هم شامل دي.

او په منظومو کې موږ په عام ډول څلور ډوله شعري ژانرونه وینو:

(۱) د پښتو لرغونې سندرې: دا ډول سندرې دخپلو شکلي جوړښتونو له مخې نه د شرقي شاعرۍ له دیواني شعري ډولونو سره کټ مټ یو شی دي او نه یې ټولې ځانګړتیاوې د پښتو له ولسي سندرو سره یو شانوالی لري. نو همدا علت دی، چې زموږ ځینو منلو ادیبوهانو، لکه ښاغلي حبیب الله رفیع دا ډول سندرې د پښتو هغه لرغونې سندرې بللې دي، چې د زاړه اریایي دوران د شعري اشکالو او اوسنیو ولسي ادبیاتو تر منځ د اتصال د کړۍ حیثیت لرلای شي.

(۲) د شرقي شاعرۍ شعري ډولونه: د پښتو په لیکلي ذخیره کې یوه عمده برخه د هغو شعري ډولونو ده، چې د شرق د نورو ژبو، لکه: پارسي (دري) عربي، اردو، ترکي او نورو په شاعرۍ کې هم موندل کېږي. پښتو هم دغه شعري ډولونه له خپلو نورو ګاونډیو ژبو څخه اخیستي دي، چې په دغو شعري ډولونو کې موږ قصیده، غزل، رباعي، قطعه، مثنوي، مربع، مخمس، مسدس، مسبع، مثمن، معشر، ترجیع بند، ترکیب بند او نور شعري انواع یادولای شو.

(۳) د پښتو د ولسي ادبیاتو شعري اقسام د پښتو په لیکل شوې او ثبت شوې ذخیره کې ښځې داسې شعري انواع هم شته. چې دا ډول شعرونه د خپل شکلي جوړښت له مخې د نورو ژبو په شاعرۍ کې نه شي موندل کېدای او که په ځینو هندي ژبو. لکه: هندکو او اردو کې ومیندل شي. نو هغو هم له پښتو ادب نه اخیستې دي او د پښتو ادبیاتو په تقلید او یا د پښتنو له خوا د دغو ژبو په شاعرۍ کې د پښتو د ولسي ادبیاتوځینې ډولونه باب شوي دي.

دا ډول اولسي شعرونه زیاتره شفاهي بڼه لري، خو د خپلو شفاهي اشکالو ترڅنګه دا ډول ادبیات ځینې قدیم لیکل شوي اسناد هم لري او زموږ ډېرو لوستو شاعرانو هم د شرقي شاعرۍ د نورو اصنافو ترڅنګه د خپلې شاعرۍ په دغو ملي چوکاټونو کې هم شاعري کړې ده.

(۴) نوي ادبي ډولونه: د شلمې پېړۍ په جریان کې د شرقي شاعرۍ او د پښتو د اولسي شاعرۍ د شعري ډولونو ترڅنګه پښتو ادب ځینې نوي ادبي ډولونه هم خپل کړل، لکه: ازاد شعر او سپین شعر او له ازاد او سپین شعر نه سربېره دغه مهال په پښتو ادبیاتو کې د لنډې کیسې، ناول او ډرامې لیکل هم پیل شوي دي او دغو دریو ادبي ډولونو هم زموږ په معاصرو ادبیاتو کې وده موندلې ده.

دا کتاب چې ستاسې په لاسونو کې دی وروستي بحثونه یې د پښتو د همدغو تحریري ادبیاتو لنډ تاریخ دی چې بېلابېلې دورې او بېلابېل پړاوونه (مرحلې) یې تېرې کړې دي او تر نن ورځې رارسېدلي دي.

د پښتو د تحریري ادبیاتو د پېژندنې لپاره موږ اړ یو، چې خپل دغه ادبیات په یوه چوکاټ کې مطالعه کړو، که داسې ونه کړو، د تاریخي قدامت له مخې د هر شاعر احوال او اثار راوړو، نو به زموږ دغه کار ادبي تاریخ نه، بلکه یوې ادبي تذکرې ته ورته وي، حال دا چې موږ د خپلو ادبیاتو د تاریخ مطالعه کول غواړو. نو هرکله چې زموږ هدف ادبي تاریخ وي. نو بیا موږ اړکېږو، چې د پښتو ادبیاتو د رشد او پرمختیا مسایل زموږ د ټولنې له تاریخي وقایعو سره په ارتباط کې وڅېړو.

د دې کار د سرته رسولو لپاره موږ مجبورېږو چې د ادبیاتو د رشد او انکشاف مرحلې او دورې وټاکو، زموږ څېړونکو د پښتو ادبیاتو د رشد د خصوصیاتوله پلوه د پښتو ادبیاتو د رشد تاریخي سیر په دریو دورو ویشلی دی، چې هره دوره یې بیا څو مرحلې (پړاوونه) لري. د پښتو ادبیاتو د تاریخ لپاره دغه درې دورې په دې نږدې کلونو کې د کاندید اکادمیسن سرمحقق محمد صدیق روهي له خوا ټاکل شوې او د زیاترو پوهانو له خوا منل شوې دي.

دپښتو دغه حاضر ادبي تاریخ د همدې دوره بندۍ مطابق لیکل شوی په دې توګ کې به تاسې د پښتو د ادبي تاریخ لومړۍ دوره او دوهمه دوره مطالعه کړئ

# د پښتو د ادبي تاریخ لومړۍ دوره

د پښتو د ادبي تاریخ لومړۍ دوره له دوهمې هجري پېړۍ څخه پیل کېږي او د لسمې هجري پېړۍ تر پایه ان د یوولسمې تر لومړیو کلونو پورې دوام کوي.

د دې دورې کوم ادبي آثار چې زموږ په واک کې دي، زیاتره متفرق آثار دي، د دې دورې منظم او بشپړ آثار ډېر زموږ څېړونکو تراوسه نه دي ترلاسه کړي، یا دا چې تراوسه نه دي کشف شوي، او یا له منځه تللي دي.

د دې دورې آثار سره له دې چې متفرق دي،خو تاریخي تسلسل لري او زموږ په هېواد کې له پېښو شوو تاریخي او فکري جریاناتو سره په ارتباط کې راپیدا شوي دي او هم دغه آثار د خپلو شکلي او جوړښتي خصوصیاتو، د بیان د شیوې او د موضوعي ځانګړنو له پلوه ځینې ګډې وجهې لري، چې د همدغو مشخصاتو او خپل تاریخي قدامت له امله مورډ پښتو دغه ګرده ترلاسه شوي متفرق آثار دپښتو د ادبي تاریخ په لومړۍ دوره کې مطالعه کوو.

دلته ښایي ګران شاګردان دا سوال وکړي، چې دپښتو کوم پخواني ادبي آثار چې زموږ په واک کې دي او موږ پرې دلته خبرې کوو، هغه خو د اسلامي دوران د دوهمې پېړۍ دي، آیا تر دې دمخه او له اسلامي عصر دمخه زمانو پښتو آثار نه شته او یا نه دي ترلاسه شوي؟

د دغسې احتمالي پوښتنو په ځواب کې باید وویل شي، چې تر اسلامي عصر دمخه هم د پښتو آثارو د موجودیت ځینې څرکونه له موږ سره شته، چې د ګرانو لوستونکو د معلوماتواو د دې بحث د پس منظر په توګه به یې زه دلته یوازې تشه یادونه وکړم.

۱ له هغو یونانو باختري باچهانو څخه چې پـه هندوستان کـې باچهي ته رسيدلي دي، يو هم مناندر نوميږي، ددغـه منـاندر د حکومـت او بـاچاهـۍ زمانـه مورخانو د دوهمې قبل الميلاد پېړۍ په اواسطو کې ټاکلې ده
مناندر نسبت نوروبونانو باختري باچهانو ته له هندي رسومو سره ډېر بلد و او په هندي رواياتو کې دا سړی د (ملنده) په نامه يادېږي دغـه منـاندر بـاچـا بـه پـه مختلفو علمـي او مذهبـي موضوعـاتو کـې لـه عالمـانو او روحـانيونو سـره بحثونـه کول.مناندر باچا چې له بودايي حکيم ناګه سينه سره کوم بحثونه کـړي دي، دغـو بحثونو ته (ملنده پنهو) وايي اودغـه ملنـده پنهـود بودايـي مذهـب لـه ډېرو مـهمو کتابونو څخه ګڼل کېږي.

څېړونکي عقيده لري چې ددغه کتاب اصلي متن په زړه پښتـو برابـر شـوی و، چې هغه پښتو متن اوس ورک دی، اما د دې پښتو متن پالی ترجمې شته.

د دې ډلې څېړونکو د څېړنو له مخې دا ښکاري، چـې تـر ميـلاد (۱۵۰) کالـه دمخه لا پښتو ژبه د دې جوګه وه، چې کتاب پکې وليکل شي.

۲./ د هندوستان د راجستان د ايالت په يوه پخواني منـدر (معبـد) کـې د څو ژبو د اشعارو يوه مجموعه پيدا شوې ده، چې په مجموعه کـې د راغلـو څو شـعرونو ژبه پښتو ده. ددې مجموعې له وجوده روشـن لال ملـهو تـره خبـر کـړي يـو، هغـه وايي: د دې مجموعې هغه اشعار چې پښتو دي، په دوناګري خط ليکـل شـوي دي اشعار يې د لنډيو غونډې جوړښت لري، دا شعرونه څينې خاصې دعاګانې دي.

دا شعرونه تراوسـه نـه دي څېړل شـوي، د دې شـعرونو څېړنـه او تحليـل بـه څرګنده کړي چې دا شعرونه کله ليکل شوي دي؟ د چادي؟ د خط دول يـې مـوږ په دې باوري کوي چې دا شعرونه به تر اسلام دمخه زمانو کې ليکل شوي وي.

له دغو دوو مواردو سربېره ښايي څينې نور داسې اشارات هـم وميـندل شـي، چې تر اسلامي عصره دمخه د پښتـو آثـارو د ايجـاد ښکـارندويي وکـړي، خومـا تـه سملاسي همدا دوه مورده څرګندوو، چې د پښتو د ادبي تاريخ د لومړۍ دورې پـه تاريخي پس منظر کې مې يې يادونه وکړه.

له دې يادونو څخه ښکاري چې تر اسلامي عصره دمخه هم په پښتو آثار ليکـل شوي خودا چې د (ملنده پنهو) د کتاب اصلي پښتو متن زموږ په واک کـې نشـته او د راجستان له ايالت څخه تر لاسه شوي په دوناګري خط ليکلي پښتو اشـعار څېړونکـو لا نه دي کتلي او نه يې دي څېړلي نو څکه موږ تر اسلامي عصره دمخـه پـر پښتـو آثارو له لوړو لومړنيو يادونو پرته نور څه نه شو وېلای او خپل بحث د پښتو لـه موجـودو تر لاسه شوو آثارو پيل کوو.

"۱"

# د پښتو ادبیاتو د ایجاد لومړني درې مرکزونه

کله چې سړی د موجودو او لاس ته راغلو پښتو ادبي آثارو پخواني اسناد مطالعه کوي، نورابښکاري، چې دغه لومړني آثار په څینو داسې مراکزو کې ایجاد شوي دي، چې هلته د پښتنو خپل محلي حکومتونه او قبیله یي نظامونه وو او پښتانه هلته د خپل ملي هویت او سیاسي اقتدار خاوندان وو.

په دغو مراکزو کې لرغونی مرکز او د پښتنو پخوانی ټاټوبی غور دی، بل مرکز یې د کسې غره لمنې دي او دریم یې هم ملتان دی.

خو مخکې تر دې چې په دغو دریو مراکزو کې د پښتو پر ایجادي ادبیاتو خبرې وکړو، بهتره به وي دا خبره له یاده ونه باسو، چې د دوهمې هجري پېړی شاوخوا په غزنې کې د لویکانو شاهي کورنۍ موجوده وه، چې تر ګردیز او زابلستان پورې سیمې یې په ولکه کې وې او د منطقې له سیمه ییزو شاهي کورنیو سره یې روابط هم درلودل.

د غزني د لویکانو د کورنۍ قدیم سړی جویر نومیده، چې د ۱۲۰ هـ ق په حدودو کې یې د ژوند زمانه وه، ددې کورنۍ قدرت د سبکتګین (۳٦۵هـ ق) په وسیله ختم کړای شو. د لوی استاد مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبي د څېړنو له مخې د لویکانو د کورنۍ نژادي تقارب له غلجي پښتنو سره ښکاره دی او دغه غلجي پښتانه له زابلستانه تر غزني پورې زمکو کې له قدیمه میشت وو او اوس هم میشت دي.

د غزني د لویکانو د کورنۍ د یوه لویک یو پښتو بیت موږ ته رارسېدلی دی. د بیت د ویونکي نوم نه دی څرګند، خو د خانان لویک او خنچل شاه کابلي معاصرو او په ۱٦۳ هـ ق کال کې ژوندی ښکاري.

دغه بیت لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبي د سلطان سخي سرور د کراماتو د یو خطي کتاب له یو حکایت څخه رانقل کړی دی او په اوسنی املا استاد داسې لیکلی دی:

په زمي غزنه ښخېد لویک لـــویانو بایله لویا
کښه تور به براغلوم (بلوم) مملـه تازیو په ملا

دا لوړ بیت له تاریخي تحلیل وروسته داسې تفسیر شوی دی.

څنګه چې دغزني خانان لویک په جبري ډول مسلمان شوی و، نو له کابله یو بل لویک دا لوړ بیت ورواستاوه، چې دا لاندې مفهوم څنې اخیستل کېږي.

"های افسوس! لویک بت د غزني په زمکه کې ښخ شو، لویا خو خپله لویي بایلوده، زه به لښکر درواستوم ته د تازیانو (عربو) ملګري مه کوه".

د بیت له ژبني تحلیل څخه داسې نتیجه اخیستل شوې ده، چې د اسلامي عصر په لومړیو پېړیو کې پښتو په شرقي خواوو کې پهلوي ژبې ته نژدې وه.

د غزني د لویکانو د دغه یو پښتو بیت له دې لنډې یادونې وروسته بېرته خپل اصلي مقصد ته راګرځم او د پښتو ادبیاتو دایجاد هغه لومړني درې مرکزونه بیم، چې په اسلامي لومړیو پېړیو کې هلته پښتو اثارو د ایجاد زمینې درلودې او د پښتو هغه لومړني لیکلي اثار چې موږ ترلاسه کړي دي، په دغو دریو سیمو کې ایجاد شوي دي.

(ا) غور: غور د افغانستان یوه لرغونې او تاریخي سیمه ده، چې د پاچاهیو سلسلې پکې تېرې شوې دي او د دې سیمې پاچهانو د اسلام د مقدس دین دخورولو په چارو کې هم لویه برخه درلودې ده.

د پښتنو په لرغونو اوسیدنځایونو کې یوه هم د غور سیمه شامله ده، چې د غور له سوریانو سربېره د پښتنو د ځینو نورو قبایلو نسبت هم له دې سیمې سره ښکاره دی.

د پښتنو په قبایلو کې یوه لویه قبیله، د غوري یا غوریا خېلو پښتنو ده، چې د تاریخي اثارو او نسبي تحقیق د کتابونو د روایاتو له مخې د کند بن خرشبون بن سړبن په اولاد کې د غوري په نامه د یو تن ذکر راځي. د مخزن افغاني د روایت له مخې د دې سړي اصلي نوم شیخ ابراهیم و، خو څنګه چې په غور کې زوکړې و، نوځکه د غوري په نامه مشهور و اواولاده یې تراوسه د غوري او یا غوریا خیل په نامه یادېږي. په غوري پښتنو کې څلور لویې قبیلې شاملې دي: دولت یار، خلیل، زېراني او ځمکني، چې بیا دې هرې قبیلې ته نورې لسګونې پښتنې قبیلې او پښې منسوبې دي.

د غور د اوسني مرکز چغچران شرق ته اوس هم د دولت یار په نامه یو کلی شته، چې د غوري پښتنو د دولت یار د قبیلې له نامه سره اړه لري.

د استاد پوهاند عبدالشکور رشاد د تحقیق له مخې دغه غوري پښتانه د چنګیزخان (۶۲۴هـ ق مړ) له بریدونو وروسته له غور څخه کوچېدلي دي، مخ په جنوب او شرق رالېږدېدلي دي.

له غوريا خېلو پښتنو سربېره د نورو ډېرو پښتني قبيلو داوسېدو پخوانـی تاتوبی هم غور و او ډېرې پښتني قبيلې له دې سيمې څخه نورو سيمو تـه تللې او خـورې شوې دي. له دغو تاريخي رواياتو او اسنادو ښکاري چې د اسلامي عصر پـه اوايلـو کې د غور زياتره اوسېدونکي پښتانه وو او د دوی ژبه پښتو وه.

زموږ د هېواد نوميالي مورخ ارواښاد مير غـلام محمـد غبار پـه خپـل يـو اثـر (افغانستان و نگاهی به تاريخ آن) کې ليکلي دي چې د غور قديمي آريايي ژبـې د ختونو په تېرېدو سره خپل ځای خپنو محلـي‌لهجـو او پښتـو تـه پرېښود او د غـور سيمو ته د پښتنو دېرله پسې مهاجرتونو له امله دا ژبـه هلتـه عامـه شـوه. د غـور لـه پاچهي کورنيو څخه يوه کورنۍ د سوريانو ده په طبقات ناصري کې د قاضي منـهاج السراج جوزجاني د ليکنو له مخې د ضحاک (پښتو: سهاک) پـه اولاده کـې دوه ورونه وو، چې د يو نوم سور او د بل سـام و، سـوريي مشـر ورور او پـاچـا و او دا بـل يـې دلښکرو مشر و، تر اسلامي عصره دمخه دوی په غور کې پاچاهي درلوده.

دغه دغور سوري شاهي کورنۍ پـه تـاريخونو کـې د شنسبانيانو پـه نامـه هـم مشهوره شوې ده او دا ځکه چې د دې کورنۍ يو مشر نيکـه شنسـب (شـين اسـپ) نومېده، چې د پلار نوم يې خرنک و، دا شنسب د حضرت علـي (رض) پـه زمانـه کـې مسلمان شوی او د غور پاچا منل شوی دی.

د شنسب زوی امير پولاد و، چې د خپلو پلرونو نوم يې بيا راژوندی کړ.

هغه وخت چې ابومسلم مروزي د بني اميه اميران له خراسان څخـه وشـړل او د بني عباس په پلوی ودرېد، نو امـير پـولاد د غـور لښـکرې د ابـو مسـلم پـه مـدد وکوچولې او د آل عباس د پاچهۍ د ټينګښت لپاره يې ډېرې هڅې وکړې.

د امير پولاد د پاچهۍ مرکز د غور په منديش کې و، کله چـې دی وفـاتېده نـو يې پاچاهي زامنو ته ورسېده.

د پښتو د ادبي تاريخ يوه مهمه منبع پټه خزانه ده، په دې کتاب کـې دمعتـبرو پخوانيو کتابونو، نکه د شيخ کته متـي زی (لرغونـي پښتانـه) او د محمـد بـن علـي البستي (تاريخ سوري) په استناد راغلي دي، چـې د امـير پـولاد سـوري زوی، امير کروړ و، چې په ۱۳۹هـ ق کال د غور په منديش کې پاچا شو.

امير کروړ د غور کلاوې بالشتان، خيسار، تمران، برکوشک او نـور ونيـول. د ده پاچهي دوه مرکزه درلودل، يو منديش او بل زمينداور امير کروړ ډېر غښتلی پـهلوان و، چې په يوازې ځان به له سلو تنـو سـره جنګېده، ده هـم د عباسـي دعـوت پـه جنګونو کې ګډون درلود او ډېرې برياوې يې ترلاسه کړې.

امیر کروړ عادل پاچا و او له دې سربېره ده په پښتو اشعار هم ویل. امیر کروړ په ۱۵۴هـ ق کال دپوشنج په جګړو کې مړ شو، او پر ځای یې د ده زوی امیر ناصر پاچا شو.

د امیر کروړ کوم شعر چې پټې خزانې راوړی دی، دا دی:

زه یم زمری پر دې نړی له ما اتل نسته
په هند و سند و پر تخار او پر کابل نسته
بل په زابل نسته له ما اتل نسته

غشي دمن مې ځي بریښنا پر میرځمنو باندې
په ژوبله یو نم یرغالم پر تښتېدونو باندې
پر ماتېدو نو باندې له ما اتل نسته

زما د بریو پر خول تاویږي هسک په نمنځ او په ویاړ
د آس له سوومې زمکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ
کړم ایوادونه اوجاړ له ما اتل نسته

زما د توري ترشپول لاندې دي هرات و جروم
غرج و بامیان و تخار بولي نوم زما په اودوم
زه پېژندوی یم په روم له ما اتل نسته

پر مرو زما غشي لوني، داري دښمن راځخه
د هریوا لرود پرخندو ځم تښتي پلن راځخه
رپي زړن راځخه له ما اتل نسته

د زرنج سوبه مې د توري په مخسو روکړه
په باداري مې لوړاوی د کول د سور وکړه
ستر مې تربور وکړه له ما اتل نسته

خپلو وګړو لوره لور پېرزوینه کوم
دوی په داوینه ښه پامم ښه یې روزنه کوم
تل یې ودنه کوم له ما اتل نسته

پر لویو غرو مې وینا درومي نه په خندو په تال
نري زما ده نوم مې بولې پر دریخ ستا یوال
په ورخو شپو، میاشتو کال                له ما اتل نسته

دا لوړ شعر د پښتو تر ټولو پخوانی لاس ته راغلی شعر دی چې د اسلامي عصر په دویمه پېړۍ کې د غور یوه پښتانه پاچا امیر کروړ سوري ویلی دی.

تر دې شعره بل پخوانی شعر تر اوسه نه دی ترلاسه شوی، امکان لري په آینده کې د امیر کروړ تر شعره ډېر پخواني پښتو اشعار کشف شي.

څنګه چې غور د پښتنو یو لرغونی ټاټوبی و، دغه رنګه تراوسه معلوم لاس ته راغلی پخوانی شعر هم همدغې سیمې ته منسوب دی، نو په دې اساس موږ غور د پښتو ادبیاتو د ایجاد په لومړنیو مراکزو کې قدیمترین مرکز بللی شو.

د امیر کروړ سوري لاس ته راغلی قدیم شعر دغه لاندې ځانګړنې (خصوصیات) لري:

۱) د امیر کروړ سوري لاس ته راغلی پارکی چې د پټې خزانې پانو تر موږه رارسولی دی، د متونو د استناد له معمولو نورمونو سره برابر دی، دا څکه چې پټې خزانې دا متن (د امیر کروړ سوري شعر) د شیخ کته متي زی له لرغوني پښتانه څخه اخیستی دی او د پټې خزانې مؤلف د لرغوني پښتانه ماخذ، هم رانبوولی دی، چې هغه د محمد بن علي البستي تاریخ سوري دی او دا په دې مانا چې شیخ کته د امیر کروړ په باب معلومات او د ده شعر له تاریخ سوري څخه اخیستی دی.

د تاریخ سوري ماخذ معلوم نه دی، چې په دې کتاب کې به د امیر کروړ سوري شعر له کومه ځایه اخیستل شوی وي، ډېر احتمال شته، چې دا پارکی دې د ویلو له وخته د تاریخ سوري د تالیف تر وخته (۶۵۰هـ ق حدود) په شفاهي ډول د خلکو په منځ کې خور راغلی وی، او د راویانو حافظو دې تر محمد بن علي البستي پورې رارسولی وي، دا عنعنه تراوسه زموږ په ولس کې موجوده ده او د پښتو ډېر ادبي آثار په کلیو او باندو کې د پېریو په ترځ کې سینه په سینه انتقالېږي.
د امیر کروړ سوري د شعر د انتقال او ضبط روش د شرقي څېړنو له معمولو روشونو سره سل په سلو کې موافق دی، نو څکه موږ ورته یو مستند متن ویلی شو.

۲) د امیر کروړ لاس ته راغلی شعر د اشعارو دمعنوي ډولونو له پلوه ویاړنه یا فخریه ده. چې شاعر خپلې بریاوې، سوبې، مېړانې او د هغه زمان له شرایطو سره سم خپل افتخارات پکې بیان کړي دي.

د دا ډول شعرونو ویل هغه وخت په عربو او عجمو کې باب وو او د منطقي پـه ادبي جریاناتو کې دغه ډول اشعارو لاره درلوده. د امیر کروړ د شعر له روحیې سـره د برابرو اشعارو او آثارو ځینې بیلګې د اسلامي عصر د لومړیو پېړیو په شاوخوا کـې د سیمې په ژبو کې سړی لیدلای شي.

اوله دې څېړنو څخه نتیجه اخیستلای شو، چې د امیر کروړ شعر د خپـل زمـان له روحیې سره برابر ایجاد شوی دی.

۳) د شکلي جوړښتونو له پلوه د امیر کروړ ویاړنه نه د شرق له دیوانـي شـعري ډولونو، لکه قصیده، غزل، ترکیب، ترجیع، مخمس، مسدس او نورو سره یو شـانوالی لري او نه سل په سلو کې د پښتو شاعرۍ له خپلو ملي شعري انواعو او اوزانـو، لکـه چاربیتو، بدلو، بګتیو لوبو او کسرونو سره یو شانوالی لري نوځکه ښاغلي حبیـب الله رفیع دغه ډول سندرې د پښتو لرغونې سندرې بللې دي او له خپلو څېړنو څخه یـې دا نتیجه ایستلې ده، چې دا ډول لرغونې سندرې د زړو آریایي سـندرو او د پښتـو د ولسي سندرو تر منځ د اتصال یوه کړۍ ده. دامیر کروړشـعر هـم د پښتـو پـه دغسـې لرغونو سندرو کې شاملېږي. که سړی د امیر کروړ د شـعر شـکلي جـوړښت د اوسـتا دیشتونو له ځینو برخو سره پرتله کړي، د دغو یشستونو او د امیر کروړ د شـعر ترمنـځ ډېر نږدیکتونه لیدای شي.

کاندید اکادمیسن محمد صدیق روهي ویلي دي، چې د امـیر کـروړ ویاړنـه د اوستا له زامیادیشت او مهریشت اودریګویدا له ځینو سندرو سره پرتله کېدای شي.

۴) د امیر کروړ شعر د ژبنیو او لغوي څېړنو له نظره هم د توجه وړ دی، ځینـې ترکیبونه او لغات په دې شعر کې شته، چې د پښتو لغت پوهانو او ژبپوهـانو لپـاره د تحقیق زمینې لري. که څه هم د امیر کروړ د شعر له ویلو کابو څه دپاسه دوولس نیم سوه کاله تېرېږي او له هغه وخته چې تـر مـوږ رارسـېدلی پـه غـالب ګمـان یـې پـه شفاهي او تحریري ډول د انتقال بېلابېل مراحل تیر کړي دي، پـه دغسـې مـواردو کې هرومـرو پـه متـن کـې د لاسـوهنو او د کلمـاتو او لغـاتو او تراکیبـو د تبدیلـی امکانات شته، خو موجوده بڼه یې ځینې داسې تراکیب او لغات لري، چې پـه عامـه پښتو ژبه کې یې ځینې اوس متروک دي او دا امکـان شـته، چې د پښتـو پـه ځینـو غرنیولهجو کې لا تراوسه موجود وي.

۵) د امیر کروړ د شعر ژبه لا تراوسه خپله رواني لري، سره لـه دې چې ځینـې لغات یې په عامه پښتو کې نه استعمالېږي، خو بیا همدا ژبه ډېره سخته او نا اشنا نـه ده او کېدای شي چې ځینې لوستونکي دا سوال وکـړي، چـې پـه دې څه دپاسـه دوولس نیم سوو کلونو کې پـه پښتـو کـې ډېر زیـات ژبنـی تحـول نـه دی راغلـی؟

دغسې احتمالي پوښتنو ته په ځواب کې باید ووایو چې په پښتو ژبه کې د تغییر او تحول پروسه د اروپايي ژبو او حتی د پښتو د ځینو ګاونډیو ژبو په څېر نه ده اودا څکه چې د دې ژبې د ویونکو په اجتماعي اقتصادي ژوند کې هسې تحول نه دی راغلی، لکه د نورو هغو چې راغلی دی. په ژبه کې د تحول پروسه د ژبې د ویونکو د اجتماعي، اقتصادي او فرهنګي ژوند د تحول له پروسې سره متناسبه ده.

که چېرې د امیر کروړ په شعر کې د انتقال د دومره اوږده جریان په ترڅ کې د تغییراتو او لاسوهنو احتمالات هم په پام کې ونیسو، نو بیا د ده د شعر پر ژبه د څه ویلو مجال نه پاتېږي.

٦) د امیر کروړ د شعر له مطالعې سرې ته تر یوه حده د شاعر فکري سیر او د هغه زمان د پښتنو روحیه او هغه د استاد عبدالحی حبیبی خبره له خپل تبر سره د امیر کروړ مینه ښه تراځرګندېږي.

٧) د امیر کروړ له زمانې وروسته تر څو پېړیو پورې په غور کې د پښتو ادب د ایجاد زمینې نورې وې او د هغه وختني غور په توابعو کې د پښتو ډېر نور آثار هم ایجاد شوي دي، چې د دې کتاب په بېلابېلو برخو کې به خبرې ورباندې وشي.

د دې بحث په نتیجه کې باید ووایو چې غور، لکه څنګه چې د پښتنو په لرغونو ټاټوبو کې شامل دی، دغه رنګه تراوسه لا د پښتو ادبیاتو د ایجاد لومړنی سیمه هم ده.

**(٢) د کسي غر:** د پښتنو په لرغونو اوسېدنځایونو کې یوه ډېره مشهوره او تاریخي سیمه د سلیمان د غرونو لمنې دي، د دې غرونو لمنې د شپږو سوو کیلومترو په شاوخوا کې اوږدوالی لري او پښتانه له ډېرې لرغونې زمانې تراوسه په کافي تعداد د دغو ډېرو مشهورو غرونو په لمنو کې استوګنه لري.

دغه د سلیمان غرونه په ځینو کتابونو او تاریخي آثارو کې (د کسې غره) په نامه هم راغلي دي او د جنوبي پښتونخوا، بلوچستان، ډېرو او د کندهار د شاوخوا خلک اوس هم د سلیمان غرونه د کسې د غره په نامه یادوي.

څنګه چې د کسي د غره په لمنو کې له ډېرې پخوا زمانې څخه پښتانه میشت وو، نو دوی د خپلې تولنې له شرایطو او د دوی په جامعه کې د مسلطو فرهنګي نورمونو سره برابر ادبیات هم درلودل او دغه ادبي روایات او د ادبي آثارو د ایجاد پروسه په شفاهي او تحریري بڼه له ډېرې پخوا زمانې نه تراوسه پورې ددغه بختور غره په لمنو کې د میشتو پښتنو قبایلو ترمنځ، جریان لري.

په سلګونو پښتانه شاعران د دې غرونو په لمنو کې روزل شوي دي او د پښتو د شفاهي ادب يوه عمده او بهانده چينه د همدغو غرونو په لمنو کې د ميشتو پښتنو په سيمو کې موجوده ده. د پښتو ادبياتو په دوو لرغونو تذکرو (تذکره الاوليا) او (پټه خزانه) کې د کسې غره په لمنو کې د خينو اوسېدلو پښتنو خينې زاړه او پخواني شاعران خوندي دي. چې د دغو اشخاصو او اشعارو زمانه زموږ مورخانو د دريمې هجري پېړۍ له اوايلو ان تر څلورمې او پنځمې پورې ګڼلې ده، څنګه چې دا آثار د پښتو په لومړنيو ادبي آثارو کې درېږي، نو ځکه ما هم (د کسې غر) د پښتو ادبياتو د ايجاد په لومړنيو دريو مراکزو کې حساب کړ.

د کسې د غره په لمنو کې د روزل شويو شاعرانو په ډله کې تر ټولو معلوم پخواني سړی، شيخ بيټني (رح) دی چې د ژوند زمانه يې د دريمې هجري پېړۍ شاوخوا ټاکل کېدای شي.

د شيخ بيټني يو مناجات سليمان ماکو په تذکره الاوليا کې راوړی دی، چې د پښتو د زړو اشعارو په لړ کې ډېر مهم شعر دی او خينې داسې ټکي يې له پاړکي څخه ترلاسه کېږي، چې؛ په فکري لحاظ له ډېرو زړو آريايي افکارو سره نښتون لري. د شيخ بيټني مناجات دا دي:

لويه خدايه، لويه خدايه ستا په مينه په هرځايه
غر ولاړ دي درناوي کې ټوله ژوي په زاري کې
دلته دي د غرو لمنې زموږ کېږدۍ دي پکې پلنې

دا وګړي ډېر کړې خدايه
لويه خدايه، لويه خدايه

دلته لږ زموږ اوربل دي ووړ کوړګی دي ووړ بورجل دي
مينه ستا کې موږ ميشته يو بل د چا په مله تله نه يو
هسک او مځکه نغښته ستا ده د مرو وده له تا ده

دا پالنه ستا ده خدايه
لويه خدايه، لويه خدايه

له شيخ بيټني سربېره د اسلامي عصر په دريمه او څلورمه پېړۍ کې د دې سيمې دوه نور شاعران هم موږ ته معلوم دي، چې خينې آثار يې پښتو تذکرو تر موږه پورې رارسولي دي. په دغو شاعرانو کې يو هم شيخ اسماعيل دی، چې د ده دوه پاړکي زموږ په واک کې دي. په دغو دوو پاړکو کې يو يې د تذکره الاوليا پانو او بل يې پټې خزانې خوندي کړي دي.

د شيخ اسماعيل هغه دوه پاړکي دا دي:

١

تېښته وکــړه لــه ابليســه چې ابليـس لعين ښکـاره سي

هلتــه ورکــه پلوشــه ســي تول نړۍتــوره تيــاره ســي

ســړی وران ســي لــه ابليســه غــوځ د پــس پــه کــتاره ســي

کــه هــرچــا ابليس خــرخ کــړ نــو يــې هلــه ننــداره ســي

کــه ســړی ابليـس تــه پړ ســو نــو پــر کــور د ويــر نــاره ســي

٢

کــه يــون دی يــون دی مخ کې ببلتــون دی

لــه کســې غــره ځخــه ځي خربښــون دی

تــه چې بيلتــون کــړې زمــا ويــر تــه ګوره

چــې ځې مرغــی لــه تــورې کرغــې لــه

همــــزولي پاتــــه ځی څه برغــې لــه

د خــــدای د پــــاره خربښــــون يــــاره

چــې هېرمــو نــه کــړې زمــوږ کــهول واړه

زړه مــــې رپــــېږي يــــار مــــې ببلــــېږي

ببلتــــون يــــې اور دی ځان پــــه ســــوځېږي

د شيخ اسماعيل په دوو راغلو پاړکو کې يې لومړی په تذکره الاوليا کې او دوهم يې په پټه خزانه کې راغلي دي د شيخ اسماعيل له پاړکو سربېره د کسې د غره په لمنو کې دغه وخت د يو بل پخواني ويناوال د وينا نمونه هم پټې خزانې تر موږه رارسولې ده، دا ويناوال خربښون دی، چې د وينا نمونه يې لاندې وړاندې کېږي:

ببلتانــه نــاره مــې وســوه پــه کــور بــاندې

نــه پوهــېږم چــې بــه څه وي پــېښ پــه وړانــدې

لــه خپلوانــو بــه ببلــېږم پــه ســرو ســترګو

دواړه ســترګې مــې پــه وينــو دي ژړانــدې

اســماعيله ســتا نــارو مــې زړګی ســری کــئ

ببلتانــه خربښــون بيــا لــه تــا پــردی کــئ

نــه هــېرېږي، کــه مــې بيــا نــه ستايادی کــئ

پــه چــړو د ويــر بــه پــرې ســي د زړه مرانــدې

خمه خمه چې اورد يـون مـې دی ومـخ تـه
د يانـه څوری بـه اچـوم و تـرخ تـه
ستاسې يـاد بـه مـې وي بـس د زړه و سـخ تـه
کـه دا ځمکـه غرونـه ټول سـې لانـدې بـاندې

په تېرو مخونو کې تاسې د دريو تنو پښتنو ويناوالو اشعار ولوستل، چې دغو درې تنو د اسلامي عصر د دريمې او څلورمې پېړۍ په حدودو کې ددغـه تاريخي غره په شاوخوا کې ژوندکړی دی، د دغو دريو تنو او د دوی د اشعارو په باب موږ خپله ارزيابي داسې وړاندې کولای شو:

۱) دغه درې کسه شيخ بيټني، شيخ اسماعيل او خرښبون د اسلامي عصر په دريمه پېړۍ او د څلورمې پېړۍ په شاوخوا کې د کسې په غره کـې اوسېدلي دي او د هغه زمان د دې سيمې په پښتنو کې د نوم او شهرت خاوندان وو. دلته بـايد دا خبره هېره نه کړو، چې د دوی تر زمانې دمخـه پښتانـه پـه غـور او د سليمان پـه غرونو او د اوسني افغانستان اوروه په سيمو کـې خپـل سياسـي او ملـي شـهرت تـه رسېدلي وو او حتی د دوی تر زمانې دمخه يې د هندوستان سيمو ته هم نفوذ کړی و.

۲) د کسې د غره په لمنو کې د پښتو آثارو د دغو دريـو لومړنيـو هستوونکو لـه ډلې څخه د شيخ بيټني د ژوند زمانه استاد حبيبي د ۳۰۰هـ ق شاوخوا ټاکلـې ده. د خرښبون د مرګکال پټې خزانې په ۴۱۱ هـ ق کال په غوره مرغه کـې ښوولی دی او د اسماعيل د ژوند زمانه هم همدغه مهال ټاکل کېدای شي، ځکه دا دواړه هـم عصره وو، او دواړو يو د بل په بېلتانه کې سوې نارې ويلـې دي. پـه مخـزن افغـاني کې د نعمت الله هروي د ليکنې له مخې د اسماعيل قبر په وازه خوا کې واقـع دی او وازه خوا هم د سليمان د غرو په لمنو کې واقع ده.

۳) د کسې د غره په لمنو کې دغه لومړني ايجاد شوي پارکي د خپلو جوړښتي خصوصياتو له مخې د پښتـو د لرغونـو سـندرو پـه جملـه کـې حسابېږي. يـوازې د اسماعيل يو پارکی په شکلي لحاظ په ظاهري ډول قطعې ته پاتېږي، خو موږ وايـو، چې دا ټوټه شعر د شرقي شاعرۍ د قطعې ټول شرايط د وزن او تـول لـه نظره نـه لري، او زموږ د پښتو کسرونو په ابتدايي ډولونو کې يې درولای شو.

۴) دغه اشعار په موضوعي لحاظ د بېلابېلو موضوعاتو بيانوونکي دي.

الف: د شيخ بيټني په مناجات کې يوه اورنی الهي مينه په ډېرو سـاده الفـاظو کې بيان شوې ده او موږ له دغه مناجاته څخه په پښتو ادبياتو کې د عرفاني افکـارو د پيدا کېدو لومړنی او ابتدايي څرکونه هم ايستلای شو.

ب. په دغه مناجات کې شيخ بيټني د خپلو خلکو د زياتېدو هيله ځرګنده کړې ده، دغسې افکار په زړو آريايي ادبياتو کې هم بيان شوي دي. استاد عبدالحي حبيبي د شيخ بيټني دغه مناجات دريګويداله ځينو سندرو سره مقايسه کړې دي او د شيخ او دريګويد د يوې سندرې تر منځ يې مشابهتونه ښوولي دي.

ج. د شيخ بيټني د مناجات له مطالعې ځخه د هغه وخت د پښتنو د ژوندانه اشکال هم ښکاري.

د. د شيخ اسماعيل يو پارکی ديني او اسلامي روحيه لري او د همده بل پارکی او د خرښبون پارکی د کورنۍ د غړو تر منځ، د مينې او محبت روحيه تمثيلوي.

هـ. د کسی دغره په لمنو کې دغه ايجاد شوي لومړني پارکي، د پښتو په لومړنيو پارکيو کې حسابېږي، نو ځکه په دغسې اشعارو کې د هنري ښېګنو او ښکلا پلټنه چندان مورد نه لري، خو بيا هم د شيخ بيټني په مناجات کې يوه ساده او ابتدايي ښکلا ليدل کېږي.

**(۳) ملتان**: د مورخانو او د تاريخي کتابونو له ليکنو معلومېږي، چې د لومړيو دوو اسلامي پېړيو په شاوخوا کې پښتانه په کافي تعداد د سليمان د غرو له لمنو او د پښتونخوا له سيمو د سند او پنجاب سيمو ته ورغلی او ميشت شوي وو.

ځينې مورخان په دې عقيده دي، چې په لومړيو اسلامي پېړيو کې په سند او ملتان کې د اسلامي حکومتونو د ټينګښت يو دليل په هغو سيمو کې دپښتنو موجوديت وو د پنجاب او سند سيمو ته کوچېدلي پښتانه د خپل شجاعت او مردانګۍ له پلوه په سيمه کې د راجاګانو اومحلي حکومتونو د توجه وړ وو.

له همدې امله د پنجاب په غربي برخو او ملتان کې له اوسېدونکو پښتنو ځخه شيخ حميد لودي د ۳۷۰هـ ق په شاوخوا کې د لاهور او پنجاب د راجا له خوا له ملتان نه نيولې تر لغمان پورې د پرتو شاوخوا سيمو حکمدار وټاکل شو او راجا جيپاله د دغو پښتنو د حکومت په وسيله له خپلو غربي سرحدونو خان ډاډمن کړ او په دې توګه د ځلورمې هجري پېړۍ د دوهمې نيمايي په جريان کې د ملتان د لوديانو د حکمرانۍ بنسټ د شيخ حميد لودي له خوا کښېښول شو او په دې ډول پښتانه په اسلامي عصر کې د هند په يوه برخه کې قدرت ته ورسېدل، چې د غربي پنجاب له ځينو برخو او ملتان نه سربېره د پښتونخوا او اوسني افغانستان ځينې سيمې يې هم تر لاس لاندې وې او د پاچهۍ مرکز يې ملتان و.

تر شيخ حميد لودي وروسته د لوديانو د پاچاهۍ سلسله د ده په کورنۍ کې جاري وه، په شيخ حميد پسې د ده زوی نصر او بيا يې لمسی داود د ملتان د لودي کورنۍ حکمرانان وو، د دې کورنۍ بقايا تر ۴۳۲هـ ق پورې هلته وو.

د ملتان د لودي شاهي کورنۍ يادونه مو په دې خاى کې خکه وکړه، چې له دغې شاهي کورنۍ څخه دوه تنه داسې کسان موږ ته ښکاره دي چې په پښتو پارکي څنې پاته دي، نو د همدغو دوو تنو پخوانيو پښتنو وېناوالو د موجوديت له امله موږ د ملتان سيمه د پښتو ادبياتو د ايجاد په لومړنيو مرکزونو کې وشمارله.

د ملتان د لودي شاهي کورنۍ په دوو تنو وېناوالو کې يو نصر لودي دی او بل شيخ رضی لودي.

د نصر لودي او شيخ رضی لودي لږ احوال او اشعار شيخ احمد ابن سعيد اللودي په خپل کتاب (اعلام اللوذعي فی اخبار اللودي) کې راوړي دي. دا کتاب په ٦٨٦هـ ق کال کې ليکل شوی دی.

د دغو دوو لودي پښتنو اشعار او احوال بيا کامران خان سدوزي په خپل کتاب (کليد کامراني) کې د دمخني ياد شوي شيخ احمد ابن سعيد اللودي د کتاب له مخې راوړي دي.

کليد کامراني په ۱۰۳۸هـ ق کې د کندهار په ښهر صفا کې ليکل شوی دی او د دغه کليد کامراني له مخې بيا دغه اشعار او احوال محمد هوتک په پټه خزانه کې اخيستي دي، په دې ډول موږ وينو چې د ملتان د لوديانو اشعار په درېو واسطو تر موږه پورې رارسېدلي دي. په دغو دوو تنو وېناوالو کې نصر لودي د شيخ حميد لودي زوی دی، چې تر خپل پلار وروسته په ملتان کې پاچهۍ ته هم رسېدلی دی. د پاچهۍ زمانه يې استاد عبدالحی حبيبي د ۳۹۰هـ ق شاوخوا ښوولې ده.

د دې کورنۍ بل وېناوال شيخ رضی لودي دی، چې دی د شيخ حميد لودي وراره او د نصر لودي د اکا زوی و.

شيخ رضی لودي د شيخ حميد لودي د پاچهۍ په زمانه کې د اسلام د مقدس دين د تبليغ له پاره پښتونخوا ته تللی و. پټه خزانه وايي، چې دی دوه کاله د کسی په غره کې ګرځېده او ډېر خلک يې مسلمانان کړل.

پټې خزانې د دغو دوو سره تره زامنو شيخ رضی لودي او نصر لودي دوه پارکي خوندي کړي دي او دا پارکي د ليکونو (خطونو) په بڼه تبادله شوي دي. په دې پارکو کې لومړی پارکی د شيخ رضی لودي دی، چې د کسې له غره نه يې ملتان ته خپل د اکا زوی نصر لودي ته استولی دی، هغه شعر دا دی:

| | |
|---|---|
| د الحاد په لور دې تر پلل | ګروه دې زموږ وکوراوه |

مــوږ رونلــي پــه زيــار نــه
تــا پــه تــور وتــوراوه
لرغــون ولــي ګروهــېدلي
چــې دې ګوښي اړاوه
هغــه ګروه دې اوس آږه کــړ
چــې پلــرو دې رناوه
لودي ستا پـه نامـه سـپک سـو
کــه هــرڅو مــو درنــاوه
نصـره نــه مــو يــې لــه کهالــه
لــودي نــه يــې پــه کــاوه
زمــوږ رغــا ده ســتا لــه ګروهــه
دورخلــوی پــه رغــاوه

کله چې دا ليک په ملتان کې نصر ته رسېدلی دی، نو يې ده ځواب په لاندې ډول ويلی دی، د نصر لودي ځواب دا دی:

د الحــاد پــه تــور، تــورن ســوم
زه لرغــون خــو ملحــد نــه يم
زمــا دښــنه هســې تــو راکــړی
کــه ملجــد يم د دښنــه يم
لــه اســلامه نــه تــر پلمــه
تورانــو ځخــه پــه تــرپلــه يم
ګروه مــې هغــه لرغونــی دی
اوس هــم کــروږ پــه لرغونــه يم
د اســلام پــر هســک بــه ځلــم
وتورانــو تــه تيــاره يم
د لــودي زوی ســنتي يم
د حميــد لــه لــوږ کهالــه يم
تورانــي دښن چــې وايــي
زه لــه ګروهــه پــه اړه يم
دا يــې تــور تاســې دروهــوی
زه مومــن ستاســې پــه تلــه يم
د دښنــو ويــنــاوې مغــږه
زه لــودي يمــه ځو زه يم

په دې دوو لوړو شعري ټوټو کې شيخ رضی د خپل اکا زوی نصر ته ويلي دي، چې ته له سنته او خپلې لارې اوښتی يې او د پلرو عقيدوي لار دې پرېښې ده.

نصر په ځواب کې ويلي چې زه پر سنت ټينګ يم، کوم تورونه چې د لارې د پرېښودو په باره کې پر ما لګول شوي دي، هغه دروغ دي.

په دغو شعرونو کې راغلې خبرې له ځينو تاريخي وقايعو سره اړه لـري، چې د اشعارو د مفاهيمو د پوهېدو له پاره موږ اړ يو چې دغه تاريخي مسايل لنډ تشريح کړو.

د ملتان لودي شاهي کورنۍ د غزني له پاچهانو سره په رقابت کې واقـع وه او تل به د غزني د پاچهانو له خوا د ملتان پر لوديانو حملې کېدلې او تر هغې چې د دې کورنۍ د پاچهۍ سلسله د غزنوي پاچهانو له خوا ختم کړل شـوه. مورخين په دې عقيده دي چې د ملتان پر لوديانو د قرمطيت او الحـاد تورونـه هسې خوشې بابيزې خبرې دي او د همدې تور په وسيله دغزني پـاچـهانو د ملتـان د لوديـانو د ټکولو لپاره خانته يوه بانه پيدا کوله. که نه وي د ملتان لوديان هـم مسلمانان وو او د غزني پاچهان هم مسلمانان وو، نو څنګه کېدای شول چې يو مسلمان پاچا دې پر بل لښکر وکړي؟ همدا علت و، چې د ملتان پر لهديانو د الحـاد او قرمطيـت تورونـه

لګول کېدل او دا يې ښوول چې دوی له اسلامي سنته او اسلامي لارې اوښتي دي او په دې توګه يې د دوی د وهلو او پر دوی د حملې لپاره شرعي جواز پيدا کاوه. لکه چې تاسې د نصر لودي په جوابيه پارکي کې ولوستل، نصر د الحاد تورونه رد کړي دي او ويلي يې دي، چې زه مومن يم او پر خپله پخوانۍ لاره ټينګ يم.

ملتان يو له هغو سيمو څخه ګڼل کېږي چې په اسلامي څلورمه پېړۍ کې هلته د پښتو ادبياتو د ايجاد زمينې موجودې وې. ملتان په پخوانۍ هند کې تر اوسه معلومه لومړنۍ سيمه وه، چې پښتو ادبيات پکې ايجاد شوي دي. تر دې زماني وروسته د اسلامي عصر په بېلابېلو پېړيو کې پښتانه د هندوستان ډېرو سيمو ته تللي او هلته ميشت شوي دي. د دوی له ميشتېدو سره په هندوستان کې د پښتو ژبې او ادبياتو د ايجاد او ودې زمينې هم برابرې شوې دي او په وروستيو اسلامي پېړيو کې له ملتانه سربېره د هندوستان په ډېرو نورو ښارونو کې پښتو ادبيات ايجاد شول او پښتو آثار وليکل شول، چې دا جريان له څلورمې هجري پېړۍ نه تر نن ورځې پورې راروان دی.

## د ملتان د لودي شاهي کورنۍ د پاړکو ارزښتونه:

د ملتان د لودي شاهي کورنۍ د دوو تنو غړو نصر لودي او شيخ رضی لودي پاړکي د پښتو په پخوانيو منظومو اثارو کې شامل پاړکي دي او د همدغو دوو تنو پښتنو ويناوالو د پاړکو له امله موږ تر غور او د سليمان تر غرونو وروسته ملتان دريم مرکز بولو، چې پښتو منظومې پکې ايجاد شوې دي.

دا منظومې د خپلو شکلي جوړښتونو له امله په ظاهري ډول د شرقي شاعرۍ قطعو ته ورته پاړکي دي، خو موږ ته دا ښکاري، چې دا پاړکي د پښتو د اولسي شاعرۍ کسرونو ته ډېر ورته دي او دا دوه پاړکي موږ د پښتو د لرغونو سندرو په جمله کې شامل ګڼو، چې وروستيو اشکالو يې د کسرونو په بڼه تحول موندلی دی او اوس هم موږ د کتواز او بنو د مروتو او ګنده پورو په سيمو کې ډېر کسروال شاعران پيدا کولای شو.

په معنوي لحاظ دا پاړکي د يوې مناقشې بڼه لري، چې په غالب ګمان د ليکونو په بڼه تبادله شوي دي او د اسلام د مقدس دين او له محمدي سنتونو څخه د پيروی په دفاع کې ويل شوي دي. په يوه پاړکي کې رضی، نصر ته ويلي دي، چې تا خپله اسلامي لاره پرېښې ده، په ځواب کې يې نصر، رضی ته کښلي دي، چې زه پر خپله لاره ټينګ يم، زما په باره کې چې تا څه اورېدلي دي، هغه د

دښمنو تورونه دي، چې په دې حساب دواړه پاړکي په يو ډول د اسلام په دفاع کې ويل شوي دي.

په دې دواړو پاړکو کې ځينې داسې ژبني او گرامري ترکيبونه ليدل کېږي، چې نن په عامه پښتو کې د استعمال موارد نه لري، دغه ډول په دې پاړکو کې ځينې داسې لغات هم شته، چې په عامه پښتو کې يې مورږ نه استعمالوو په دې اساس هم دا دواړه پاړکي د ژبنيو څېړنو له پلوه هم د اهميت وړ دي.

په دې پاړکو کې د هنر پلوشې نه ځلېږي، او د څلورمې هجري پېړۍ د معمولي پښتو په چوکاټ کې يې ساده خبرې په نظم کې راوړې دي.

# د لومړنيو درې مرکزونو ايجاد شوو ادبياتو ته يوه کتنه

په تېر بحث کې موږ هغه درې مرکزونه وښوول، چې د اسلامي عصر په لومړيو پېړيو کې د پښتو لومړني آثار په همدې مرکزونو کې ايجاد شوي دي. دا مهال پښتانه په زيات تعداد کې په همدې سيمو کې پراته وو، غور،د کسې غر او ملتان درې داسې مرکزونه وو، چې پښتنو پکې خپل محلي حکومتونه درلودل او يا يې تر خپل قبيله يي نظام لاندې پکې ژوند کاوه.

د پښتونخوا او افغانستان او پخواني (روه) نورو سيمو کې پښتانه خواره وو او د سند او پنجاب لمنو ته هم په کافي تعداد کې رسېدلي وو او د پنجاب په يوه خورا لرغوني ښار (ملتان) کې يې حکومت هم جوړ کړی و.

په دې مرکزونو کې چې کوم ادبيات ايجاد شوي دي، هغه ادبيات دا لاندې خصوصيات لري:

۱) په اسلامي لومړيو پېړيو کې ايجاد شوي پښتو ادبيات د خپلو شکلي جوړښتونو له مخې د پښتو هغه لرغوني سندرې دي، چې د خپل جوړښت له پلوه له زړو آريايي ادبياتو سره نژدېوالی لري او د پښتنو خپل شعري اوزان دي، چې دغه اوزان د پښتون ولس تر منځ موجود او مروج وو او دا نمونې راښئي گندوي چې د اسلامي عصر د لومړيو څلورو پېړيو په دوران کې په دغو مراکزو کې ايجاد شوي پښتو اشعار په خپلو دغو لرغونو ملي اوزانو کې ويل کېدل.

۲) په دغو سندرو کې ډېر پېچلي موضوعات او افکار نه .ي بیان شوي، بلکه د هغه زمان له غوښتنو او د پښتنو موقعیت ته په پاملرنه د مفاخرې او په حربي او فوجي کارنامو ویاړ، له خپل قوم او کورنۍ سره مینه د دې سندرو د بیان اساسي موضوع ده. د اسلامي اساساتو حمایت هم د دغو سندرو په بیانونو کې شامل موضوعات دي.

۳) د اسلامي لومړیو پېړیو پښتو پارکي، لکه چې د شکلي جوړښت له پلوه خپله ملي بنه لري او د نورو ژبو د شاعرۍ اغېزې پر دې شعري اوزانو او اشکالو نه لیدل کېږي، دغه رنګه د نورو ژبو اثرات هم پر دې اشعارو زیات نه لیدل کېږي، یو نیم د عربي ژبې او نورو ګاونډیو ژبو لغت هم په دغو اشعارو کې شته، چې دا ډول اخیستنې د اسلام د پاک دین له راتګ او له نورو ژبو سره د ګاونډ او راشه درشې له امله طبیعي عمل دی.

۴) په دې مراکزو کې ایجاد شوي اشعار ساده دي او هنري رنګینۍ نه لري او په ځینو کې د هنر تومنه ګرد سره نه لیدل کېږي. ویناوال سک سیخ د خپل مطلب په ویلو پیل کړی دی او د هنري رنګینو خیال یې نه دی ساتلی، خو دا خبره هم باید هېره نه کړو، چې د دې پړاو په اشعارو کې ځینې په ساده ګۍ کې هم ښکلي دي.

ښوونکي دې شاګردانو ته کورنۍ وظیفه ورکړي چې د پښتو ادبیاتو د پیدایښت د دغو دریو لومړیو مرکزونو په باب لنډې مقالې ولیکي.

"۳"

# د نورو ژبو له ادبیاتو سره د پښتو ادبیاتو لومړنۍ اړیکې

د نړۍ د بېلابېلو ولسونو او خلکو تر منځ د ګاونډیتوب او نورو اجتماعي، سیاسي او اقتصادي روابطو تاسیس پر فرهنګ هم خپل مستقیم اغېز لري.

که چېرې موږ د پښتو ادبیاتو په تاریخ کې د نورو ژبو له ادبیاتو سره د پښتو ادبیاتو د ارتباط د څرک ایستلو کوښښ کړو، نو دا څرک په دریمه هجري پېړۍ کې ایستلی شو.

د دریمې هجري پېړۍ په ترڅ کې د بست د سروان د سیمې یو افغان چې ابو محمد هاشم ابن الزید السرواني نومېده، عراق ته ولاړ او هلته یې د دې ځای له علماوو سره ناسته ولاړه درلوده او له ابن خلاد (چې په ابي العینا مشهور و) سره یې په بغداد کې ډېر عمرونه تېر کړل او له هغه نه یې عربي بلاغت او اشعار ولوستل.

ابو محمد هاشم په ۲۲۳هـ ق کال په سروان کې زوکړی و، لومړنۍ زده کړې یې په خپله سیمه کې له علماوو څخه حاصلې کړې وې، بیا عراق ته تللی و. په ۲۹۴هـ ق کال بېرته خپل وطن ته راغی او له راتګ نه درې کاله وروسته په ۲۹۷هـ ق کال وفات شو.

دغه ابو محمد هاشم د خپل استاد ابن خلاد یو عربي شعر په پښتو نظم ترجمه کړی دی، چې دغه په پښتو ترجمه شوی نظم په لرغوني پښتانه کې راغلی دی، او محمد هوتک له هغه کتابه په پټه خزانه کې راوړی دی. هغه ترجمه شوی شعر دا دی:

ژبـه هـم ښه وینا کـاندي چـې یـې وینـه
د خـاوند پـه لاس کـې زر او درهمونـه
ژبـور ورلـه ورځي وینـا یــې اوري
د درهـم خـاوندان تـل وي پـه ویاړونـه
کـه درهـم یـې ځنـې ورک سـو، سـې نتلـی
پـر نـړۍ یـې وي پـه خـړو پـېژندونـه

که بدای سوني وبولي خلق وايي
دا وينا ده ښتيانيه له ښتونه
که بې وزلي ووايي ښتيا خبره
نور ووايي دا خوسوني دی تېرونه
هو درهم ښندي هرچاله لويه برخه
د درهم د خاوند هرځای پرتمونه
درهم ژبه ده که څوک ژبور کېږي
ده وسله که څوک په کاندي قتالونه

د معلومو اسنادو له مخې لوړ نظم په پښتو کې لومړنی ترجمه شوی نظم دی، او له همدغه نظم نه موږ د پښتو په ليکلو ادبياتو کې د ترجمې تاريخ پيل کولای شو او د نورو ژبو له ادبياتو سره د پښتو ادب لومړنی اړيکې هم همدغه مهال پيدا کېږي.

ابو محمد هاشم د پښتو په ادبي تاريخ کې لومړنی سړی دی، چې د يو عرب شاعر فکر يې پښتو ته ورانتقال کړی دی.

د ابو محمد هاشم نظم سره له دې چې له عربي ژبې څخه ترجمه شوی دی، مګر د پښتو ځينې هغه زاړه لغات او ترکيبونه لري، چې په دريمه پېړۍ کې په پښتو کې مستعمل وو، او اوس يې ريښې په ژبه کې په بل ډول موجودې دي. دا نظم د خپلو ترکيبونو او لغاتو له پلوه د ژبې د تحول په تاريخ کې هم د مطالعې ځای لري. د ابومحمد هاشم پارکی په شکلي لحاظ يوه قطعه ده، چې دا شعري ډول له همدې وخته پښتو ادبياتو ته لاره پيدا کوي او پښتو شاعري د شرقي شاعرۍ له شعري ژانرونو سره اشنا کېږي.

په پټه خزانه کې راغلي دي، چې ابومحمد هاشم ابن زيدالسرواني په پښتو ژبه يو کتاب هم ليکلی و چې (دسالو وږمه) يې نوم و. په دې کتاب کې ده د عربي اشعارو فصاحت او بلاغت بيان کړی و. له دې ليکنو څخه ښکاري چې ابو محمد هاشم په پښتو ژبه د تاليف صلاحيت هم درلود. په اسلامي عصر کې چې په پښتو ژبه د کومو ليکل شوو کتابونو نومونه موږ ته رسېدلي دي، په هغو کې د ابو محمد هاشم کتاب (د سالو وږمه) تر ټولو پخوانی کتاب دی او په اسلامي عصر کې تر دې کتاب دمخه د بل پښتو اثر له نامه نه يو خبر (د سالو وږمه) نومي کتاب هم تر موږه پورې نه دی رارسېدلی او پټه خزانه مو يې له نامه خبروي.

<u>**پښتو ادب قصيده خپله کړه:**</u> قصيده د شرقي ژبو د ادبياتو يو ډېر عمده شعري ډول دی او د دغو ژبو د ادبياتو يوه مهمه برخه همدا قصيده جوړوي.

قصیده په عربو کې تر اسلام دمخه هم موجوده وه او له ځینو اسنادو څخه ښکاري، چې له عربو سربېره د ځینو نورو شرقي ولسونو په ادبیاتو کې هم قصیده ډوله شعري اشکال موجود وو. د پخوانی آریانا په زمکو کې د ځینو پرتو ولسونو ادبیاتو تر اسلام دمخه قصاید درلودل، لکه چې ویل شوي دي د پهلوي ژبې ځینې نظمونه هم د قصیدې جوړښت لري.

د موجودو لاس ته راغلو اسنادو له مخې د پښتو تر ټولو پخوانی لاس ته راغلې قصیده د اسلامي دوران د پنځمې پېړۍ په اوایلو پورې اړه لري او هغه پخوانی شاعر چې د پښتو پخوانی لاس ته راغلې قصیده یې ویلې ده، شیخ اسعد سوري دی.

د شیخ اسعد سوري قصیده د تاریخ سوري مؤلف راوړې ده او له دې کتاب څخه شیخ کته متي زي په لرغوني پښتانه کې اخیستې ده او له لرغوني پښتانه څخه محمد هوتک په پټه خزانه کې خوندي کړې ده. شیخ اسعد سوري د محمد زوی و، په غور کې یې استوګنه درلوده او د غور د سوري شاهانو په دربار کې د عزت خاوند و.

داسې ښکاري چې شیخ اسعد د غور له سوري شاهانو څخه د امیر محمد سوري معاصر و او د غور په آهنګرانو کې د دغه سوري پاچا په دربار کې اوسېده. شیخ اسعد د امیر محمد سوري تر مړینې وروسته هم ډېر کلونه ژوندی و او په ۴۲۵هـ ق کال په بغني کې وفات شو. دابغني دغوراو زمینداورتر منځ واقع سیمه ده.

شیخ اسعد سوري د پښتو پخوانی قصیده ویونکی شاعر دی او د ده یوه پخه او په ټول تللې په هنري ښکلاوو سمباله قصیده زموږ په واک کې ده، چې شاعر دا قصیده د غور د افغان سوري پاچا امیر محمد سوري پر مړینه ویلې ده. دا قصیده ټوله ۴۴ بیته ده او د یوې ښې او په فن پوره قصیدې ټول لوازم پکې شته.

د شیخ اسعد قصیده په دې تمهیدي بیتونو پیل کېږي:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوی هرګل چې خاندي په بهار
هر غټول چې په بیدیا غوړېده وکا
ریژوي یې پاڼې کاندي تار په تار
ډېر مخونه د فلک څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا تر خاورو لاندې زار
د واکمن له سره خول پربباسي مړ سي
د بیوزلو وینې توی کاندي خونخوار

د شیخ اسعد دا قصیده (۱۹) تمهیدي بیته لري او په دې بیتونو کې یې شاعر د فلک د ظلم او تیري مناظر په خورا استادی بیانوي.

تر دې تمهيدي بيتونو وروسته شاعر خپله فلک ته خطاب کوي او خپلې ګيلې او مانې له فلکه داسې بيانوي:

څه تېرې څه ظلم کاندې اې فلکه
ستا د لاسه نه دی هېڅ ګل بې له خار
په ويرژلو، لورنه کړې په زړه کړاړيه
پر نتليو اوروې د غم ناتار

په قصيده کې دغسې خطابي بيتونه (۱۱) دي. تر دې بيتونو وروسته شيخ اسعد په استادانه ډول اصلي مطلب ته رجوع کوي. د ده اصلي مقصد د امير محمد سوري پر مړينه وير او ماتم کول دي.

ده ويلي دي:

کله غورځوې واکمن له پلازونو
کله کښېنوې په خاورو کې بادار
زموږ پر زړونو دې نن بيا يو غشی وويشت
ودې ژوبلله په دې غشي هزار
پر سوريو باندې وير پرېووت له پاسه
محمد واکمن چې ولاړئ په بل دار

دغسې په دې قصيده کې شاعر د محمد پر مرګ دغور او سوريانو وضع او د ماتم ټول مناظر په ډېر لوړ هنري انداز کې ترسيم کړي دي، چې د دې ترسيم څو بيته دا دي:

په دې وير د غور وګړي تورنمري سول
په دې وير، رڼا تياره سوله د ښار
ګوره خاخي رڼې اوښې له دې غرونو
دا کړونکې ساندې لي په شور هار
نه هغه زرغا د غرونو د بيديا ده
نه د زرکو په مسا دی کتهار
نه غټول بيا زرغونېږي په لاښونو
نه پامې بيا مسيده کا په کهسار

دا ټولې خبرې او کارونه ولې داسې دي؟ دا ځکه چې:

دا په څه چې محمد ولاړ له نړيه
په ويرنه يې سو غور ټول سوګوار

په دې ډول شاعر د قصيدې په ټولو برخو کې هغه نکات په خورا استادانه ډول مراعات کړي دي، چې د يوې ډېرې ښکلې او د شور او جذب لرونکي رثائيه قصيدې په لوازمو کې شمېرل کېږي.

او د قصيدې وروستۍ برخه شاعر په يوه داسې اجتماعي او اخلاقي نتيجه بنا کوي، چې د پښتنو له ملي عنعناتو سره سمون لري او د پنځمې هجري پېړۍ په پيل کې د غور د سوري افغانانو د ملي احساس ښکارندويي کوي، د پښتو د دې لومړنۍ قصيدې وروستني بيتونه دا دي:

سخ په تا اې محمده د غور لمر وې

په نړۍ به نه وي ستا د عدل سار

ته پر ننګه وې ولاړ په ننګ کې مړ سوې

هم پر ننګه دې په ننګه کا خان خار

که سوري دې پر تګ وير کاندي ويرمن سول

هم به وياړي ستا په نوم ستا په تبار

په جنت کې دې وه تون زموږ واکمنه

هم په تا دې وي ډېر لور دغفار

د شيخ اسعد سوري تر قصيدې وروسته بله پخوانۍ پښتو قصيده، چې موږ ته رسېدلې ده، هغه د ښکارندوی غوري قصيده ده چې دا قصيده د غور په زمکو پورې اړه لري.

ښکارندوی غوري د غور اوسېدونکی او دفيروز کوه کوټوال و په غزني اوبست کې هم اوسېدلی دی پلار يې احمد نومېده او د سلطان شهاب الدين غوري او سلطان غياث الدين غوري معاصر و. د ژوند زمانه يې شپږمه هجري پېړۍ د ۵۸۰هـ ق حدود ښوول شوې ده. د غور د دغو دوو لويو افغانو پاچهانو په مدح کې يې قصيدې ويلې وې. محمد بن علي البستي وايي چې ده د قصايدو يو غټ ديوان درلود، چې په بست کې يې ليدلی و. د ده له ديوان څخه يې يوه قصيده رااخيستې ده، د لرغوني پښتانه نومي کتاب له لياري پټې خزانې اخيستې ده او د پټې خزانې په وسيله تر موږ پورې رسېدلې ده.

د ده لاس ته راغلې يا موږ ته رسېدلې قصيده ټوله (۴۵) بيته ده. دا قصيده په اصل کې يوه مدحيه قصيده ده، چې پر هند باندې د سلطان شهاب الدين غوري د لښکر کښيو مناظر ښيي.

سلطان شهاب الدين غوري، لکه ستر سلطان محمود غزنوي(ح) د اسلام د مقدس دين د خپرولو په منظور پر هند لښکر کشۍ وکړې او پټه خزانه وايي، چې

ښکارندوی به هم په دغو لښکرو کې ګډون درلود. د ښکارندوی کومه قصیده چې موږ ته رسېدلې ده، په یوه بهاریه تشبیب داسې شروع کېږي

د پسرلي ښکلونکي بیا کړه سینګارونه
بیا یې ولونل په غرونو کې لالونه
مځکه شنه، لاښونه شنه، لمنې شنې سوې
طیلسان زمردي واغوسته غرونه

شاعر په دې تشبیب کې د پسرلي ټول مناظر په خورا استادانه ډول او مهارت انځور کړي دي، څومره ادبي قوت چې شاعر درلود، هغه یې په دې تشبیب کې تمام کړی دی او د قصیدې په لومړیو اتلسو بیتونو کې یې د پښتونخوا د پسرلي ټولې منظرې ښوولې دي او بیا یې له دې ځایه خپل اصلي مقصد ته چې د سلطان مدح ده داسې لار ایستلې ده:

نه به چونی په ستایه د جنډیو موږ سي
نه به موږ سم د سلطان په صفتونه
د شنسب د کهاله ختلی لمر دی
د پسرلي په دود ودان له ده رغونه
د ښندو اورویې درست ایواد زرغون کړ
له قصداره تر دیبله یې یونونه
په زابل چې د بري پرنیلي سپور سي
په لاهور یې د مړانې ګزارونه
نه یې څوک مخ ته دری د میر خمنو
نه یې توري ته ټینګېږي کلک ډالونه
د اسلام د دین شهاب د نړۍ لمر دی
تور ستهان یې کړه رڼا په جهادونه
هره پلا چې دی پر هند و سند یرغل کا
رڼوي توره نړۍ په شهابونه

ښکارندوی چې په دې قصیده کې د خپل ممدوح سلطان شهاب الدین کومه مدح کړې ده او کوم الفاظ چې ده استعمال کړي دي، هغه له عقله لیرې او د مبالغې په رنګ کې نه دي رنګ شوي، بلکه د غور د سلطان بریاوې، مړانې او لښکر کشي د اسلام د خپرېدو هڅې، د ده فتوحات او جنګي کارنامې یې داسې ستایلې دي، چې مدحه یې کوم فني عیب نه لري. شاعر د خپلې پرخای مدحې او د سلطان درزمي کارنامو د ستاینې په پای کې خپله قصیده په دې دعائیه بیتونو سر ته رسولې ده:

په رڼا اوسې تـه تـل د ديـن شـهابه
نوم دې تـل وه پر دريـغ پـه نمزدكونـه
څو رانه سي ستا پـه تـوره د هنـد لوريـه
څو چې نست كړې لـه نړيـه بودتونونـه
ستا پـه زيرمـه دې خـاونده لـوی ښتـن وي
موږ خو ستا پـه مرستـه يـو نـه څو چې يونـه

## په پښتو ادبياتو کې د پښتو د دغو لرغونو قصيدو مقام:

د تېر بحث له لوستو څخه به تاسې ته ښكاره شوې وي، چې د لاس تـه راغلو اسنادو له مخې د پښتو لومړنۍ لاس ته راغلې تـر ټولـو پخوانـۍ قصيـده د پنځمې هجري پېړۍ د اوايلو ده او بله پخوانۍ قصيده چـې زمـوږ پـه واک کـې ده هغـه د شپږمې هجري پېړۍ ده. دا دواړې قصيدې د غور پـه دربـارونو پـورې اړه لـري او شاعران يې شيخ اسعد او ښكارندوی د پښتو دوه پخواني شاعران دي، چې لاس تـه راغلې قصيدې يې د پښتو ادب د ناوې پر تندې، لکه جړاو شـوي ټيكونـه ځلېږي او دغو دوو قصيدو ته موږ په عمومي ډول دغه خصايص او مقام ټاكلی شو:

۱/ د څلورمې، پنځمې او ترې راوروسته شپږمې پېړۍ کې د پښتـو پـه ګاونـډۍ ژبه پارسي (دري) کې قصيده ويـل خپـل معـراج تـه رسـېدلي وو او د سـامانيانو او غزنويانو په دربارونو کې ډېر قصيده ويونكي شاعران روزل شوي وو او قصيـده ويلـو هغه زمان خاص مقبوليت درلود او په دربارونو کې معمول او رايـج شعري ډول و. نو دغه مهال د غور په دربارونو کې اوسېدلو پښتنو شـاعرانو هـم د خپلـې سيمې د مسلط ادبي جريان تر اغېز لاندې په پښتو کې قصيدې وويلې او په پښتو شاعرۍ کې قصيده ويل له همدې وخته راپيل شول.

۲/ د پښتو په دغه دوو قصيدو کې د هماغه وختنۍ شرقي قصيـدې د بيـان لـه عمومي موضوعاتو سره پـه ارتبـاط کـې دربـاري آدابـو تـه پـه پاملرنـه د ستاينې، نمانځنې او ويرنې موضوعات بيان شوي دي، چې دغه موضوعي خصايص يـې هـم د هماغه وخت له شرقي قصيدې سره د پښتو قصيدو موضوعي نښتون ښيي.

اما د پښتو قصيدو يوه عمده ښېګنه بيا دا ده چې دوی د سـتاينې او نمـانځنې په ترڅ کې خپل ملي کره وره هم نه هېروي او خپلو قصايدو تـه داسـې جـامې نـه وراغوندي چې د پښتنو له دود او دستور څخه مخالفې او بېلې وي.

لکه چې شیخ اسعد سوري د غور د افغان باچا محمد سوري پر مړینه خپله رثائیه قصیده بشپړوي. په دې قصیده کې شاعر خپل غم نه ژاړي، بلکه د ملت او سوريانو، غوريانو غمونه ژاړي او هغه ملي زيانونه چې د محمد پر مړينه د هغه وخت سوريانو او غوريانو ته متوجه وو، هغه بيانوي او خپله قصيده پر يوه ملي نتيجه بنا پای ته رسوي.

د ښکارندوی قصيده، چې په پيل کې د پسرلي د مناظرو يو ډېر په زړه پورې انځور وړاندې کوي، بيا د غوري افغان باچا سلطان شهاب الدين د فوجي او حربي کارنامو او په هندوستان کې د ده د اسلامي فتوحاتو ستاينې او مدحې ته متوجه کېږي. په دې مدح کې که شاعر ښکارندوی داسې څه نه وايي، چې د پښتنو له عمومي روحيې سره مخالفت ولري، دا مدح پرځای مدحه ده او له عقله ليرې او له پښتني آدابو او رسومو مخالف څه نه پکې ليدل کېږي.

۳/ د پښتو دغه دوې لرغونې ترلاسه شوې قصيدې، د قصيده ويلو له ټولو آدابو سره برابرې دي او په فني لحاظ کومه نيمګړتيا نه پکې ليدل کېږي. په پنځمه او شپږمه پېړۍ کې چې شرقي قصيدې په فني لحاظ کوم خصوصيات درلودل هغه دې پښتو قصيدو هم ټول خپل کړي دي.

۴/ د هنر، ښکلا، انځور جوړونې او د طبيعت د جمال د تصويرولو له پلوه دا قصيدې په ټول پوره او د هنر په ګانه پسولل شوې دي. د ستاينو او وير د صحنو د جوړولو په برخه کې چې د دې قصيدو شاعرانو ښکارندوی او اسعد سوري کوم مهارتونه له ځانه ښوولي دي، هغه ډېر فني او هنري ارزښتونه لري.

۵/ په دې قصيدو کې سره له دې چې ځينې عربي او پارسي لغات هم راغلي دي، خو د پښتو ځينې داسې زاړه کلمات هم پکې په زياته پيمانه ميندل کېږي، چې اوس په عامه پښتو کې نه دي رواج او په عامه ژبه کې له رواجه لوېدلي دي. ښايي په ځينو غرنيولهجو کې يې ځينې کلمات ژوندي وي.

۶/ کوم ادبي قوت، بلاغت، فصاحت، هنري ښکلا او فني ښيګڼې چې د پښتو دغه زړې ترلاسه شوې قصيدې لري، د پښتو ادب په زاړه تاريخ کې بل ساری نه لري او دا قصيدې د پښتو ادب په تاج کې دوه داسې ښکلي غمي دي، چې ځلا او ښکلا به يې تر پېړيو پېړيو پورې تته نه شي.

ښوونکي دې په ټولګي کې د شيخ اسعد او ښکارندوی بشپړې قصيدې د پټې خزانې له مخې ولولي او د ګرانو لغاتو مانا وې دې ورته وکړي.

"۳"

# د اسلام د مقدس دین د خپرېدو په ملاتړ ایجاد شوي پښتو ادبیات

د شپږمې هجري پېړۍ په جریان کې د اسلامي فتوحاتو کارنامې او د اسلام د مقدس دین د خپرولو لپاره د غوري افغانو شاهانو هڅې زموږ د هېواد او منطقې په تاریخي کتابونو کې راغلي دي.

د غور شاهانو چې د هندوستان زمکو ته د اسلام د مقدس دین د خپرولو په منظور لښکرې ورلېږلې. په دغو لښکرو کې د فوج تر څنګه علما، اسلامي مبلغین، شاعران او صوفیان هم شامل وو، لکه چې تاسې په تېر بحث کې د پټې خزانې د مؤلف په قول ولوستل، چې د پښتو ژبې شاعر ښکارندوی غوري به هم د سلطان شهاب الدین غوري له لښکرو سره ملګری و.

د پښتو ادبیاتو کومې پخوانۍ نمونې چې تر موږه رارسېدلې دي، په هغو کې ځینې داسې آثار شته، چې د اسلام د خپرېدو او اسلامي فتوحاتو په ملاتړ کې ویل شوي دي. د اسلامي فاتحانو ستاینه یې کړې ده او د اسلام په ننګه د جنګېدونکیو اسلامي لښکرو د هڅولو او پارولو هڅه پکې شوې ده. د دغسې خصوصیاتو لرونکې دغه لاندې سندرې زموږ په واک دي:

(۱) د ملکیار غرشین رزمي سندره:

ښنتن مو مل دی    اوس مو یرغل دی    هېواد د بل دی

غازیانو ګورئ    ښنتن مو مل دی

توري تیرې کړئ    دښن مو پرې کړئ    منګولی سرې کړئ

خله به تښتو    ښنتن مو مل دی

که تینګ کرو زونه    په بري یونه    چې زمري یونه

اسلام راښخه دی    ښنتن مو مل دی

غازیانو راسئ    ټول شاوخواسئ    دشهاب په ملا سئ

دښن مو غوڅ کئ    ښنتن مو مل دی

دا لوړه سندره د خپل جوړښت له پلوه د پښتو په لرغونو سندرو کې شامله سندره ده او شاعر د اسلامي لښکرو د روحیې د لوړولو او د اسلام په ننګه جنګ ته د دوی د هڅولو په منظور ویلې ده.

د دې سندرې شاعر د پښتنو غرشین قبیلې ته منسوب دې چې دا سرې د پښتو په ادبي او تاریخي څېړنو او د صوفیانو او علماوو په تذکرو کې د ملکیار غرشین په نامه شهرت لري.

د ملکیار غرشین دا لوړه رزمي سندره او د ده لږ احوال د پښتو په لرغوني تذکره (پښتو تذکره الاولیا) کې راغلي دي او نورو مورخانو هم د ده شرح حال خوندي کړي دي.

ملکیار غرشین د سلطان شهاب الدین غوري د زماني سړی دی، کله چې سلطان شهاب الدین غوري د اسلامي فتوحاتو په منظور پر هندوستان لښکر کشی کولې، نو دغه شاعر او عارف هم د ده ملګری و. څنګه چې سلطان شهاب لومړی ځل په ۵۷۱ هـ ق کال پر ملتان حمله کړې وه، نو دغه رزمي سندره هم زمونږ د ادبي مورخانو په آثارو کې ددغه وخت ګڼل شوې ده. سلیمان ماکو وایي:

ملکیار غرشین ته سلطان شهاب الدین غوري په ډهلي کې تاتوبی وربخښلی و. دی په ډهلي کې اوسېده، هم هلته مړ شوی دی او د شیخ ابوبکر طوسي د مزار تر څنګه ښخ دی.

(۲) د تایمني سندره:

نن زه ړغېږم په صفت د سلطان
چې دی بادار غازي ملک د جهان
د فیروز کوه او غور رڼا له ده ده
هم د تیرو تورو برېښنا له ده ده
چې توره وکاږي چړتون کړي خالي
غلیم یې کله کړي په توره سیالي

غیاث الدین د غور زمری عالیشان
د اسلام دین د ده په توره روښان

ما د داور پر مځکه ولید ارم
دا د جنت په څېر و بڼ ښه خورم
د فیروز کوه په دود ودان دی نا
ښکلی هر ګل څه ښه خندان دی نا
دلته کرونګي دي ړغونه کوي
اوبه بهېږي سرودونه کوي

هر سړی ګورئ چې ولاړ وي اریان
کړي ننداره د خداوند دبستان

غیاث الدین د جهان لمر دی نا
عالم له ده ډېر بهره ور دی نا
هند یې روښانه په اسلام کئ نا
له خاني خوښ خیر الانام کئ نا
چې یې په غور کې نیلي زین کئ نا
پر کافرانویې ناورین کئ نا

تل دې بری وي د غازي پر میدان
زه تایمني ستاینه کرم د سلطان

د تایمني لوړ شعر، چې د استاد حبیب الله رفیع د څېړنو پر اساس د خپل جوړښت له پلوه یوه ساده چاربیته ده، د سلطان غیاث الدین غوري د زماني اوسېدونکی د پښتو کلیوال شاعر تایمني ویلی ده او پېړۍ پېړۍ یې د سیمې د ذوقمنو او بدلچیانو په حافظو کې تېر کړي دي او تر دې چې ٦٠ کاله دمخه د پښتو ادبیاتو ستر محقق اروانباد استاد عبدالحی حبیبي د یوه سپین ږیري ذوقمن له خولې ثبت کړه او په دې توګه یې د پښتو د ادب په تاریخ کې ځای ونیو.

څنګه چې د پښتنو په کلیو او باندو کې لا تراوسه سواد عام نه دی، نو زموږ د دغسې کلیوالو شاعرانو سندرې نه لیکل کیږي، بلکه د خلکو په زړونو او حافظو کې تر پېړیو پېړیو پورې ژوند کوي او له یوه نسل نه بل نسل ته لېږدی دېږې دا ډول سندرې د لېږد په دوران کې د راویانو په له منځه تللو سره له منځه ځي او څه نمونې یې خوندي پاتېږي، چې له نېکه مرغه د سلطان غیاث الدین غوري په ستاینه کې د ویل شوې سندرې درې بنده هم تر موږه رارسېدلي دي.

کله چې سړی د دې چاربیتي موضوع ته ګوري او ورسره د چاربیتي موجود درې بنده له نظره تېروي نو دا ورته ښکاري، چې دا چاربیته به همدا درې بنده نه وه، نور بندونه به یې هم لرل، چې د پېړیو په اوږدو کې به له راویانو هېر شوي وي او وروستی شکل یې چې د ثبت مرحلې ته رسېدلی دی همدا درې بندونه دي. موږ دا درې بنده چاربیته هم ډېره غنیمت ګڼو، او د پښتو د زاړه ادب په مطالعه کې خپل ځای ورته ورکوو.

د دې چاربیتې په پای کې د شاعر نوم تایمني راغلی دی، دغه تایمنیان له قدیمه په غور او د دې سیمې په نواحیو کې اوسي او دغه خلک سره له دې چې اوس پښتو نه وایي، خو چې د غور په غرو کې له کلیوالو تایمنیانو څخه پوښتنه شوې چې تاسې څوک یاست؟ دوی ویلي دي: "ما کاکریم" مانا دا چې موږ کاکړان یو، نو څکه د تایمنیانو په باب دا کلیوالي عنعنه یې روایت هم له پام نه شي غورځول کېدای.

څنګه چې تایمني د سلطان غیاث الدین غوري د پاچهۍ په وخت کې اوسېده، نو څکه یې زموږ ادبي مورخانو دژوند زمانه د۵۸۰هـ ق په شاوخوا کې ښوولې ده.

### د دې سندرو ارزښتونه:

د اسلام د مقدس دین د خپرېدو او اسلامي فتوحاتو په ملاتړ او درناوي ویل شوي همدا دوې پښتو سندرې زموږ په واک کې دي، چې دواړه د شپږمې هجري پېړۍ په دوران کې ویل شوې دي، دا سندرې دغه لاندې خصایص لري.

۱) په دې دوو سندرو کې د ملکیار غرشین سندره د پښتو د لرغونو سندرو په قالب کې ویل شوې او بله د تایمني سندره د پښتو د ولسي شاعرۍ له انواعو څخه د یوې ساده چاربیتي په قالب کې جوړه شوې ده.

دلته د ویلو وړ خبره دا ده، چې د تایمني تر چاربیتې دمخه بله پخوانۍ چاربیته موږ نه لرو او یا تراوسه نه ده کشف شوې.

د دې چاربیتې موجودیت موږ ته راښیي، چې د شپږمې پېړۍ په جریان کې زموږ د شاعرۍ ملي لرغونو اشکالو ورو ورو خپل ځای د پښتو د ولسي شاعرۍ اوسنیو اشکالو ته پرېښوده او چاربیتې له شپږمې هجري پېړۍ راپدېخوا د پښتو په ولسي شاعرۍ کې رانښلېدلې دي.

۲) په دې سندرو کې د ملکیار غرشین سندره د سلطان شهاب الدین د اسلامي فتوحاتو په یوې تاریخي پېښې پورې مربوطه ویل شوې ده، هغه پېښه مورخینو داسې راوړې ده:

یو ځل د سلطان پر لښکرو د کفر د لښکرو قوت زیات شو او نږدې وو، چې د اسلام لښکر ماتې وخوري، نو د پښتو شاعر ملکیار غرشین چې په دې لښکرو کې شامل و، دا سندره وویله چې اسلامي لښکر یې جنګ او مېړانې ته وهڅاوه او مسلمانان، لکه زمریان د کفر پر لښکرو راتوی شول او سوبه د افغان سلطان شهاب الدین غوري د لښکرو په نصیب شوه.

زموږ شاعر د لښکرو د هڅولو او پارولو لپاره ډېر مناسب کلمات په خپله سندره کې استعمال کړي دي، چې اوس هم د پارولو خاص قوت لري.

د تایمني سندره، سره له دې چې درې بنده یې زموږ په واک کې دي، د سلطان غیاث الدین غوري په ستاینه کې ده، د ده د پاچهۍ شان و شوکت او دبدبه یې ستا[illegible]ې ده، خو د سندرې په موجود متن کې یو بند داسې هم راغلی دی، چې په هند کې د ده اسلامي فتوحات پکې ستایل شوي دي او د اسلام د خپرېدو په لړ کې ددغه سلطان هڅه هم ستایل شوې ده.

۳) د دې دواړو سندرو عمده ارزښت په دې کې دی. چې په دواړو سندرو کې بیان شوي موضوعات او مسایل له تاریخي پېښو سره سل په سلو کې سمون لري او د غوریانو د عصر په مشهور تاریخي کتاب، طبقات ناصري او نورو ډېرو تاریخي کتابونو کې دغه مسایل او وقایع چې زموږ د دغو شاعرانو سندرې پرې پورې اړه لري، تول په تفصیل سره بیان شوي دي.

۴) دا سندرې سره له دې چې په کمي لحاظ ډېرې نه دي، خو کیفیت یې لوړ دی او هغه هم په دې مانا چې په شپږمه هجري پېړۍ کې زموږ د ولس رزمي روحیه او د غور د افغانانو شاهانو له حربي او اجتماعي کارنامو سره د پښتو شاعرانو علاقه اومینه تر ې ښه څرګندېږي، د غور د افغان شاهانو دبدبه، جلال او شوکت موږ ته راښیي او هم د اسلام له مقدس دین سره زموږ د خلکو اوښرانو د مینې ښکارندویي کوي.

"۴"

# د پښتو په لرغونو ادبياتو کې د عشق او محبت سندرې

د پښتو د لرغونو ادبياتو په لاس ته راغلو نمونو کې مونږ د شپږمې هجري پېړۍ په دوران کې ځينې داسې نمونې هم ترلاسه کوو، چې په هغو کې يوه سپېڅلې، خو سوځنده مينه انګازې کوي.

د دغسې اورنيو عشقي احساساتو لرونکې ادبي نمونې مونږ ته يوه د سليمان ماکوله تذکره الاوليا او بله له پټې خزانې څخه ترلاسه شوې دي، چې په لاندې ډول به خبرې ورباندې وکړو.

له دغسې سندرو څخه يوه سندره د شيخ تيمن کاکړ ده. دا سړی د سلطان علاء الدين حسين سام معاصر و او د ۵۵۰هـ ق کال شاوخوا يې د ژوند زمانه ده. دی په روب او د پخواني غور د کجران په سيمو کې اوسېدلی دی. د ده يوه سندره د پټې خزانې مؤلف رانقل کړې ده، چې دلته يې وړاندې کوم:

ګهيخ رڼا د لمر خپره سوه
د بېلتون ورځ توره تياره سوه

زما پر کور د وير ناره سوه
رغ سو ناڅاپه چې بېلتون راغی

زړه مې له دې ويرنې شين دی
زرغون په اوښو مې سادين دی

په ژړا ژاړم څه ناورين دی
په نول نولېږم چې تاخون راغی

نه به بيا يم نه به بيا راسي
نه به شهی راته پخلا سي

نه به تياره شپه زما رڼا سي
بېلېږي پير يې اوس ديون راغی

د ښنتن پار دی هېر مې نه کړې
اوربل دې پرېښووې واته کړې

اغليه مخ چې په يانه کړې
پر ما د بل اور کروون راغی

دغه سندره د هغو بدلو ابتدايي اشکالو ته پاتېږي، چې په کندهار او د دې سيمې په شاوخوا منطقو کې په خاص شور او جذب او خانګړې لحن (غاړه) ويلې کېږي او په دې سيمو کې يې سپرې بدلې بولي.

د شيخ تيمن په دې بدله کې يوه مينه او يوه سپېڅلې پښتني مينه څپې وهي او په خورا پرېبولو الفاظو کې يې ځپله مينه بيان کړې ده. لوست يې اوس هم پر لوستونکي او اورېدونکي خاص اغېز ښندي.

د پښتو بله عشقي سندره چې تر موږ رسېدلې ده، هغه د قطب الدين بختيار کاکي خوندوره زړه سندره ده.

قطب الدين د احمد زوی د موسی لمسی دی، کورنۍ يې له بختيارانو څخه سند ته تللې او د سند په اوچ کې اوسېدلې ده. بختياران د پښتنو يوه ستانه قبيله ده، چې د پښتنو د انسابو په کتابونو کې يې يادونه شوې او کورنۍ يې اوس هم په کندهار او د سليمان د غره په لمنو کې اوسي. قطب الدين په ۵۸۰هـ ق کال کې زېږېدلی دی، د اسلامي معارفو او عرفان لوی مراتب يې کتلي وو او په هندوستان کې شهرت ته رسېدلی و. په مرآت الافاغنه کې يې قطب الدين بختيار (د قطب افغان) په لقب ستايلی دی.

د قطب الدين بختيار د مړينې کال ۶۳۳ يا ۶۳۴هـ ق کال د ربيع الاول په څلورمه ښوول شوی دی.

د قطب الدين بختيار کاکي يوه د مينې سندره سليمان ماکو په تذکرة الاوليا کې راوړې ده، چې دلته يې رااخلو:

ویر مې زړه سوری کړ — راتــــه وګوره ملوکـــې
په بېلتــون کــې دې وباســم — لــه خوږمنــه زړګي کوکــې

راته وګوره ملوکې
راته وګوره ملوکې

د بېلتـون اورونـه بــل دي — هر ګړی مې زړګی سـوځي
لمبونــی يمـــه د مينـــې — ســوځم زه، لکـه پيلــوخي

راته وګوره ملوکې
راته وګوره ملوکې

غــوړولی دې اوربـــل دی — اور زمـا پـه زړګي بــل دی
زه بختيار خــاورې ايرې سوم — په اور ســوی مې ګوګل دی

راته وګوره ملوکې

راته وګوره ملوکې

د بختیار دا سندره که څه هم ډېره ساده ده، خو د استاد الفت خبره، یو مؤثر شعر او ښه نغمه ده او له یوه خوږمن زړه نه راوتلې ده.

د پښتو د زړو عشقي سندرو ځانګړنې د عشق او محبت ددغو دوو زړو تر لاسه شویو پښتو سندرو له مطالعې څخه موږ دواړو سندرو ته دغه لاندې خصوصیات تاکلای شو:

۱) د عشق اومحبت دغه دوې سندرې چې شاعران یې په شپږمې پېړۍ کې اوسېدلی دي او د یوې شاعر حتی د اوومې پېړۍ د لومړۍ نیمـایي ډېر کلونـه هم ژوندی و، د خپلو شکلي خصوصیاتو له پلوه یوه سندره د پښتو بدلې لومړنـی شکل دی. د بدلې دغه ابتدایي بڼه موږ ته دا خبره هم راښيي، چې زموږ د ولسي شـعر د معمولو ژانرونو، لکه بدلې او چاربیتې د تشکل زړي همدا وخت زرغون شوي دي.

خو د قطب الدین بختیار کاکي سندره خپل لرغوني شکلي خصوصیات لـري او موږ یې په خپلو لرغونو سندرو کې حسابوو.

۲) د دغو دواړو سندرو ژبه ډېره روانه او ساده ده، خو ځینې داسـې لغات پکې راغلي دي، چې د پښتو په ځینو لهجو کې ښایي موجود وي، خو په عامه پښتـو کې نشته.

۳) په دواړو سندرو کې عشق او مینه بیان شوې ده، دا مینه سـوځنده ده. ښایي ځینې خلک یې د یو معشوق مینه وبولي اوځینې بیا په دې عقیده دي، چې پـه دې سندرو کې د الهي سوځندې مینې انګازې خورې دي.

په هر صورت د دواړه ډوله مینې احساس ځنې کېدای شي.

- ښوونکي دې شاګردان وهڅوي چې د پښتـو پـه دغـو سـندرو کـې د بیـان شوې مینې په باره کې سره بحث وکړي. څه چې په دې برخه کـې دا کتـاب وایـي پر هغو خبرو باید سل په سله کې وېسـا ونـه کـړي او شـاګردانو تـه دې د آزاد فکر موقع ورکړه شي. چې دوی په دې څه ډول فکر کوي.

"۵"

# د پښتو لومړنی لاس ته راغلی نثر

که څه هم محمد هوتک په پټه خزانه کې لیکلي دي، چې ابو محمد هاشم ابن الزید السرواني (د سالو وړمه) په پښتو ژبه لیکلی وه، دا کتاب د دریمې هجري پېړۍ په حدودو کې لیکل شوی دی. خودا چې هغه کتاب زموږ په واک کې نشته. نوځکه مو یې یوازې د نامه یادونه وکړه او نورې خبرې باندې نه کوو.

تر اوسه معلوم لاس ته راغلی لومړنی پښتو نثر د سلیمان ماکود تذکره الاولیا نثر دی چې تر ۶۱۲هـ ق وروسته لیکل شوی دی.

سلیمان د بارک خان سابزی ماکو زوی و، چې د (۶۰۰هـ ق) شاوخوا یې د کندهار په ارغسان کې ژوند کاوه.

ده غوښتي دي چې د پښتنو اولیاوو احوال او د دوی ویناوې راټولې کړي او یو کتاب ځنې جوړ کړي.

سلیمان ماکو د دغه کار د سرته رسولو لپاره د پښتونخوا بېلابېلو برخو ته سفر کړی دی او د پښتنو اولیاوو احوال او شعرونه یې له خلکو اورېدلي او راټول کړي او کله چې له دغه سفره بېرته خپل کور ته راغلی دی، بیا یې نو خپل دغه راټول کړي مواد سره تالیف کړي دي او پر خپل دغه کتاب یې د (تذکرة الاولیا) نوم اېښی دی.

د ډېرې خواشینۍ خبره ده، چې د پښتو تذکرة الاولیا ټول متن تراوسه نه دی ترلاسه شوی. یوازې څو محدودې پاڼې یې مرحوم لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبي د ۱۳۱۰هـ ق شاوخوا د هلمند په شاوخوا سیمو کې پیدا کړې دي.

دغه څو لاس ته راغلې پاڼې هم د پښتو د ادب تاریخ لپاره ډېرې مهمې دي. او دا ځکه چې

۱) په دغو لاس ته راغلو پاڼو کې د پښتو ډېر زاړه اشعار خوندي شوي دي. که چېرې دغه پاڼې نه وای ترلاسه شوې، نو به موږ له دغو اشعارو ناخبره وو

۲) په دې پانو کې د پښتو د څلورو تنو پخوانيـو وينـاوالو: شيخ بيټنـي، شيخ اسماعيل. ملكيار غرشين او قطب الدين بختيار كاكي اشعار او لـږ احـوال خونـدي دي

۳) د همدې پانو له لارې تر ټولو لرغونـې لاس تـه راغلـی پښتـو نـثر تـر مـوږه رارسي او هم د اوومې پېړۍ په لومړيو وختونو کې د پښتو يو تکړه ليکوال او مـورخ پر موږ راپېژني چې هغه خپله د دې تذکرې ليکوال سليمان ماکو سابزی دی.

۴) په اوومه هجري پېړۍ کې د پښتو تذکرة الأوليـا ليکـل مـوږ پـه دې بـاوري کوي، چې دغه مهال په پښتنو کې د دغسې آثارو د ليکلـو ذوق پيـدا شـوی و او لـه پښتنو علماوو څخه ځينو يې غوښتل چې د دې ژبـې د شـاعرانو وينـاوې او احـوال راټول کړي.

د پښتو ژبې پخواني ليکوال سليمان ماکو د خپل اسلامي او دينـي ذهنيـت او د هغه زمان د مسلطو فکري او فرهنگي جريانونو تر اغېز لاندې د هغو پښتنو اوليـاوو احوال راټول کړي دي چې دده په قول يې ويناوې (اشعار) پرېښي دي.



د سليمان ماکو نثر يو تاريخي نثر دی او زموږ د ادبي تاريخ له اساسي طرحـې سره سم بايد موږ پردې اثر دلته خبرې نه وای کړې، داځکه چې موږ په دې تـاريخ کې يوازې پر ادبي اثارو خبرې لرو، خودا چې د سليمان ماکو نـثر د پښتـو تـر ټولـو قديم نثر دی، نو د دې اثر لوستونکي بايد خبر وي، چې په پښتو کې نثر ليکـل کلـه پيل شوي دي؟ ځکه معلوم شعر خو يې د دوهمې پېړۍ دی. همدا علت دی چـې زه پر دې نثر دا بحث کافي گڼم او اضافي خبرې پرې نه کوم خو دومره وايم، سـره له دې چې د سليمان ماکو نثر په موضوعي لحاظ د تـاريخي نـثرونو پـه ليکـه کـې دربرې خو د خپل جوړښت له پلـوه کړکېچـن نـثر نـه دی، ډېر گران ترکيبونـه او درانه لغات پکې ډېر نه دي جملې يـې پـرې پـرې او لنـډې دي او د علامـه لـوی استاد حبيبي (رح) خبره چې دا نثر له محاورې ليرې نه دی وضاحت لري او مقصـد لنډ لنډ ادا کوي د يوې جملې خبر په بلې پورې معلق نه پرېږدي.

"٦"

# عرفاني افکار پر پښتو ادب وزرې غوړوي

د سامانیانو او غزنویانو په عصر کې عرفاني افکارو په دري ادبیاتو پوره اغېزې درلودې. د سنایي غزنوي (رح) عرفاني آثار زموږ د هېواد په دري ادب کې د دغه ډول افکارو یوه درنه ذخیره ده، چې بیا د اوومې پېړۍ په جریان کې د مولانا جلال الدین محمد بلخي مثنوي او نور آثار د عرفاني افکارو په پرمختیایي بهیر کې د اساسي ستنو ارزښت لري.

له دې لنډو خبرو څخه مطلب دا دی، چې عرفان د انسان د یوه لارښوونکي مسلک او د انسانانو د باطن د صیقل او صفا کولو د یوې موثرې وسیلې په توګه زموږ د هېواد په فرهنګي حلقو کې د یو مسلط فکري جریان په توګه موجود و.

د همدې اوومې پېړۍ د دریمې لسیزې په لومړیو کلونو کې (٦٢٣هـ ق کال) د افغانستان په سیمو کې یو ماشوم نړۍ ته سترګې پرانیستې، چې په کورنۍ کې یې د (متي) نوم پر کېښود، دغه متي لوی شو، ځوان شو او د خدای پېژندنې د لارې یو داسې پتنګ شو، چې د الهي جمال د لیدلو د یوه لېوال په توګه پر هره شمع جلیا و.

متي په زهد، تقوی او د عرفاني مدارجو په طی کولو سره دومره مشهور او محبوب شو چې د خلکو مرجع و او د یوه ډېر ستر روحاني شخصیت په توګه یې د شیخ متي په نامه شهرت درلود.

د شیخ متي احوال په مخزن افغاني، مرآة الافاغنه، تذکره الابرار و الاشرار. پټه خزانه او نورو ډېرو تاریخي، ادبي او عرفاني آثارو کې راغلي دي، په دغو ټولو آثارو کې یې د ده عرفاني مقاموبه او درجې ښوولې دي او زیاترو مورخینو دده نوم د شیخ متي خلیل غوریاخېل په نامه پېژندلی دی. د دې خبرې معنی داده، چې شیخ متي د پښتنو د خلیلو د قبیلې یو روحاني مشر و.

د شیخ متي پلار شیخ عباس نومېده او دغه شیخ متي د خپلې زمانې په فرهنګي حلقو کې د مسلطو فکري جریانونو تر اغېزې لاندې د خپل باطن او

خپل ذهن و ضمیر او زړه د صفایي لپاره عرفان ته رجوع وکړه او د خدای پېژندنې په دې باریکه لار یې سفرونه وکړل.

شیخ متي (رح) د خپلو کړو عرفاني افکارو د بیان او د الهي جمال مظاهرو د ښوولو لپاره له خپل شعري استعداد څخه کار واخیست او په دې موثره وسیله یې خپل فکر او هنر خپلې ټولنې ته وړاندې کړ.

(د خدای مینه) په نامه یې د کلات د غوڼدان په سیمه کې د خپلو اشعارو کتاب بشپړ کړ، دا کتاب پر دې سیمه د مغلو تر حملو پورې موجود و او د شیخ متي (رح) پر قبر به پروت و. د مغلو تر حملو وروسته دا کتاب ورک شو. د چنګیز او ده د اولادې د حملو او تالا نکرو چپاوو په اساس د شرقي هېوادونو ډېره فرهنګي ذخیره له خاورو سره برابره شوه، نو دا خبره لیرې نه ده چې د شیخ متي (د خدای مینه) نومی کتاب دې هم په همدې بربادیو کې برباد شوی وي.

د پټې خزانې د مولف محمد هوتک وینا ده. چې شیخ متي په دې کتاب کې هسې اشعار ویلي وو، چې زړونه یې ویلې کول.

د محمد هوتک قول پر خپل ځای سم او صحیح دی، دا څکه دده کوم مناجات چې محمد هوتک په پټه خزانه کې راوړی دی، لوست او اورېدل یې پر لوستونکي او اورېدونکي زیات اغېز ښندي. د عرفان له رمزونو اګاه کسان څنې خانته او د شعر او هنر مینان ترې خپل خوندونه اخیستی شي.

د پښتنو دغه ستر روحاني پېشوا- زاهد او د پښتو ژبې دغه عارف شاعر د ٦٥ کالو په عمر په ٦٨٨هـ ق کال د ترنک د سیند پر غاړو وفات شو او د کلات پر غونډۍ یې ښخ کړ او شیخ متي (رح) تراوسه هلته په کلات بابا مشهور دی او زیارت ته یې د کلات بابا زیارت وایي.

د ده هغه مناجات چې پټې خزانې راوړی دی څه برخې یې دلته راوړم:

| | |
|---|---|
| پر لویو غرو هم په دښتو کې | په لوی بهار په نیمو شپو کې |
| په غاړه رغ او په شپېلکو کې | یا د ویرژلیو په شپېلو کې |

ټول ستا د یاد ناري سورې دي
دا ستا د مینې ننداري دي

| | |
|---|---|
| جنډی زرغون که په بیدیا دی | د بر بن خواته په خندا دی |
| ترنک چې خر دی په ژړا دی | دا ټول اغېز د مینې ستا دی |
| ټوله ښکلا ده ستا له لاسه | اې د پاسوالو پاسه پاسه |

د شیخ متي (رح) دغه مناجات ټول په دغسې لسو ښکلو بندونو کې اوډل شوی دی. چې هر بند یې خپل خاص فکري او هنري ارزښت لري، او زه یې دلته د پای دوه نور بندونه هم راوړم.

زه چې څرګند په دې دنیا سوم | د ښکلي مخ په تماشا سوم
ستا پر جمال باندې شیدا سوم | له خپلې ستې راجلا سوم

په ژړا ژاړم چې بېلتون دی
یمه پردیسي بل مې تون دی

وګړيــو ولــې (متــي) ژاړي | سورې يې اورئ غاړې غاړې
څه غواړې، څه وايــي څه باړي | خپل تون او کور و کلي غواړي

چونې چې بېل سي نیمه خوا سي
تل يې د بڼ په لور ژړا سي

د شیخ متي (رح) د همدې یوه لاس ته راغلي مناجات مطالعه راڅرګندوي، چې د ده په مناجات کې یو عرفاني فکر په نسبي سستماتیک ډول بیان شوی دی او د شیخ متي څېره ترې د یوه لوی عارف او زاهد په توګه معلومېږي.

او هغه د لوی استاد مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبي په وینا چې شیخ هم لکه پخوانی لوی عارفان هغسې فکر کوي او په جمالي فکر کې د کائناتو له مناظرو او ښکلو مزایاوو ښخه عرفاني او روحاني نتایج اخلي.

د شیخ متي دغه مناجات، لکه څنګه چې استاد حبیبي هم ویلي دي، د پښتو د عرفاني ادبیاتو په سر کې راځي، او موږ په خپلو زړو ادبیاتو کې دغسې یو پارکی نه لرو، چې په منظم ډول دې یې یو عرفاني فکر پکې پاللی وي.

دلته باید دا خبره هم هېره نه شي چې اروابناد دوکتور عبدالحکیم طبیبي په خپل اثر (تاریخ تصوف در افغانستان) کې په پښتو اشعارو کې د عرفاني افکارو لومړنی ځلاوې د شیخ بیټني په مناجات کې لټوي او دغه راز ځینې نور پوهان د شیخ تیمن کاکړ د مینې بدله او استاد رښتین په خپلو ځینو آثارو کې د قطب الدین بختیار کاکي عشقي سندره کې منعکس شوې مینه د الهي مینې له سرچینو سره نښلوي، نو په دې حساب ښایي وویل شي چې د شیخ متي (رح) مناجات ته به نو څنګه موږ د پښتو د عرفاني ادبیاتو په پیلامه کې ځای ورکړو؟

زموږ دغه مشران که د شیخ بیټني، شیخ تیمن او قطب الدین بختیار په پارکو کې د عرفاني افکارو ځینو ځلاوو ته متوجه شوي دي، د دوی توجه هم پرځای ده. ښايي دا ومنو چې دغه پارکی د دغسې افکارو ځلاوې لري، خو په منظم او

سیستماتیک ډول یو عرفاني فکر پکې نه دی پالل شـوی. د پښتـو د زړو ادبیاتو په کومو اثارو کې چې په منظم ډول یو عرفاني فکر پـه خـورا هنرمندی بیان شوی دی، هغه د شیخ متي مناجات دی او موږ په حقه په خپلو زړو ادبیاتو کې د عرفاني افکارو پیل د شیخ متي خلیل غوریاخېل له مناجا ته کوو.

د شیخ متي مناجات د خپل شکلي جوړښت له پلوه زموږ شعر پوهانو د پښتو د لرغونو سندرو په لړۍ کې حساب کړی دی، چې دا نظر تراوسه منـل شـوی او سم ایسي. دا مناجات سره له دې چې فکري خوا لري، د دې ترڅنګه ډېره لوړه هنري متره هم ورسره ملګرې ده او د مناجات هنري ارزښتونـه او د طبیعـت د ښکـلا او د معنوي جمالي مظاهرو تصویر موږ په دې باوري کوي چې شیخ متي (رح) یـوازې یو داسې صوفي نه و، چې خپل افکار یې په تشو منظومو او وچو بې خوندو خبرو کـې بیان کړي وي، بلکه دی د لوړ هنري استـعداد خـاوند و او د عرفـان ډېر غـامض او سخت مضامین یې په ډېره ښکلې ژبه په داسې شعري جامه کې وراندې کـړي دي، چې پر هر لوستونکي یې فکري اغېز کېږي، د تبلیغ او تلقین لپاره یې خپل هـنر پـه خاص قوت بیان کړی دی. دده مناجات د خپل هنري قوت له پلـوه د شیـخ اسعد او ښکارندوی تر قصیدو پرته له دوهمې هجري نه تر اوومې هجري پېړۍ پـورې پـه پښتو زړو ادبیاتو کې بل ساری نه لري.

- ښوونکی دې د شیخ متي ټول مناجات د پټې خزانې له متنه راواخلي او پـه ټولګي کې دي ولولي. له شاګردانو دې وغواړي چې د دې مناجات د ګرانو لغـاتو او موضوع په باب پوښتنې وکړي.

"۷"

# په پښتو کې د مقاومت د ادبیاتو لومړني څرکونه

د اوومې پېړۍ د دوهمې لسیزې په جریان کې (۶۱۷هـ ق) د چنګېز د تالانګرو لښکرو حملې د افغانستان پر څېنو ښارونو او اسلامي فرهنګي مراکزو پیل شوې. د دغو تباه کارو لښکرو د جنګونو، خونرېزیو او تالان په نتیجه کې ښارونه په کنډوالو بدل شول، انسانان ووژل شول او فرنګکي مراکز خراب شول. عالمان، شاعران او د فرهنګ لوی شخصیتونه یا ووژل شول او یا د خپلو ټاټوبو پرېښوولو ته اړ شول، کتابخانې او کتابونه له منځه ولاړل.

دغه وخت زموږ په هېواد کې د غزنویانو او غوریانو شاهي کورنیو اقتدار ختم شوی و شمالي برخو یې خوارزمشاهانو حکومت کاوه. پر سیستان او شاوخوا سیمو د نیمروز محلي حکمرانان مسلط وو، په هرات کې آل کرت حکومت درلود . اوداففانستان په شرقي برخو کې څېنې داسې کسان حاکمان وو، چې پخوا غوریانو ګمارلي وو.

چنګېز او د ده اولادې د اوومې پېړۍ په جریان کې زموږ د هېواد په بېلابېلو برخو حاکمیت درلود او په ډېره بېرحمۍ یې ددې هېواد بیوزلي اولسونه وژل او د تمدن او فرهنګ نخښې یې له منځه وړې، خو د دغو ټولو بېرحمیو سره سره زموږ د هېواد په بېلابېلو برخو کې د چنګېز او بیا د چنګېزي لښکرو په وړاندې مقاومت روان و. زموږ د هېواد نومیالي مورخ ارواښاد میر غلام محمد غبار په خپل کتاب (افغانستان در مسیر تاریخ) کې د چنګېز او د ده د اولاد د تالان او تاړاک په وړاندې د افغانستان د بېلابېلو سیمو د خلکو د مقاومت بیانونه وړاندې کړي دي.

د چنګېز او د ده د اولاد او بقایاوو د لښکرو په وړاندې د مقاومت موضوع د پښتو په لرغونو ادبیاتو کې هم منعکس شوې ده.

محمد هوتک په پټه خزانه کې د بابا هوتک یوه داسې سندره راوړې ده، چې د مغلو د تالانګرو لښکرو په وړاندې د افغانستان د یوې سیمې د پښتنو د مقاومت څرګونه خنې ایستل کېږي، هغه سندره دا ده:

| | |
|---|---|
| پر سور غوبل راته نن اور دی | وګړیه جوړ راته پېغور دی |
| پر کلي کور باندې مغل راغی | هم په غزني هم په کابل راغی |
| غښتلیو ننګ کړئ دا مو وار دی | مغل راغلی په تلوار دی |
| په پښتونخوا کې یې ناتار دی | پر کلي کور باندې مغل راغی |
| آ د مرغی غښتلیو راسئ | پر ننګ ولاړ د پښتونخوا سئ |
| توری تېرې غشي تر ملاسئ | پر کلي کور باندې مغل راغی |
| زلمو په غشیو کړئ وارونه | د تیرو تورو ګوزارونه |
| وروړاندې کړئ خپل ټبرونه | پر کلي کور باندې مغل راغی |
| زما د زلمو وینې بهېږي | مځکه او غرونه په سره کېږي |
| میر خي زغلي او ترهېږي | پر کلي کور باندې مغل راغی |
| پښتنو هلئ پر غره جنګ دی | سور غر په وینو د دوی رنګ دی |
| مهال د تورې دی د ننګ دی | پر کلي کور باندې مغل راغی |
| زلمو پر ننګ ځانونه مړه کړئ | دښن په غشیو مو پییه کړئ |
| د پښتونخوا زمکې ساته کړئ | پر کلي کور باندې مغل راغی |

د پټې خزانې له بیان سره سم هرکله به د مغلو لښکرو د ارغنداو، پر غاړو لوټ کاوه د اتغر او بولان سیمې به یې تالا کولې، نو د دې سندرې ویونکي بابا هوتک خپل خلک راټول کړل او سره غره ته نژدې یې له مغلو سره جنګونه وکړل.

په دې جګړه کې د پښتنو قوت لږ و او غلیم ډېر و، خو کله چې بابا هوتک په لوړ آواز دا سندره وویله نو زلمي به په جګړه کې تودېدل او سوبه د پښتنو په نصیب شوه.

دا سندره د خپل شکلي جوړښت له پلوه زموږ ادبپوهانو د پښتو په لرغونو سندرو کې حساب کړې ده. دمضمون له پلوه یې محتوی رزمی ده، چې د پردو لښکرو او تالانګرو په مقابل کې له وطن نه د دفاع مفکوره پکې منعکس شوې ده او خلک یې د پردو د تسلط په وړاندې مقاومت ته رابللي دي.

که چېرې موږ د پښتو په لرغونو ادبیاتو کې د مقاومت د مضمون لرونکو ادبیاتو لټون کوو، نو څرک یې د بابا هوتک په سندره کې ایستلی شو.

د دې سندرې شاعر بابا هوتک د بارو زوی په ۶۶۱هـ ق کال د کلات د سیورې په اتغر کې زېږېدلی دی او دلته لوی شوی دی. دی په خپله سیمه کې د خپل قوم سردار او مشر و. بابا هوتک په ۷۴۰هـ ق کال وفات شوی و.

همدا ډول د دغه یاد شوي بابا هوتک زوی شیخ ملکیار هوتک، چې د زېږېدو کال یې د پټې خزانې د نوشتو له مخې ۷۱۵هـ ق راوزي. د پښتو یو داسې شاعر دی، چې که د مقاومت سندرې یې تر موږ نه دي رسېدلې، خو ده خپله د مقاومت په جنګونو کې شرکت درلود، نو ځکه موږ ده ته په دې بحث کې ځای ورکوو، که نه وي د ده سندره د مینې یوه خوږه نغمه ده.

ملکیار هوتک تر خپل پلار وروسته دخپل قوم مشر و او د خپلو خلکو د آبادۍ لپاره یې کارونه وکړل او کله چې د پردو یرغلونه د سیوري پر سیمه شروع شول ملکیار هوتک له پردو سره د پرله پسې مقاومت له امله له خپلې سیمې دفاع وکړه او پردي (مغل) یې له خپلې سیمې وشړل.

د ملکیار هوتک یوه خوندوره سندره پټې خزانې راوړې ده، چې دلته هم راوړل کېږي:

ترنک بهېږي ترنګ بهېږي غاړې تر غاړې
زما زړګی خو خپل لالی غواړي

که روده روده د ترنک روده خاوند دې وچ کا
چې زړګی مومي زما خپله سوده

که نیزدی نیزدی نیزدې بېلتون دی زړه نیزه وړي
په ویر ژړلی په غم زبون دی

که اور دی اور دی په زړه مې اور دی داور به وچ کا
د ویر نیزونه بل ډېر په زور دی
سپینې سپوږمیه ورته ووایه
چې ترنک ټال کړم ستا له خولګیه

که خړ و خړ و اوبو سوان کړئ ببل ملکیار دی
پاته له یار دئ سوب یې جانان کړئ

د ملکیار هوتک له سندرې وروسته موږ په پښتو ادبیاتو کې هغه سندرې چې پوهانو د پښتو لرغونې سندرې بللې دي نه لرو. د ملکیار سندره د دې ډول سندرو وروستی سندره ده، چې دیوې سوځنده مینې بیان پکې په خورا ښکلې بڼه کې وړاندې شوی دی.

دا سندره په خورا ساده ژبه د محبت د یوه سوز په ملتیا د یوه له یاره بېل مین د زړه خبرې دي او دا سندره د پښتو په زړو عشقي سندرو کې خپل ارزښت لري.

"۸"

# پښتو ادبیات د نوو شعري ډولونو د خپلولو په درشل کې

له دوهمې هجري پېړۍ نه د اتمې پېړۍ تر دوهمې نیمایي پورې، چې د پښتو کوم منظوم آثار لاس ته راغلي‌دي، په هغو کې غټه برخه د هغو سندرو ده، چې موږ خو ځایه د لرغونو سندرو په نامه یادې کړې دي او دا شعري ډولونه او اوزان د پښتو خپل شعري انواع دي.

د دې سندرو تر څنګه په شپږمه هجري پېړۍ کې د پښتو چاربیتې او پښتو بدلې ابتدايي او ساده نمونې هم موږ د پښتو په شاعرۍ کې وینو، چاربیته او بدله هم د پښتو د ولسي شاعرۍ دوه ډېر غوره شعري ډولونه دي. د پښتو شعر پوهانو په عقیده کله چې د پښتو د لرغونو سندرو عنعنه شاعرانو هېروله، نو یې د هغې عنعنې پرځای د پښتو د ملي او ولسي شاعرۍ په شعري ډولونو کې شاعري پیل کړه.

د پښتو شاعرۍ کې له دغو خپلو ملي او وطني شعري ډولونو سربېره د خپلې سیمې د فرهنګي او ادبي جریان تر اغېزې لاندې او له نورو فرهنګونو سره د نزدیکتونو له پلوه پښتو شاعرانو د شرقي شاعرۍ شعري ډولونه هم خپل کړي دي، لکه:

د دریمې هجري پېړۍ په جریان کې په پښتو شاعرۍ کې قطعه پیدا شوه او په پنځمه هجري پېړۍ کې د قصیدې په چوکاټ پښتو شاعري وشوه. خو د اتمې هجري پېړۍ تر دوهمې نیمایي وروسته چې د پښتو کوم آثار ایجاد شوي دي او موږ ته یې نمونې رسېدلي دي، په دغو اشعارو کې د شرقي شاعرۍ ځینې داسې انواع په پښتو شاعر ی‌کې مومو، چې تر دې زمانې په دمخنیو اشعارو کې موږ داسې شعري انواع نه لرو.

کوم شعري ډولونه چې دغه مهال په پښتو شاعرۍ کې زیات شوي دي، دا دي: د اتمې هجري پېړۍ د دوهمې نیمایي په دوران کې د زمینداور په سیمو کې د پښتو یو دیوان لرونکی شاعر تېر شوی دی، چې اکبر نومېده. د ده د دیوان څو پاڼې مرحوم لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبي د هلمند په سیمو کې پیدا کړې

وي، او چې کله يې د پښتانه شعراء لومړی ټوک ترتيباوه، نو يې د اکبر د ديوان له پاڼو څخه تر لاسه شوي مطالب هم په دې کتاب کې چاپ کړل.

د اکبر د ديوان دغه څو پاڼې د پښتو ادب لپاره دومره ګټورې تمامې شوې، چې د پښتو شعر او شعري انواعو په تاريخ کې يې يو لوی تحول راووست.

د ده د ديوان په دغو پاڼو کې د اکبر دوې ټوټې (مثنوي) خوندي دي، چې دا مثنوي د خپل خوږلت ترڅنګه د هنر مالګه هم لري او د استاد حبيبي په وينا: اکبر په دې مثنوي کې د مينې د دنيا ډېر نازک حالونه او احساسات تصوير کړي دي:

| | |
|---|---|
| زه عاشق يم يار هم نيز | نور څه نه لرو تميز |
| يو پر بله عاشقان يو | په خپل عشق کې صادقان يو |
| يو په بل پسې رنځور يو | چې نزدې نه يو مهجور يو |
| عشق که ښه دی که بلا دی | پيدا کړی زمونږ مولا دی |

د اکبر دا دوې ټوټې مثنوي ګرده (۲۸) بيته دی او د پښتو شعر په تاريخ کې نو مثنوي له دې وخته پيل کېږي او تر دې وخته دمخه په لاس ته راغلو پښتو آثارو کې موږ مثنوي نه لرو.

د اکبر زميندآوري د ديوان په لاس ته راغلو پاڼو کې د پښتو دوې غزلې هم شته. غزل د شرقي شاعرۍ تر ټولو غوره او منلی شعري ډول دی، چې د اکبر تر غزلو دمخه موږ په پښتو ادبياتو کې بل غزل نه وينو، سملاسي که چېرې موږ په پښتو ادب کې د غزل سرايي تاريخ ليکونو ا، يو چې پيل يې د اکبر زميندآوري له غزلو وکړو.

د اکبر غزلې په ټول پوره او د شرقي غزل کره وړه لري. د اکبر يوه غزله پنځمه بيتيزه او بله يې اووه بيتيزه ده. د شرقي شاعرۍ شعر پوهان عقيده لري، چې د زياترو شرقي ژبو د لومړنيو غزلو بيتونه لږ وو او تر اوو بيتونو يې تجاوز نه کاوه. (د پښتو غزل) د کتاب د مؤلف پروفيسور افضل رضا په قول د اکبر د غزلو ژبه خوږه او خيالات يې ژور دي. د اکبر له دوو لاس ته راغلو غزلو څخه يوه دلته رااخلو:

| | |
|---|---|
| د خپل ځان له حيرانيې څه ويل کړم | د عشق وير به تل پخپله پټول کړم |
| ما مدام، لکه بورا پر ګلو ګشت کړ | اوس به څم په سر تور سر فراق د ګل کړم |
| د غماز لړمون به زه په لمبه کښېږدم | ځنې هېر به د يار بزم ګل اومل کړم |
| زما د يار د مينې اور په زړه کې بل دی | زه به سرومال ښندم ديد به حاصل کړم |

د بېلتون له ويره ژاړم اوښکې وينې
زه اکبر په خپل اشنا د سر ښندل کړم

دغه ډول د اکبر د دیوان په پاڼو کې د ده یوه ښکلي د پښتوشعر په اولسي اوزانو کې ویل شوې سندره هم زموږ په واک کې ده، چې د ښاغلي حبیب الله رفیع د څېړنو مطابق دا سندره د پښتو یوه خوندوره چاربیته ده، چې د پښتو په زړو ادبیاتو کې د تایمني تر چاربیتي وروسته د دې شعري ډول بله پخوانی نمونه موږ د اکبر زمینداوزي په دیوان کې مومو. ددې چاربیتې سر او یو بند دا دی:

زه چې په مینه معشوقو د بنګړو شرنګ لره ځم
زه د هجران د بېلتانه د تورو جنګ لره ځم
زه اېوته یم په هجران سره قرار نه لرم
هجر مې اوږد شو د وصال د امید کار نه لرم
بېلتون په خوله راکړې څاپېړې زه لا عار نه لرم
وام د معشوق په سینه پروت زه تور لونګ لره ځم

د اکبر د دیوان په لاس ته راغلو پاڼو کې د شرقي شاعرۍ د دوو مشهورو او عمده شعري ډولونو، لکه: غزل او مثنوي د نمونو تر څنګه د پښتو چاربیتې موجودیت په دې دلالت کوي، چې زموږ پخوانیو شاعرانو که د شرقي شاعرۍ شعري ډولونه خپلول، دد ې ترڅنګه یې د شاعرۍ خپل ملي روایات هم نه هېرول او د پښتو شاعرۍ په ملي اوزانو کې یې هم شاعري کوله. موږ په راوروسته پېړیو کې هم ددغسې خصوصیاتو لرونکې ځینې پښتو دیوانونه وینو.

د اکبر زمینداوري د دیوان په ترلاسه شوو پاڼو کې یو بیت دا ډول دی:

د مغلو تمر هسې په اور وسوم　　　چې به هېر په دې ماتم زمین داور کړم

په لوړ بیت کې یاد شوی (تمر) هماغه ګوډ تیمور دی، چې په ۷۷۱هـ ق کال په ماوراء النهر کې حکمران شو او په ۷۸۲هـ ق کال کې د آمو له سینه تېر شو او زموږ د هېواد پر ځینو برخو یې حملې شروع کړې او زموږ د هېواد ځینې سیمې یې یو په بل پسې ونیولې.

زموږ د بحث لاندې شاعر اکبر زمینداوری د همدغه ګوډ تیمور د زمانې شاعر دی، چې په دې یوه بیت کې یې هم د زمان د ناخوالو یو انځور ایستلی دی او دا خبره په صراحت ترې معلومېږي، چې د دغسې تالا نګرو په چپاوونو کې به خلک څنګه د خپلو کورونو پرېښوولو ته اړ کېدل.

د اکبر زمینداوري تر ادبي اثارو وروسته، موږ ته په هندوستان کې د دوو پښتنو شاعرانو تر لاسه شوي اثار مخې ته راځي، چې په شکلي لحاظ نویوالی لري.

دغه اثار د پښتو دوې رباعي دي، چې یوه یې د خلیل خان نیازي او بله یې د هندوستان د افغان پاچا سلطان بهلول لودي ده.

دا دواړه رباعي د پټې خزانې مؤلف د محمد رسول کلاتوال د بیاض له مخې په خپل کتاب کې اخیستې دي، چې دلته راوړل کېږي

د خلیل خان نیازي رباعي

خړې اوربخې ژاړي له پاسه    کویله ږغ کا بلتون له لاسه
په هغه لونې ګوهر په خول ستا    دا مرحبا کا ستا زمور مواسه

د خلیل خان نیازي د لوړې رباعي په ځواب کې د سلطان بهلول لودي

رباعي:

ملک به زرغون کرم په ورکړه راسه    ګوره اوربخې د داد له پاسه
خول مې دعدل په درو روڼ دی    جهان به زیب مومي زما له لاسه

دا دوې رباعي د پښتو پخوانۍ رباعي دي، تر دې دوو رباعیو دمخه مور په پښتو کې د رباعي ځرک نه لرو او د نهمې هجري پېړۍ په جریان کې د شرقي شاعرۍ دغه شعري ډول (رباعي) پښتو ادب ته لاره پیدا کړه. په پښتو ادبیاتو کې د رباعي ویلو تاریخ له همدې دوو رباعیو پیل کېږي. د پښتودغه زړې رباعیګانې د هنر په ګانه سمبال اوبخې رباعیګانې دي، چې له خپلو هنري ارزښتونو سربېره د درباري ادبیاتو ځینې اصطلاحات هم لري، چې له غوري دربار وروسته دا دوهم شاهي دربار دی، چې له افغانستان او پښتونخوا ډېر لیرې په هندوستان کې د پښتو ادب پالنې ته مخه کوي.

د دې رباعیاتو په شاعرانو کې سلطان بهلول د ملک کالاشاهوخیل لودي زوی و. په ۸۱۴هـ ق کال د ملتان په کمانګرانو کې دنیا ته راغی د ځوانۍ په وخت کې سپاهي و، بیا ملک شو، سوداګري ته یې مخه کړه او د خپل لیاقت، مهارت اوبهادرۍ په وجه د ډیلي پاچاهۍ ته ورسېد. ډیلي، پاني پت، دیبالپور، لاهور، هانسي،حصار، جونپور، بهرایچ، ناګور او د ملتان تر څنډو پورې هندي زمکې ټولې د ده په پاچهي کې شاملې وې.

د تاریخ داودي د وینا سره سم سلطان بهلول لودي په ۸۵۰هـ ق کال د ربیع الاول د میاشتې په اوولسمه نیټه په هندوستان کې پاچا شو اوتر ۴۴ کاله پاچهي وروسته په ۸۹۴ هـ ق کال د هندوستان د علیګړ د ضلعې د جلالي په قصبه کې وفات شو.

سلطان بهلول لودي د هندوستان عادل او عالم افغان پاچا و، چې په دربار کې به یې شاعران او عالمان پالل او خپله هم د پښتو ژبې شاعر و. د ده شعري قوت مور د ده له همدې یوې تر لاسه شوې رباعي څخه معلومولای شو، چې سملاسي یې د خپل دربار د شاعر خلیل خان نیازي د رباعي په ځواب کې ویلې ده.

د بلې رباعي شاعر خليل خان نيازي د نهمې هجري پېړۍ په حدودو کې په هندوستان کې اوسېدلی دی او د پښتو ادب تاريخ مورخين لکه استاد رښتين او نور په دې عقيده دي، چې خليل خان نيازي به د سلطان بهلول لودي د دربار شاعر و. ځکه په دې يوه ترلاسه شوې رباعي کې يې درباري اداب د شرقي شاعرۍ له عنعنې سره سم مراعات کړي دي.

په هغو تاريخونو کې چې په هندوستان کې د افغانانو د پاچهيو او اقتدار په باب ليکل شوي دي، هغوی ټول وايي، چې د سلطان بهلول په دربار کې نيازي افغانان د نفوذ خاوندان وو.

د اتمې هجري پېړۍ په اواخرو او د نهمې هجري پېړۍ په دوران کې که په پښتو ادب کې درې نوي شعري ژانرونه، لکه: مثنوي، رباعي او غزل راپيدا شول، نو د همدې نهمې هجري په دوران کې موږ د کندهار په سيمو کې د پښتو يو ديوان لرونکی شاعر وينو، چې د پښتو غټ ديوان يې ليکلی و، او يوه ښکلې (ساقي نامه) يې د پټې خزانې پاڼو تر موږه پورې رارسولې ده. ساقي نامه د شعر يو معنوي ډول دی، چې د خمريه اشعارو په فروعاتو کې شاملېږي او د (تاريخ تحول شعر پارسي) د مؤلف زين العابدين موتمن په وينا په دې ډول اشعارو کې به شاعرانو له ساقي څخه د شرابو آرزو کوله. د ساقي، جام، ګل، مل او صراحي صفتونه به يې بيانول، د دنيا بې وفايي به يې ښوووله او شاعرانو به دا ويل غوښتل، چې د دنيا څو ورځې ژوندون بايد په خوښی بزم او مينوشي تېر شي. دا ډول اشعار په عام ډول د مثنوي په متقارب بحر کې ويل کېدل.

د استاد حبيبي په وينا دا ډول اشعارو په عربو کې له پخوا نه رواج درلود، بيا عجمي شاعرانو دغه ډول اشعار وويل او په همدې تقليدي ډول په پارسي شاعرۍ کې د خمريه اشعارو ويل او د ساقي نامو جوړول پيل شول او د دغو ژبو د ادبياتو تر تاثير لاندې په پښتو شاعرۍ کې هم ساقي نامه ويل باب شوي دي.

د پښتو هغه تر ټولو پخوانۍ لاس ته راغلې ساقي نامه چې زموږ په واک کې ده، ګرده (۳۹) بيته ده چې د سر څو بيتونه يې زه دلته راوړم:

| | |
|---|---|
| ساقي پاڅه پياله راکړه | مرور يار مې پخلا کړه |
| اوبه توېې په لمبو کړه | اور مې مړ په دې اوبو کړه |
| پسرلی سو غنچه ګل کا | زلفې تاوې د سنبل کا |
| بلبلان شور و فغان کا | کړېدن په ګلستان کا |
| زاهدوخي صومعې څخه | شراب پيری ميخانې څخه |
| هر سړی په ميو مست دی | دی بهار کې ګل پرست دی |

په راغو کې سرې لمبې دي | د غتولو ننداري دي
جهان ټول سور او زرغون سو | وچ راغه ښکلي ګلګون سو
سرې ټول شور و شعب کا | یاراني کاندي طلب کا
بهار وقت د یاراني دی | ښه موسم د پیماني دی
نو ساقي پاڅه بهار دی | نن ژوندون سبا رفتار دی

په دې ډول د پښتو دغه تر ټولو پخواني او سملاسي لومړنۍ ساقي نامه پرمخ ځي او د ساقي نامه ویلو ټول هغه آداب او خصوصیات رانغاړي، چې د شعر پوهانو ددغه ډول اشعارو له پاره ټاکلي دي.

د دې ساقي نامې مطالعه رانښيي، چې دغه وخت پښتو ادبیات دنورو شرقي ژبو ادبیاتو ته ښه نژدې شوي وو.

د دغې تراوسه لومړنۍ معلومې ساقي نامې شاعر زرغون خان نورزی دی چې د نوزاد له نورزو ځخه و. په ۸۹۱هـ ق کال یې هرات خراسان او عراق ته سفرونه وکړل. کله چې شیباني خان سیستان ته ورسېد. ده ورسره جنګونه وکړل په ۹۱۲هـ ق کال کې د ده پښتو دیوان بشپړ شوی و او دې دیوان درې سوه پاڼې درلودې، چې یوه ساقي نامه یې موږ ته رسېدلې ده.

زرغون خان نورزی په ۹۲۱هـ ق کال په دیراوت کې وفات شوی دی. سره له دې چې د ده نور اشعار موږ نه دي لیدلي، خو د دې یوې ساقي نامې له مطالعې څخه د ده استادي معلومېږي او دا خبره راته څرګندېږي، چې زرغون خان نورزی د پښتو د لوړې پایې شاعر و، چې د خپلې منطقې له ادبي جریانونو څخه خبر و او د نورو ژبو په ادبیاتو کې یې هم مطالعه درلوده.

- ښوونکي دې شاګردانو ته وظیفه ورکړي، چې له پټې خزانې د زرغون خان نورزي ساقي نامه او له پښتانه شعراء لومړي ټوک د اکبر زمینداوري مثنوي رانقل کړي او په نوبت سره یې په ټولګي کې ولولي. په ګرانو برخو کې یې ښوونکي ورته لار ښوونې وکړي.

"۹"

# د لرغوني پښتو ادب په پرمختیایي یون کې د ښځو برخه

که چېرې موږ د پښتو شفاهي ادبیات مطالعه کړو، نود دغو شفاهي سندرو په جوړولو کې د ښځو برخه د یادونې وړ ده او ډېرې زیاتې دغه ډول شفاهي سندرې د پښتنو کلیوالو ښځو جوړې کړې دي، خو څنګه چې د دغو شفاهي سندرو ویونکي زیاتره نه دي معلوم، نو په دې اساس موږ د دغسې هنري ذوق خاوندو ډېرو ښځو له نامه نه یو خبر.

خو کله چې د پښتو د تحریري ادبیاتو مطاله کوو، نو د نهمې هجري پېړۍ په اواخرو اود لسمې پېړۍ په اوایلو کې موږ د ځینو پښتنو ښځمنو له نومونو سره مخامخ کېږو، چې په پښتو ژبه آثار ترې پاتې دي.

د دغو ښځو آثار موږ ته دا هم رابښیي، چې دغه وخت د پښتنو په ځینو کورنیو کې د ښځو باسواده کېدلو ته توجه کېدله اوداسې ښکاري چې دغه مهال ځینو پښتنو ښځو ته دا حق ورکاوه، چې سواد زده کړي، د دیني علومو زده کړه وکړي او د مدارسو ځینې نصابي منظوم او منثور کتابونه ولولي.

په دغو باسواده شوو ښځو کې به که کومې یوې د لیکوالۍ اوشعر ویلو استعداد درلود، نودې خوا ته به یې هم توجه کوله اوپه پښتو به یې ځینې آثار اړول او یا به یې نظمول. دغه آثار زیاتره اخلاقي او دیني تبلیغي رنګ لري، د دغو ښځو له خوا د دغه ډول آثارو تالیف اوترجمې ته توجه به د دوی د همدغه دیني تعلیم نتیجه وي او د همدغوتعلیماتو تر فکري اغېز لاندې به یې د دیني، تبلیغي او اخلاقي آثارو ایجاداو ترجمې ته هڅه کړې وي. که نه وي د پښتنو کلیوالو ښځمنو له خوا چې کوم شفاهي ادبیات ایجاد شوي دي، زیاتره لیریک او غنایي رنګ لري.

هغه ښځمنې چې آثار یې د پښتو په لومړۍ ادبي دوره کې د مطالعې ځای لري، درې تنه دي، په دغو ښځو کې لومړنۍ یې زرغونه کاکړه ده، چې غالباً به د نهمې هجري پېړۍ په دوهمه‌نیمایي کې زوکړې وي.

دا میرمن د کندهار په پنجوایي کې اوسېده، پلار یې ملا دین محمد کاکړ نومېده او دا خپله د سعدالله خان نورزي مانیه وه. دې میرمنې په ۹۰۳هـ ق کال د سعدي (رح) بوستان په پښتو نظم ترجمه کړی دی.

د پټې خزانې روایت دی، چې دغې میرمنې د بوستان له ترجمې سربېره نور اشعار هم ویلي وو. د زرغونې د پښتو بوستان یو حکایت پټې خزانې راوړی دی، چې زه یې څو بیته دلته رااخلم:

| | |
|---|---|
| اورېدلې مې قصه ده | چې له شاتو هم خوږه ده |
| د اختر په ورځ سهار | بایزید چې و، رویدار |
| له حمامه راوتلی | په کوڅه کې تېرېدلی |
| ایرې خاورې چا له بامه | راچپه کړلې ناپامه |
| مخ او سر یې سو ککړ | په ایرو په خاورو خړ |
| بایزید په شکر کښنو سو | د خپل مخ په پاکېدو سو |
| چې زه وړ یم د بل اور | چې په اور کې سم نسکور |

د ادب پوهانو په وینا دا ترجمه ډېره غښتلې ده او زرغونه د سعدي بوستان له ترجمې بریالۍ راوتلې ده.

د پښتو ادبیاتو په لرغوني دوره کې د زرغونې پښتو بوستان لومړنی اخلاقي اثر دی او تر دغه اثره دمخه موږ په پښتو ادبي آثارو کې دغسې د اخلاقي مفاهیمو رونکي آثار نه لرو او هغه د استاد حبیبي خبره، که چېرې موږ په پښتو ادب کې د اخلاقي ویناوو خاندان سره بېلوو، نو زرغونه له خپله پښتو بوستانه سره د دې ډلې په سر کې درېږي.

له دې سربېره له پارسي ژبې نه پښتو ته د ادبي آثارو د ترجمې تاریخ هم د زرغونې کاکړې له خوا د بوستان له همدې ترجمې څخه پیل کېږي. تر دې ترجمې دمخه موږ ته بل داسې اثر نه دی معلوم، چې له پارسي ژبې څخه دې په پښتو ترجمه شوی وي.

زرغونه کاکړه سربېره پر دې چې د پښتو شاعره او مترجمه وه، د دې ترڅنګه دې بل هنر هم درلود او هغه دا چې نوموړې ډېره ښه خطاطه هم وه.

بله میرمن چې موږ یې باید په زرغونې کاکړې پسې آثار په دې ځای کې مطالعه کړو، هغه رابعه ده.

دا رابعه د پټې خزانې د لیکنو سره سم د ظهیر الدین محمد بابر (۹۳۷هـ ق مړ) د زمانې شاعره وه. په کندهار کې اوسېده، د اشعارو دیوان یې درلود. د دې شاعرې دغه لاندې رباعي پټې خزانې راوړې ده:

| | |
|---|---|
| آدم یې زمکې وته راستون کا | په اور د غم یې سوی لرمون کا |
| دوزخ یې روغ کا، پرمخ د زمکې | نوم یې د هغه، دلته بېلتون کا |

له دې یوې رباعي پرته د دې نور آثار موږ ته نه دي معلوم، اما له دې یوې رباعي څخه یې هم د وینا قدرت ښکاري او دا راښیې، چې رابعې به په خپل دیوان کې عشقي موضوعات په خورا ادبي نزاکت او لطافت بیان کړي وي.

دریمه میرمن چې په دې دوره کې د مطالعې ځای لري، هغه نېکبخته ده دا میرمن نېکبخته د شیخ الله داد لور وه، چې پلار نیکه یې په اشنغر کې اوسېدل. نېکبختې په ۹۵۱هـ ق کال له شیخ قدم سره واده وکړ. میرمن نېکبخته زاهده پرهېزګاره او عالمه ښځه وه.

نېکبختې په ۹۶۹ هـ ق کال (د ارشاد الفقرا) په نامه یو کتاب لیکلی و، چې درې توټې ترې محمد هوتک په پټه خزانه کې اخیستي دي. د یوې توټې څو بیته یې دا دي:

| | |
|---|---|
| په زړه ښاد شې اې مومنه | په ظاهر په باطن سپینه |
| ظاهر زهد په اخلاص کړه | په زړه ټینګ شه له یقینه |
| شکر صبر په هر حال کړه | خودنمای مه شه خود بینه |

د میرمن نېکبختې لاس ته راغلې منظومې توټې تبلیغي رنګ لري او نصایح او پندونه یې په دې اثر کې وړاندې کړي دي، که څه هم د نېکبختې ارشاد الفقرا د ادبیاتو له او سنیو معیارونو سره سم ادبي ارزښتونه نه لري، خو دا چې موږ تر دې کتابه د مخه دغسې تبلیغي اثر نه لرو، نو ځکه موږ دغه اثر او ناظمه یې دلته راوړل. د نېکبختې دغه اثر د پښتو د لرغونو منظومو آثار و د موضوعي وسعت په ښوولو کې مرستندوی ثابتېږي.

ښوونکې دې د سعدي له بوستانه هغه حکایت رانقل کړي چې زرغونې ژباړلی دی، بیا دې په ټولګي کې شاګردانو ته د اصل حکایت نه د پښتو ترجمې پر خصوصیاتو خبرې وکړي.

"۱۰"

# په پښتو ادبیاتو کې د حکایتي آثارو لومړنی نمونې

د نړۍ کابو هر ولس خانته خپل نکلونه او حکایات لري او خلک هم نسبت نورو ادبي آثارو ته د حکایاتو له اورېدو او لوستو سره ډېره مینه ښیي.

زموږ په ولس کې هم له ډېرې پخوا زمانې دغه نکلونه موجود دي، چې په کلیو او باندو کې یې خلک د تفریح د یوې وسیلې په توګه له ویلو او اورېدلو څخه خوند اخلي.

اما د پښتو په تحریري (لیکلو) ادبیاتو کې موږ حکایتي منظوم آثار په لسمه هجري پېړۍ کې مومو.

په دغو حکایتي آثارو کې ترټولو پخوانی اثر د زرغونې پښتو بوستان دی، چې په د مخني بحث کې مو لږ خبرې باندې وکړې. خو دغه اثر له پارسي څخه په پښتو ترجمه شوی دی. په پښتو نظم شوی حکایتي اثر د دوست محمد کاکړ (غرغښت نامه) ده، چې په ۹۲٦هـ ق کال یې په رووب کې نظم کړې ده.

په دې اثر کې دوست محمد کاکړ د (غرغښت) او کاکړ نیکه د احوالو په باب حکایات په پښتو نظم لیکلي دي، له دغه حکایتي اثر څخه یوازې یو حکایت د پټې خزانې پاڼو تر موږه رسولی دی. چې څو بیتونه یې دلته رااخلم.

له نیکانو روایت دی / هسې توګه حکایت دی
نور محمد کاکړ راوي دی / چې یې فیض تل جاري دی
د نیکونو له خولې وایي / چې منښت یې راته ښایي
چې کاکړ نیکه زاهد و / لوی څښتن له تل عابد و

تـل تـر تـل يـې عبـادت کـا | پـر دې لار يـې ريـاضت کـا
شـپې يـې روڼې پـه لمـانځو وې | پـه ژړا او پـه نـارو وې
نـه يې خـوب نـه يـې خـوراک و | عبـادت يـې ژونـد او ژواک و
چې بـه کښېنوسـت پـه لمانځنـه | يـا بـه کـښېووت پـه ستاينه
ورځ يـې تولـه پـه قعـده وه | شـپه يـې هـم يـوه سـجده وه
تـل يـې سـير د لاهـوت کـا | پـه يـوه ګولـه يـې قـوت کـا
غـرق بـه تـل پـه ذکـرالله و | هـر سـبا و هـر بـېګا و

د غرغښت نـامې حکايـات پـه پښتـو مثنوي نظـم شـوي وو، لـه پخـوا څخـه پـه شـرقي شـاعرۍ کې د حکايـاتو د بيـان لپـاره لـه مثنـوي څخـه کـار اخيستل کېږي. د همـدې شـرقي عنعنې پـه پيروۍ دوسـت محمـد کـاکړ هـم د خپلې نظم کړې غرغښت نامې حکايـات پـه پښتـو مثنـوي کې بيـان کـړي دي.

د پښتـو ادبيـاتو پـه لومړۍ دوره کې د دوسـت محمدکـاکړ مثنـوي د پښتـو مثنـوي پـه پرمختيـايي بـهير کې ارزښتمنـه ده، چـې پـه موضوعـي لحـاظ د سيرت، احوالـو، عـاداتو بيان تـه وقـف شـوې ده. پـه دې دوره کـې د غرغـښت نـامې د مثنـوي حکـايت د پښتـو مثنـوي څلورمـه نمونـه ده، چـې د اکـبر زمينـداوري، زرغـون خـان نـورزي او زرغونـې کـاکړې لـه مثنويـاتو وروسـته ايجاد شـوې ده.

د اکـبر او زرغـون مثنويـات لـوړه هـنري مايـه لـري او د پښتـو پـه ډېرو اوچتـو مثنـوي ګـانو کـې شـمېرل کـېږي، خـو د زرغونـې او دوسـت محمـد مثنويات د هنر مـالګه نـه لـري.

دلته بايد دا خبره هېره نـه کـړو، چې پـه اخلاقـي او وعظيـه آثـارو، پندونـو او نصايحو کې ليکـوال او شـاعران چنـدان د هنر خـوا تـه توجـه نـه کـوي، بلکه سک سيخ او نېغ په نېغه د خپـل هـدف د بيـان خـوا تـه هـڅه کـوي.

# "١١"

# په پښتو شعر کې د عرفاني مضامينو د خپرېدو او پراختيا مساله

موږ په د مختيو بحثونو کې ولوستل چې د اوومې هجري پېړۍ په دوران کې عرفاني افکارو پښتو شعر ته لاره پيدا کړه او د حضرت شيخ متی(رح) مناجات د پښتو د عرفاني شعر يوه ښکلې نمونه ده. تر دې وخته وروسته بيا تر لسمې هجري پېړۍ پورې موږ په خپلو لاس ته راغلو پښتو متفرقو آثارو کې دغسې د عرفاني فکر رونکي آثار نه لرو.

اما په لسمه هجري پېړۍ کې موږ له افغانستان او پښتونخوا نه ډېر ليرې د هندوستان په سيمو کې اوسېدلي درې پښتانه شاعران پېژنو چې درې واړه لوی صوفيان، عابدان او زاهدان وو او کوم پښتو آثار چې له دوی څخه راپاتې دي، د عرفاني افکارو بيانوونکي دي.

دغه وخت پښتانه هندوستان ته په کافي تعداد تللي وو، په کتله يي او متفرق ډول يې د هند په ځينو سيمو کې ژوند کاوه او د دوی تر منځ ليکوالان، شاعران او لوی صوفيان هم موجود وو، چې خانقاوې يې درلودې او په هندوستان کې يې د اسلامي فرهنګ د هماغه وختني جريان تر اغېز لاندې عرفاني افکار خپل کړي وو.

دغه په هندوستان کې اوسېدلي درې پښتانه عارف شاعران: شيخ عيسی مشواني، شيخ علي سرور لودي او شيخ بستان بړيڅ دي. د دوی احوال او آثار په پټه خزانه، مخزن افغاني، مرآت الافاغنه، تاريخ مرصع او نورو آثارو کې راغلي دي، او د دوی روحاني مرتبې او عارفانه مقامونه يې ښوولي دي.

له دغو شاعرانو څخه شيخ عيسی مشواني د هندوستان په دامله کې اوسېده او د هندوستان د افغان باچا شيرشاه سوري معاصر و. د ژوند زمانه يې د ۹۵۰ هـ ق شاوخوا ټاکل شوې ده. ده په پښتو، پارسي او هندي ژبو يو ګډه رساله ليکلې وه. چې دا رساله منظومه وه، چې له دغو درې سرو ژبو څخه د ده د کلام نمونه مخزن افغاني او نورو کتابونو اخيستې ده. په دغو نمونو کې يوه درې بيتيزه کوچنۍ پښتو غزله هم شته. چې دلته راوړل کېږي:

په خپله کارکړي په خپله انکار کړي
کله بادار یم کله مې خوار کړي
ته خو قادر یې په صفتونو
کله مې نور کړي، کله مې نار کړي
عیسی حیران دی په دې شیونو
کله مې یار کړي، کله اغیار کړي

د ده له دغو څو محدودو بیتونو څخه موږ ته شیخ عیسی مشواني د یوه پاخه صوفي په بڼه څرګندېږي او دی چې په کومه شیوه وینا کوي، د ده د وینا طرز د حضرت خواجه عبدالله انصاري(رح) پرهرات مناجاتو ته نژدېوالی ښیي.

تر شیخ عیسی وروسته د هند په سیمو کې بل اوسېدلی عارف شاعر، شیخ علي سرور لودي دی، چې دی هم د لسمې هجري پېړۍ په دوران کې د ملتان په کهرورنو مې سیمه کې اوسېده. مرحوم استاد حبیبي یې د ژوند زمانه د ۹۶۰هـ ق حدود ټاکلی ده.

ده د مریدانو یوه حلقه درلوده او له دې سربېره خلکو به هم د دیني او عرفاني مسایلو د حل په برخه کې ده ته رجوع کوله.

محمد هوتک په پټه خزانه کې د تحفهء صالح په حواله د ده یوه صوفیانه غزل او هم د ده ځینې عارفانه اقوال رااخیستي دي، چې غزل یې دا دی:

محبت پیاله مې نوش کړه په مجاز کې
د حق نور وینم په سترګو د ایاز کې
درست وطن راته دریاب شو بې دیدنه
دید مې نه شي مګر خدای مې سبب ساز کې
که زه مړ شم هم له ګوره کړم سر پورته
ناګهانه چې دلبر راته آواز کې
که مې سر غوڅ د رقیب په تېره تېغ سي
هم به خم که دلبر غوښت په مهر و ناز کې
زه و یار مداماً ناست وو یو له بله
پر غماز دې باري کاني دغم ساز کې
ګران. بېلتون به د هغو مینو وینه
چې تل ناست وي په خلوت کې سره راز کې
اې (سروره) غمازان سوه بې حسابه
پاک الله دې صورت تش بې مغزه پیاز کې

په پټه خزانه کې د شيخ علي سرور لودي له اقوالو او غزلې معلومېږي، چې شيخ په اسلامي تصوف کې د زياتې مطالعې خاوند و او د لويو متصوفانو آثار يې لوستي وو او د ډېرو مشکلو عرفاني مسالو د حل صلاحيت يې درلود.

د دې ډلې دريم شاعر شيخ بستان بړيڅ دی، چې پلار يې محمد اکرم نومېده او د ښموراوک له بړيڅانو څخه و په ځوانۍ کې هندوستان ته ولاړ او د دغه هېواد په سامانه نومي ځای کې اوسېده.

ده د بستان الاوليا په نامه يو کتاب هم ليکلی و، چې د پټې خزانې مؤلف ترې ځينې آثار اخيستي دي. د مخزن افغاني مؤلف وايي چې شيخ بستان د خاص شور او درد خاوند و. هره ورځ به يې پنځلس پارې قرآن عظيم تلاوت کاوه او پښتو اشعار به يې په خورا جذبه او شور ويل.

د مخزن افغاني مؤلف نعمت الله هروي د (ګوه) په بحري سفر کې يو نيم کال د شيخ سيستان بړيڅ ملګری و. شيخ د ۱۰۰۲ هـ ق کال د ربيع الثاني په ۲مه نېټه د ګجرات په احمد آباد کې وفات شو او د هغه ځای د غرباوو په هديره کې خاورو ته وسپارل شو.

د ده يوه له شوره ډکه او دده له عرفاني جمال سره برابره يوه خوندوره بدله د پټې خزانې مؤلف په خپل کتاب کې اخيستې ده، چې زه يې (سر) او يو بند دلته راوړم:

اوښکې مې ښاخي پر ګرېوان يو وار نظر که پرما

راسه ګذر که پر ما

***

د مينې اور دې زما زړګی وريت په انګار کئ نا

ښي تارونار کئ نا

خود به ويلېږم چې مې زړه پرتا مفتون کئ نا

ځان مې زبون کئ نا

اوښکې مې ښاخي پر ګرېوان يو وار نظر که پر ما

راسه ګذر که پر ما

لوی استاد مرحوم پوهاند عبدالحی حبيبي او دوکتور عبدالغفور روان فرهادي د شيخ بستان د لوړې بدلې پر عرفاني ارزښتونو بشپړلې ليکنې کړې دي، او د ده عرفاني مقام يې څرګند کړی دی او دا يې ويلي دي، څه چې شيخ بستان په دې بدله کې بيان کړي دي، هغه د عرفان او عارفانو په مشرب کې موجود حال دی. چې صوفيان کله کله د وصل په وخت کې له اينده هجرانه ويرېږي او تل د سوز په حال کې وي. په دغه بدله کې چې کوم درد، سوز او شور او جذب شته هغه د شيخ بستان بړيڅ له هغه حاله سره سمون لري، چې د مخزن مولف د ده په احوالو کې بيان کړی دی.

د شیخ بدله په شکلي لحاظ زموږ د اولسي شاعرۍ د بدلې د ژانر یوه زړه نمونه ده، چې تر شیخ تیمن کاکړ وروسته دا بدله مخې ته راځي، او له دې دوه بدلو پرته موږ په خپل زاړه ادب کې د دغه شعري ډول بله نمونه نه لرو.

له لوړو یادو شویو دریو عارفو شاعرانو سربېره بل شاعر چې د کندهار په سیمو کې تېر شوی دی. هغه شیخ محمد صالح الکوزی نومېږي. دا شیخ د پټې خزانې په روایت د جلدک په سیمو کې اوسېده. ډېر عابد او عالم سړی و. خپل وخت یې طالبانو ته په تدریس تېراوه او خلکو ته به یې د سمې لارې لارښوونه کوله.

مرحوم استاد حبیبي د پښتو ادبیاتو تاریخ کې د ده د ژوند زمانه د ۱۰۰۰ هـ ق شاوخوا ټاکلې ده او دا یې ویلي دي، چې دی به د لسمې هجري پېړۍ په وروستۍ نیمایي کې زېږېدلی وي، ځکه د یوولسمې په اوایلو کې په سیمه کې د ده د شهرت او علمیت اوازې خپرې وې او د کندهار د هغه وخت امرا هم د ده له شهرته خبر وو او دا یې هیله وه، چې شیخ دربار ته ورشي، مګر ده دا خبره ونه منله.

د ده احوال او اشعار ملا الله یار په تحفهء صالح کې راوړي دي، پټې خزانې د ده دوې غزلې د تحفه صالح په حواله رااخیستي دي، چې له هغو دوو غزلو څخه یې یوه دا ده:

د لیلی د مینې فیض هر سبا وړم
بېهوده منت به ولې د نور چا وړم
چې اشنای د شپې ناڅاپه په لاس کښېووت
روښان زړه په کوګل پټ لمر په سما وړم
پر دنیا که تجارت څوک د دنیا کي
زه د زړه په بازار بار د عشق سودا وړم
که پر تخت مې د سلیمان سپور کړې سړیه
عاقبت خاورو ته ښه عمل پېشوا وړم
بې له عشقه خوشحالي پر ما حرامه
زه (صالح) که په خوله خوښ په زړه ژړا وړم

دا لوړه غزله شیخ محمد صالح د کندار د هغه وخت د صوبه دار شاه بېګ د غوښتنې په ځواب کې لیکلې او ورلېږلې وه، د ده په لوړه غزله کې یو ډول عارفانه استغنا لیدل کېږي او د کوم عشق یادونه چې ده کړې ده، هغه د ده له حاله سره سم الهي عشق دی، چې د ټولو صوفیانو زړونه پرې ښاد وي.

دده بله غزله هم له دغسې عشقه بیان لري.

ددغو صوفیانو منظم او ډېر آثار زموږ په واک کې نشته، یوازې د پخوانیو مورخانو د لیکنو او د دوی د خپلو لږو آثارو له مخې دومره ویلای شو، چې دغه کسان عارفان وو او له دغې پوهې خبر او په دې لاره روان وو.

"۱۲"

# د پښتو ادبیاتو لومړی دورې ته یوه عمومي کتنه

د پښتو د ادبي تاریخ لومړی دوره له دوهمې هجري پېړۍ څخه پیل کېږي او د یوولسمې هجري پېړۍ تر اوایلو پورې دوام کوي.

د دې دورې آثار د خپلو ځانګړو خصوصیاتو له امله دغه لاندې ارزښتونه لرلای شي:

(۱) د پښتو کوم آثار چې په لومړی ادبي دوره اړه لري، په کمي لحاظ ډېر نه دي. او د هرشاعر او لیکوال محدودې شعري نمونې تر موږه رارسېدلې دي. د دې دورې د ډېرو شاعرانو او لیکوالو د کتابونو نومونه موږ ته ښکاره دي خو زیاتره دا کتابونه او دیوانونه اوس ورک دي.

ښایي له ځینو لوستونکوسره دا پوښتنه راپیدا شي، چې دا آثار نو ولې ورک دي؟

دغسې احتمالي پوښتنو ته په ځواب کې باید وویل شي، چې افغانان د اسلامي عصر په بېلابېلو پېړیو کې د پردیو یرغلګرو او مهاجمینو تر یرغلونو او تهاجماتو لاندې واقع شوي دي، په دغو یرغلونو کې چې چا د پردو په مقابل کې زیات مقاومت کړی دی هومره ضررونه هم ورته زیات متوجه شوي دي او تولې مادي او معنوي شتمنی یې له خاورو سره خاورې شوې دي. پښتانه د عربو له حملو نیولي، بیا د چنګېز او تیمور بیا د نادر افشار او نورو یرغلګرو تر مستقیمو حملاتو لاندې راغلي دي. څه یې چې درلودل دغو حملو خوړلي دي او په ډېر ضعیف احتمال ویلای شو، چې ښایي ډېر لږ آثار به له دغو تاړاکو په امن کې پاتې وي. چې هغه هم تراوسه لا نه دي ترلاسه شوي.

د پښتو د لومړی دورې په آثارو کې یوازې د سلیمان ماکو د تذکره الاولیا د بشپړ کتاب ځینې برخې موږ ته رسېدلې دي. په عمومي ډول د پښتو د ادبي تاریخ د لومړی دورې آثار متفرق آثار دي.

(۲) که څه هم د پښتو د لومړۍ دورې آثار په کمي لحاظ لږ دي، خو په کیفي لحاظ ځیني دغه ډول آثار ډېر لوړ ارزیابي کېدلای شي

د غوري دورې قصیدې، د شیخ متي مناجات، د اکبر زمینداوري اشعار، د شیخ تیمن، شیخ بستان بدلې او هم د علي سرور او شیخ محمد صالح الکوزي غزلې د خپلو فکري ارزښتونو تر څنګه لوړه هنري مایه هم لري. د دې دورې ځیني نور اشعار که څه هم ساده دي، خو په سادګۍ کې یوه ابتدایي ښکلا هم ورسره مله ده. د دې دورې ځیني آثار تش نظمونه دي، چې ناظم نبغ په نبغه خپل هدف په منظومو او وچو الفاظو کې بیان کړی دی.

(۳) د دې دورې آثار سره له دې چې په کمي لحاظ لږ دي، خوله دغو لږو آثارو هم موږ په شکلي او موضوعي لحاظ د انکشاف څرک ایستلای شو.

الف: د دې مهال آثار موږ ته راښیي چې د دې دورې ادبي پدیدې پر یوه حال ولاړې نه دي او نه یو ډول شعري انواع موږ په دې آثارو کې ګورو، بلکه په دې دوره کې پښتو شاعري د خپلو عنعنه یي ملي اوزانو سربېره په دریمه هجري پېړۍ کې قطعه بیا په پرله پسې پېړیو کې قصیده ورپسې غزل او مثنوي چې د شرقي شاعرۍ عمده شعري ډولونه دي، خپل کړل. د پښتو د ولسي شاعرۍ له ژانرونو څخه چاربیتي او بدلې هم په همدې دوره کې خپله ښه خپله کړې ده. او د پښتو د لرغونو سندرو او شعري انواعو ځای یې نیولی دی.

ب: د مضمون په لحاظ هم د پښتو آثار په دې دوره کې وسعت پیدا کوي، د ژوند بېلابېل موضوعات په دې اشعارو کې بیانېږي، لکه: د رزم او بزم خبرې، دیني او عرفاني موضوعات، اخلاقي پند و نصایح، وعظونه او نور د دې دورې په اشعارو کې لیدلای شو.

ج: د شعر ځیني ځانګړي معنوي ډولونه، لکه ویاړنه (فخریه)، ساقي نامه او حکایتي آثار هم په همدې دوره کې په پښتو شعر کې ځان څرګندوي. د امیر کروړ سوري ویاړنه، د زرغون خان نورزي ساقي نامه او د دوست محمد کاکړ د غرغښت نامې ځیني حکایات د دې دورې د شعر د معنوي اقسامو ډېرې ښې نمونې دي.

د امیر کروړ ویاړنه او د زرغون خان ساقي نامه د خپل جوړښت، ادبي قوت او شعري ځانګړنو له امله د پښتو ادبي تاریخ په وروستیو دورو کې هم بل ساری نه لري. دا ډول اشعار موږ وروسته هم لرو خو کوم قوت او شور چې د امیر کروړ او زرغون خان په ویاړنه او ساقي نامه کې شته، په وروستیو دې ته ورته آثارو کې نه لیدل کېږي.

(۴) پښتو ادبي پديدې او پښتو اثار په دې دوره کې مجرد نه دي راپيدا شوي، بلکه د سيمې له ژبو او ادبياتو سره په ارتباط کـې يـې وده موندلې ده. د دريمې هجري پېړۍ په دوران کې له عربي ژبې نه پښتو ته ترجمه پيل شوه او د ابن خلاد شعر ابو محمد هاشم په پښتو نظم ترجمه کړ او بيا راوروسته لـه پارسـي ادب سـره د پښتو ادبياتو نژدې اړيکې پاتې شـوې دي، پښتـو ادبيـاتو پـه دې دوره کـې ځينـې معنوي ارزښتونه له پارسي ادب څخه خپل کړي دي. دا خبره طبيعي هم ده، ځکه پارسي دغه مهال په منطقه کې مسلطه فرهنګي ژبه وه. ډېر شاعران او فرهنـګي اثـار يې درلودل، نو د دغسې يوې ژبې اثرات د منطقې پر نورو ژبو حتمي دي.

له پارسي اثارو نه پښتو ته ترجمه هم دغـه مـهال پيـل شـوې ده، د لسمې هجـري پېړۍ په لومړيو کلونو کې يوې پښتنې مېرمنې د سعدي(ح) بوستان په پښتو نظم واړاوه.

(۵) د دې دورې متفرق اثار د سيمې په لحاظ هـم پـه يـوه خاى كـې نـه دي ايجاد شوي، بلکه له غوره نيولې ان د هندوستان تـر سيمو پـورې پرتـو زمکـو کـې ايجاد شوي دي او دا خـبره پـه دې دلالـت کـوي چـې پښتانـه دا وخـت د غـور اوسليمان له غرو سربېره د افغانستان او (روه) او هندوستان په لتو کې خپاره وو.

(٦) په دې دوره کې موږ ځينې داسې متفرق اثار هم لرو، چـې د دربـارونو لـه خوا ورته د توجه او پالنې څرک هم ځنـې ايستلاى شـو، لکـه دغـور د شـاهانو پـه دربارونو کې د شاعرانو موجوديت او د دوى اثار او دغه د هندوستان د افغان باچـا سلطان بهلول لودي دربار هم لرو ډېر دغه ډول خصوصيات درلودل.

(۷) د دې دورې کوم اثار چې زموږ په واک کې دي، زياتره د پښتو دوو لرغونـو تذکرو پټې خزانې او تذکره الاولياء خوندي کړي دي، د ځينو لکه تـايمني او اکبر زميداوري اثار په متفرق ډول تر لاسه شوي دي. دغه اثار د منبع پېژندنې لـه پلـوه کومه خلا نه لري او له کره او باوري اسنادو څخه ګڼل کېږي.

(۸) دغه لاس ته راغلي اثار د ژبـې د لغـاتو، ترکيبونـو او نـورو ګرامـري ژبنيـو خصوصياتو او له نورو ژبو سره د امېزش يو سيســتماتيک تحـول پـه لاس راکـوي، د دې دورې لومړني اثار تر زياته حده د پښتو خپل زاړه لغات او تراکيب لري، خو پـه وروستيو پېړيو کې له نورو ژبو په خاص ډول پارسي او عربي سره نژدېوالى ښيي.

د پښتو د ادبي تاريخ لومړۍ دوره د پورتنيو خصوصياتو په لرلـو سـره پـاى تـه رسېږي او پښتـو ادبيـات لـه نـوو تمـايلاتو او نويـو فکـري ارزښتونـو او تـازه ادبـي جريانونو سره يوې پرمختللې بلې دورې ته داخلېږي.

# د پښتو ادبیاتو د تاریخ

# دوهمه دوره

د پښتو ادبیاتو د تاریخ دوهمه دوره، چې منځنۍ (متوسطه) دوره هم ورته
ویلای شو، د لسمې هجري پېړۍ له اواسطو پیل کېږي او د څوارلسمې هجري پېړۍ
تر لومړیو دوو درېیو لسیزو پورې رارسي.
دلته ښايي ځینو کرانو لوستونکو ته دا سوال پیدا شي، چې مورخو په لسم
ټولګي کې ولوستل چې د لومړۍ ادبي دورې وروستي آثار او شاعران، لیکوال آن د
یوولسمې هجري پېړۍ تر اوایلو پورې هم ژوندي وو، نو دا څنګه کېدای شي، چې
لومړۍ دوره دې ختمه نه وي او دوهمه دې بیا د لسمې هجري پېړۍ له اواسطو
پیل شي؟
دغسې پوښتنو ته په ځواب کې باید ووایو چې د ادبي تاریخ دورې داسې نه
دي چې هغه دې په کرونو لوژیك ډول د پېړیواوکلونو یا د سیاسي رژیمونو او
پاچهیو د سقوط اوبرقرارېدو په اساس مور سره تنظیم کړو، بلکه خبره دا ده چې دا
دورې د ادبي آثار و او ادبي پدیدو د ودې او انکشاف شرایطو او هم ددغو پدیدو
شکلي او موضوعي خصوصیاتو ته په پاملرنه تنظیمیږي،نو په همدې اساس دا خبره
ضرور نه ده اونه امکان لري، چې یوه ادبي دوره دې ختمه شي او بله دې پرې
پسې جوخته شروع شي.
د دې خبرې ښکاره مثال خپله دغه د پښتو ادبیاتو تاریخ دی، چې لومړۍ
دوره یې لا د خپل انکشاف نهايي سیرونه بشپړوي، چې د دوهمې دورې زړي یې
اینښوول کېږي او دا ځکه چې په همدې لسمه هجري پېړۍ کې د یوولسمې تر
اوایلو مور د پښتو په آثارو کې ځینې داسې ادبي پدیدې او د دغو پدیدو هستوونکي
ګورو، چې دغه خلك او ددوی آثار د خپلو شرایطو او د آثارو د خصوصیاتو له امله په
دوهمه دوره کې د مطالعې ځای نه لري او مور اړ یو، چې دغه ډله لیکوال او
شاعران د دوی له آثارو سره په لومړۍ دوره کې مطالعه کړو.

د پښتو د ادبي تاريخ دوهمه دوره له لومړۍ دورې څخه په هر لحاظ کامل توپيرونه لري.

په دې دوره کې پښتو ادبيات د افغانستان او پښتونخوا او هند په سيمو کې له خينو ملي، مذهبي او پښتني جنبشونو سره په ارتباط کې ايجاديږي او وده کوي. د منطقې مسلط فرهنګي او ادبي جريانونه پر پښتو ادبياتو خپل اغېز ښندي او د همدغو جرياناتو په پيروي په پښتو ادب کې ځانګړي سکونه پيدا کېږي او ځانته خپل خاص پيروان مومي.

د دې دورې يوه عمده ځانګرنه دا ده، چې موږ د دې دورې بشپړ او مکمل ادبي او فرهنګي آثار په واك کې لرو. په دې دورې پورې مربوط په سلګونو پښتو ديوانونه، په سلګونو قصصي آثار او په زرګونو ولسي سندرې له موږ سره شته، چې د پښتو د ادبي تاريخ د يوې سترې پانګې په توګه هراړخيز بحثونه پرې کولای شو. دې دورې ته موږ د منظومو آثارو دوره هم ويلای شو او دا څکه چې په لومړۍ دورې پورې مربوط آثار زياتره متفرق دي.

په دې دوره کې د پښتو ادبياتو علايق له ګاونډيو ژبو سره هم پراختيا مومي. له عربي،پارسي او هندي ژبو څخه پښتو ته او له پښتو څخه خينو دغو ژبو ته د آثارو د راکړې ورکړې مساله هم خپلو لوړو پړاوونو ته خېژي.

د پښتو د ادبي تاريخ دا دوهمه دوره څو پړاوونه لري، چې هر پړاو ته مربوط آثار د ايجاد د شرايطو، خپلو خصوصياتو او فکري هنري اغېز منلو له امله يو اوږد واټن راچاپېروي. د دې خبرو مانا دا ده، چې کله موږ په روښانيانو بحث کوو، نودا بحث له بايزيد روښان څخه پيل کېږي، چې د فرهنګي فعاليتونو وخت يې د لسمې هجري پېړۍ دوهمه نيمايي ښوول شوی دی، او په قادر داد او ورکزي پای ته رسي، چې دا کسان بيا د دوولسمې پېړۍ خلك دي. حال دا چې له بايزيد او د ده له پيروانو سره په يوه زمان کې اخوند درويزه ننګرهاری(رح) هم پښتو ته مخه کوي. په پښتو آثار ليکي او ژباړي او يا خينې نور کسان په ادبي فعاليتونو لګيادي. دلته نو موږ په دې اثر کې ليکوال او شاعران په کرونولوژيك ډول د زوکړې او مړينې د تاريخونو په اساس نه مطالعه کوو، بلکه هرې ډلې، هر فکر او هر فرهنګي، ملي اجتماعي غورځنګ ته مربوط اشخاص او آثار که يې هر وخت ژوند کړی وي، تر هماغه يوه عنوان لاندې راولو او بحث پرې کوو. موږ داسې نه کوو، چې اول پر بايزيد(رح) بحث وکړو، له ده سره د معاصريت پر اساس بيا د درويزه(رح) بيان وړاندې کړو. بلکه د روښان او روښانيانو تر بحث لاندې ټول هغه آثار او شاعران مطالعه کېږي. چې په فکري لحاظ د دې ډلې تابع دي. درويزه او دده د سلك پيروان که دهرې زماني

دي، تر څانګړي عنوان لاندې مطالعه کېږي، دغسې د خوشحال، رحمان بابا، عبدالحمید مومند او نورو سبکونو، پیروان دروا خلئ.

په دې ادبي تاریخ کې د تاریخیت عنصر له پامه نه غورځول کېږي، خو ادبي پېښې او د ادبي پدیدو د رشد او انکشاف مسایل په تاریخ وار یا کرونولوژیک دول نه ارزیابي کېږي.

تر نورو مقدماتي خېرو وروسته دا دوره له روښاني غورځنګ نه پیل کوو او همداسې پرې پسې په اخوند درویزه اود ده پرپیروانو، بیا ددې دورې پر نورو فکري او فرهنګي جریانونو بحثونه کوو، تر هغې چې دا دوره ختمه شي او ځای یې بله دریمه (معاصره) دوره ونیسي.

«۱»

# روښانيان او پښتو ادب

په هندوستان کې د لودي پښتنو د دوهمې پاچهۍ په وروستيو کلونو کې د پنجاب په جالندهر کې د ارمړو افغانانو په يوه روحاني کورنۍ کې يوه ماشوم نړۍ ته سترګې پرانيستې چې کورنۍ يې د بايزيد نوم پرکېښود.

ددغه بايزيد پلار قاضي عبدالله نوميده، چې د وزيرستان د کاڼي ګرم له ارمړو څخه و، د پنجاب په جالندهر کې يې د ارمړو افغانانو د حاجي ابابکر له لور بي بي ايمنې سره واده کړی و، د عبدالله او ايمنې نيکونه سره ورونه وو.

د بايزيد د زوکړې کال د ښاغلي قلندر مومند د نوي تحقيق مطابق ۹۲۵هـ ق يا ۹۲۶ خو اوښتا کېل کېږي.

بايزيد لا د اوو کالو په شاوخوا کې ماشوم و، چې د لوديانو دوهمه پاچهي په ۹۳۲هـ ق کال د بابر مغول له لاسه چپه شوه او په هند کې پر اوسېدونکو افغانانو چې هغه وخت څه راغلي دي، د هغو احوال په تاريخي کتابونو کې شته. بايزيد په خپله ليدلې چې له افغانانو سره برغلګرو لښکرو څه کول؟ ښځې او ماشومان يې وروژل، دغه ډول قصې د بايزيد په خپله حالنامه کې هم يو څه راوړل شوې دي.

بايزيد په دغسې يوه حالت کې له هندوستانه (روه) ته راغی او په خپل پلرني ټاټوبي د وزيرستان په کاڼي ګرم کې يې له خپل پلار قاضي عبدالله سره ژوند پيل کړ.

دغه وخت په هندوستان کې د افغانانو خپل قدرت له لاسه ورکړی و او د هند د ګورګاني امپراتورۍ مزي له کابله تر هندوستانه غځېدلي وو او له کابله تر هنده د پرتو سيمو افغانان د هند د ګورګاني واکمنو د سورو د آسونو تر سومونو لاندې دل کېدل او د اوسني افغانستان نورې سيمې د شمال او جنوب او غرب له خوا د نورو

کاونډیو حکومتو تر تسلط لاندې وې او افغانانو مستقل مرکزي حکومت نه درلود.
بایزید په دغسې شرایطو کې لویېده او تر دې چې د درس شو، پلار یې ملا پاینده ته کښېناوه، له هغه یې قرآن عظیم ختم کړ. بایزید له خپل پلار او ملا پاینده څخه مروجې زده کړې تر یوې اندازې سرته ورسولې.
د حالنامې له مطالعې څرګندېږي چې بایزید له کوچنیوالي د بوه متشبث فکر خاوندو او ذهني بیداري ورسره مله وه.
ده د مروجو زده کړو او د ځینو فقهي کتابونو تر لوست وروسته، د خپل باطن د صفا کولو او د خپل نفس د تزکیې اوپه الهي انوارو د خپل زړه د رڼولوخوا ته ډېره توجه درلوده. ده غوښتل چې د دغو روحاني مراتبو د حاصلولو لپاره د چا مرید شي. د بایزید هیله دا وه، چې د خواجه اسمعیل مرید شي او د ده پر لاس توبې ته کښېني، مګر پلار یې قاضي عبدالله اجازه ورنه کړه. خو د بایزید په زړه کې چې د کومې مینې اورونه بل وو، په دې لاره کې یې خپلو هڅو ته دوام ورکړ. [٢١] کاله یې ریاضت وکاله او تر دغه ریاضت وروسته د پیرۍ درجې او د خلکو د روحاني لارښوونې مرتبې ته ورسېد. د پیرۍ، ښه سریتوب او خلکو ته د لارښوونې آوازې یې تر ملکونو خورې شوې، له هرې خوا به خلك ورته راتلل او دده لاس نیوی به یې کاوه.
بایزید روښان یوه روحاني او تصوفي لاره درلوده، چې زموږ په فرهنګي خېړنو کې د روښاني تصوفي لارې په نامه هم یادېږي.
د ده تصوفي لاره د اسلامي عرفان د وحدت الشهود د عرفاني لارې په پیروي جوړه شوېده، چې کله کله د وحدت الوجود خوا ته هم تمایل ښیي.
بایزید لکه د اسلامي فرهنګ پخواني عارفان د خپلې عرفاني لارې لپاره اته مقامه ټاکلي وو، چې نومونه یې دا دي:
(١) شریعت : په دې مقام کې سالك د اسلام پر ینځو بناوو پابندي کوي.
(٢) طریقت : د طریقت په مقام کې باید سالك نه خپل ځان کې د ډېرښتو خصوصیات پیدا کړي.
(٣) حقیقت : خفي ذکر د دې مقام اساسي عنصر دی. سالك په د خفي ذکر له امله د باطن صفایي حاصلېږي.
(٤) معرفت : سالك په دې مقام کې د حق دیدار ته رسېږي.
(٥) قربت : په دې مقام کې د سالك غوږونو ته دحق آواز وررسي.
(٦) وصلت : سالك د وصلت په مقام کې د حق تعالی له ذات نه پرته بل څه نه ویني.
(٧) وحدت : په دې مقام کې سالك خپله هستي فنا کوي.

(۸) سکونت : په دې مقام کې د سالك روح آرام مومي، غوږونه، سترګې، پوزه او کړده حواس يې د حرامو له اوربدو، ليدو او بوييولو فارغ وي.

بايزيد په خپله تصوفي لار کې د يوه سالك لپاره لوړ ياد شوي اته مقامات مقرر کړي دي او د دې لارې هر لاروی بايد دغه اته مرحلې تېرې کړي، څو د کمال مرتبې ته ورسي.

هغه کسان چې د بايزيد د طريقت پر لار روانېږي، نو بايزيد ورته اووه صفته ټاکلي دي. د روښاني لارې يو پيرو بايد دغه صفات ولري. هغه اووه صفتونه دا دي:

(۱) له حرامو دې ځان وژغوري.

(۲) اسراف دې نه کوي، لږ دې خوري او لږ دې ځني.

(۳) خبرې دې لږې او په نرمۍ کوي او بدې خبرې دې نه کوي.

(٤) خوب دې لږ کوي، په خوب اويه ويښه دې د خدای په يادووي.

(۵) د نېکانو صحبت دې کوي او د بدانو له صحبته دې ځان ژغوري.

(٦) لوی خدای دې تل پټ يادوي.

(۷) لوی خدای به په يووالي پېژني او تل دې د خدای(ج) په يادو کې وي.

اته مقامونه اواووه صفتونه د بايزيد د صوفيانه لارې د شمزۍ حيثيت لري، له دې سربېره دا لار ځينې نور شرايط او اذکار هم لري، چې پر ټولو خصوصياتو يې بحث دلته مورد نه لري.

روښان د خپلې تصوفي لارې د تبليغ او ترويج لپاره خپل مبلغين او استازي بېلابېلو خايونو او باچهانو ته واستول، لکه:

- خليفه دولت يې له خپل صراط التوحيد نومي اثر سره د هند مغلي باچا جلال الدين اکبر ته واستاوه.
- خليفه يوسف يې له خپلې فخرالطالبين نومې رسالې سره د بدخشان مشر ميرزا سليمان ته واستاوه.
- خليفه ارزاني د تبليغ په منظور هندوستان ته ولاړ.
- خليفه مودود يې کندهارته ولېږه
- شيخ بايزيد يې ورکزو او تيراه ته واستاوه.

له دغو استازو او مبلغانو سربېره بايزيد خپله هم د خپلې روښاني لارې د تبليغ او د ده له عقايدو سره سم خلکو ته د سمې لارې د ښوولو په لاره کې جدي کار او جدوجهد کاوه.

کله چې ده په خپل پلرني ټاټوبي کاني ګرم کې و، د سمې لارې طالبان به پر راټولېدل او ده د مريدۍ په حلقه کې به شاملېدل او دده د مريدانو په ډله کې نراد... دواړه شامل وواو ډېرې ښځې د بايزيد مريدانې وې.

بايزيد د خپلي لارې د تلقين لپاره يو وخت خپل تاتوبی پرېښود، تیراه ته ولاړ او د تيراه د استوګني په موده کې ډېر اپرېدي، ورکزي، بنګښ او تيراهي د ده تابع شول او د ده لاره يې غوره کړه.

له تيراه نه پېښور ته لاړ، پدې سیمه کې یې هم ډېر خلک مريدان شول او د پیرۍ اوازه يې هرې خوا ته خوره شوه او شهرت يې ډېر شو.

دغه وخت ملك حبيب ورسره مخالف شو او د پېښور مغلي حاکم جانس خان ته یې دده شکايت وکړ، جانس خان څو تنه پوه كسان د بايزيد د احوالو د معلوملو د پاره ده ته ولېږل، هغو خلکو چې له بايزيد سره خبرې وکړې، بېرته جانس خان ته راغلل او ورته يې وويل چې بايزيد يو کامل درويش دی. بيا نو جانس خان ملك حبيب راوغوښت او وې راته د ده بیاهم د زړه سوده ونه شوه، کابل ته ولاړ چې د ميرزا حکیم وزيرانو ته د پيسو د ورکولو په وسيله د بايزيد د مرګ حکم ترلاسه کړي، خو ميرزا حکیم بایزید کابل ته وغوښت او په کابل کې ميرزا حكيم، قاضي خان ورولېږه، له خبرو او مباحثې او پوښتنو ځوابونو وروسته قاضي خان ميرزا حکیم ته وويل چې بايزيد کامل پير دی.

د کابل په همدې سفر کې ميرزا حكيم بايزيد ته وويل چې: پښتانه ستا په قدر څه پوهېږي ته په دوی کې څه کوې؟ بايزيد ځواب ورکړ: زه په دوی کې پيدا شوی يم او د دوی يم نوبايده دي چې دوی ته لار وښيم.

بايزيد له کابل نه بېرته پېښور ته راغی او له پېښور نه هشنغر ته ولاړ. په هشنغر کې يې ډېر مامنزي مريدان شول.

دغه مهال يوه واقعه داسې پېښه شوه، چې له هندوستانه راغلی يو کاروان دلته لوټ شو.ددې لوټ په مقابل کې مغلي واکمنو پر هغه کلي او خلکو ناتار جوړ کړ. له تالانګرو سربېره يې د ښځو او ماشومانو په وژلو هم لاس پورې کړ او پاتې ښځې، نر او ماشومان يې بنديان کړل. له دې ناتار نه چې بايزيد روښان خبرشو، نو يې ميرزا حکیم ته وليکل چې د کاروان لوټوونکي څو تنه مجذوبان وو، دوی خپله سزا وليدله، ښځې او ماشومان يې څه ګناه لري هغه بايد خوشي کړای شي؟

کله چې دا خط د ميرزا حکيم د وزيرانو لاس ته ورغی، نو ميرزا يې دده پر ضد ولمساوه او ميرزا حکیم د پېښور صوبه دار معصوم خان ته وليکل، چې بايزيد روښان ونيسي. بايزيد چې له دې حکمه خبرشو، نو له هشنغر نه تو تي ته ولاړ ، مغلي لښکر هغه خای ته پسې ورغی بايزيد او د ده پلويان مريدان يې محاصره کړل او بايزيد دې ته اړ شو، چې په نره د مغلي لښکر مقابله وکړي. د بايزيد روښان لومړنی جنګ په دې ځای کې واقع شو، نو يې بيا پردې ځای د (آغازپور) نوم کښېښود او کومو روښانيانو چې په دې جنګ کې ګډون درلود هغه يې آغاز پوريان وبلل.

روښان له خپلو پیروانو سره له دې جنګه بریالی راووت بیا تیرا ته ولاړ، څه موده پس د یوسفزو ملك ته ورغی.

بایزید روښان د حالنامې د روایت مطابق د آغازپور له جنګ نه دوه نیم کاله وروسته وفات شو. د آغاز پور د جنګ تاریخ د خیرالبیان د حیدرآباد دکن د سالار جنګ د میوزیم له نسخې ۹۸۳هـ ق کال راوزي، نو په دې حساب به بایزید روښان د ۹۸۵هـ ق کال په جریان کې وفات شوی وي.

د بایزید تر مړینې وروسته د ده بله کړې دېوه مړه نه شوه. بلکه د ده اولادې او پیروانو د ده پرایستلې لار یون وکړ او د ده عرفاني او حربي سنګر یې تر کلونو کلونو پورې تود وساته. بایزید روښان په ځوانۍ د خپل تره له لور بي بي شمسو سره واده کړی و، چې له دې مایني نه یې پنځه زامن او یوه لور درلوده. د زامنو نومونه یې دا دي: شیخ عمر، خیرالدین، نورالدین، کمال الدین او جلال الدین. بایزید روښان بله ماینه هم درلوده او له هغې یې یو زوی درلود. چې دولت نومېده. د بایزید ټول زامن د خپل پلار د لارې پیروان او د دې لارې سرسخت پلویان وو، ډېرو یې د دې لارې د تبلیغ او د روښان په لاس د بلې کړې دېوې د روښانه ساتلو په لاره کې خپل سرونه هم بایلل. د بایزید تر مړینې وروسته د روښانیانو خلافت د بایزید مشر زوی شیخ عمر ته ورسېد چې د ده دخلافت زمانه د ۹۸۵ ـ ۹۹۹هـ ق کلونو تر منځ ټاکل کېدای شي. تر شیخ عمر وروسته جلال الدین د دې دلې مشر شو، چې د ډاکټر میرولي خان مسود د تحقیق له مخې د ده د خلافت دوره د ۹۹۹ نه تر ۱۰۱۲هـ ق پورې اټکل شوې ده، تر جلال الدین وروسته احداد د شیخ عمر زوی د روښانیانو خلیفه شو، چې د خلافت دوره یې له ۱۰۱۲ نه تر ۱۰۳۲هـ ق کال پورې وه او تر احداد وروسته د ده زوی عبدالقادر خلیفه شو، چې تر ۱۰۴۴هـ ق کال پورې یې د دې ډلې مشري کوله.

په حالنامه کې راغلي دي چې د بایزید روښان کورنۍ څلور پښته د افغانانو پر قبیلو حکومت وکړ، اویا کاله د هند د مغلي باچهۍ له لښکرو سره وجنګېدل، چې کله به غالب او کله به مغلوب وو، خو هېڅکله یې پرې کامل بری نه و موندلی، مګر د خپل منځي اختلافونو له امله یو له بل نه جلا شول، او بالاخره د باچا تابع شول. د ۱۰۲۸هـ ق یا ۱۰۲۹هـ ق کال شاوخوا رشید خان (الهداد) د جلال الدین زوی د خپلې خور له مېړه او تره زوی احداد سره مخالف شو. د روښان پیر دله دوه ځایه شوه، یو ځای له احداد سره په تیرا او دروه په غرو کې له مغلو سره جنګ ته پاتې شوه او بله دله د الهداد په مشرۍ هند ته ولاړه او د جهانګیر بادشاه په ملازمت کې شامله شوه، منصبونه او جاګیرونه یې ترلاسه کړل او د مغلي باچا د پاچهۍ د ټینګښت د پاره یې د هند په زمکو کې تورې ووهلې.

د عبدالقادر تر مړینې وروسته د عبدالقادر مور دده له لښکرو سره د خپل وررشید خان او د مغلي باچا شاه جهان په بلنه هند ته ولاړه او دا نهضت هم ورسره پای ته ورسېد.

د بایزید روښان د نهضت په باب هم مختلفي نظر یې بیان شوي دي، چا دا نهضت یوازې عرفاني نهضت بللی دی، چاملي رنګ ورکړی دی او ځینو لا د بزګري نهضت نوم هم پرابښی دی.

کاندید اکادمیسن روهي د دغو نظریو پلویان ټول په خپلو څېړنو (د بایزید جهان بیني) او د ادبي څېړنې په یوه لیکنه کې ښوولي دي او د ټولو دلایلو ته یې اشارې کړې. خو مور په لنډه توګه دومره ویلای شو، چې دا نهضت بزګري خو هېڅکله نه و او نه بزګري نهضت کېدلای شي. په اساسي ډول دا نهضت یو عرفاني نهضت و، چې وروسته وروسته یې سیاسي رنګ واخیست او د وخت حکامو پرې جنګونه تحمیل کړل او بایزید یې د مسالمت له لارې خپل تبلیغ او خلکو نه د سمې لارې (دده په عقیده) ښوولو ته پرې نښود.

که څه هم د بایزید روښان نهضت یو عرفاني نهضت و، خو د دده عرفان یو خانقاهي او منزوي عرفان نه و، بلکه بایزید او دده خلیفه ګان او مبلغین به د خلکو په منځ کې وو. په غرو او درو به ګرځېدل په (روښان ستوري) نومي اثر کې د بایزید د (صراط التوحید) په استناد د پوهاند رښتین بیان دی. چې بایزید روښان به د ځوانی په دوران کې د سوداګرۍ لپاره هندوستان، کندهار او نورو ځایونو ته ته راته.

د کندهار په یوه سفر کې د کندهار د مغلي حاکم بیرم خان سړیو د دوی پر کاروان ددې ظلم او تېری وکړ او له نیمایي نه زیات مال یې ترې واخیست. د کاروان خلک او بایزید بیرم خان ته ورغلل. د انصاف غوښتنه یې ترې وکړه، خو د خپلې وعدې باوجود یې د دوی پوښتنه ونه کړه.

دې واقعې د بایزید پر زړه ناوړه اثر پرېښود او چې کور ته راغی، نو د سوداګرۍ له کاروباره یې لاس وکېښ او پنځه کاله یې ریاضت وکېښ. تر دې ریاضت وروسته یې د زړه صفايي حاصله کړه او چې د روحانیت درجې ته ورسېد، نو د خپلې لارې د تبلیغ خوا ته یې مخه کړه. ده د سولې او مسالمت له لارې خپله لار تبلیغوله او نفوذ یې په خلکو کې مخ په زیاتېدو و، د خپلو خلکو په خوا کې ولاړ اوتر دې چې د وخت حاکمانو د ده د نفوذ برداشت نشوای کولای، نو یې څکه پلمه ورته جوړه کړه او پر ده یې حملې پیل کړې، ده هم د مجبوریت له مخې توري ته لاس تېر کړ، چې دا نوره بیا د ده زامنو او لمسیانو او پیروانو تر کابو اویاو کالو پورې وچلوله.

بایزید روښان د توري ترڅنګه د قلم خاوند هم و، د خپلو خلکو د پوهولو د خپلې عرفاني لارې د تبلیغ او عامو خلکو ته د دیني او شرعي احکامو د ښوولو په

منظور ده په پښتو، پارسي، عربي او هندي ژبو آثار وليکل.دی په پارسي او پښتو ژبو منظوم او منثور آثار لري، چې له دغو آثارو څخه يې ځينې مور ته پاتې دي.

د بايزيد روښان په لاس ته راغلو آثارو کې لاندې کتابونه د يادونې ور دي:

۱) صراط التوحيد: دا کتاب بايزيد په پارسي او عربي ژبو ليکلی دی، يعني نيمايي مسايل يې په پارسي او نيمايي يې په عربي بيان کړي دي. بايزيد روښان دا کتاب په ۹۷۸هـ ق کال کې تاليف کړی دی. په دې کتاب کې بايزيد د خپل کوچنيوالي احوال، بيا د خپل دعوت خبرې راوړې او ورپسې باچهانو ته درې نصيحته ليکي، ورپسې د توبې اصول او د پير کامل صفات بيانوي او د کتاب په يوه باب کې د خپلې تصوفي لارې مقامونه تشريح کوي.دا کتاب په ۱۹۵۲ع کال په پېښور کې چاپ شوی دی.

۲) مقصود المومنين: دا کتاب بايزيد روښان د خپل مشر زوی شيخ عمر په غوښتنه په عربي ژبه ليکلی‌دی، ټول ۲۱ فصله دی. مقصود المومنين هم د روښان پير د روحاني او تصوفي اصولو بيان ته وقف شوی دی او په وروستيو بابونو کې يې د روښاني عرفان د مقاماتو تشريح او بيان راغلی دی. مقصود المومنين ددوکتور مير ولي خان له يوې تحقيقي مقدمې سره په تحقيقي ډول په ۱۹۷۵ع کال په اسلام آباد کې چاپ شوی دی.

۳) فخرالطالبين: ددغه کتاب نوم په حالنامه کې راغلی دی، خو تر اوسه نه دی پيدا شوی،حالنامه وايي چې بايزيد دغه کتاب د بدخشان ميرزا سليمان ته استولی و.

٤) حالنامه : په دې کتاب کې بايزيد خپل احوال ليکلي وو. د بايزيد روښان حالنامه دده يوه مريد علي محمد مخلص شينواري بشپړه کړې او له سره يې ليکلې ده، د ده د کورنۍ، اولاد، لمسيانو، او مريدانو احوال يې هم پکې راوړی دی. د حالنامې ځينې برخې د روښان د عقايدو او افکارو بيانونه هم لري.

٥) د رسم الخط رساله: دا رساله د خيرالبيان په پيل کې راغلې ده. په دې رساله کې بايزيد د پښتو خاصو آوازونو، لکه: (ښ، ږ، ځ، څ، ډ، ړ) او نورو لپاره ځينې ځانګړي اشکال وضع کړي دي، چې د ده دا وضع کړي ليکدود په پښتو څېړنو کې د روښاني ليکدود په نامه يادېږي. دلته بايد دا خبره توضيح کړو، چې د پښتو ليکدود (رسم الخط) د سلطان محمود غزنوي په زمانه کې جوړ شوی‌دی، بايزيد روښان په پښتو ليکدود کې اصلاحات راوستي دي.

٦) خيرالبيان: د بايزيد روښان ډېر مهم اثر خير البيان دی، چې په څلورو ژبو، عربي، فارسي، هندي او پښتو يې تاليف کړی دی. دا کتاب څلوېښت بيانونه لري.

په خيرالبيان کې عقايد، شرعي احکام، عرفاني او اخلاقي مباحث راغلي دي، د حلال او حرامو بيانونه، نور فقهي حکمونه او د عباداتو برخه په دې کتاب کې په

تفصیل سره خېړل شوې ده.

د خیرالبیان د پښتو برخې د شکلي جوړښت په باب له پخوا نه دا خبره معموله وه، چې خیرالبیان بایزید په مسجع نثر کښلی دی، مګر استاد رشاد د خپلو عروضي څېړنو په مرسته ددغه کتاب ځینې برخې نظم ثابتې کړې دي او د خپلې هغې څېړنې (خیرالبیان نظم دی که نثر؟) په نتیجه کې یې ویلي دي، چې که ټول نه وي، نو د دې کتاب یوه برخه خو هرومرو نظم ده.

د خیر البیان یوه ټوټه داده:

«مـرګ به ورشي وسړي وته ننګهان، نشته دسري پـه دنیـا کې تل دتله مقام اوچاردې کا د ښکرې په واړه اندامو هله کنبوځي زما په راحت کې ادمیان.»

د خیرالبیان یوه نامکمله نسخه په آلمان کې او یوه بشپړه نسخه یې د حیدرآباد د کن د سالار جنګ په میوزیم کې خوندي دي. د هند په نسخه کې ټول مضامین په څلورو ژبو راغلي دي او د آلمان په نسخه کې له لومړیو څو مخونو پرته د خیر البیان په نور متن کې د څلورو ژبو خیال نه دی ساتل شوی.

د آلمان د نسخې له مخې په ۱۹۶۷ع کال په پېښور کې او په ۱۳۵۳هـ ش کال په کابل کې خیرالبیان چاپ شوی دی. د خیرالبیان یو متن ښاغلي قلندر مومند هم په پېښور کې چاپ کړی دی.

تذکره: د بایزید روښان دا رساله په ۱۳۵۵هـ ش کال د روښاني رساله په نامه او په ۱۳٦٤هـ ش کال د علم رساله په نامه چاپ شوې ده. د رسالې نوم (تذکره) ده، لکه خپله بایزید چې ویلي دي:

دا تذکره د علم
رساله نومینه

په حالنامه کې هم دا رساله د (تذکره) په نامه یاده شوېده. په دې رساله کې دیني احکام او ځیني فقهي او عرفاني مسایل په نظم بیان شوي دي. د بایزید روښان دا رساله د اوردو قصیده ډوله نظمونو په قالب کې اوډل شوېده. پیل یې په دې بیت شوی دی:

میـا روښان ویلـــي دینـــه　　　　دا سړي دې یـې نغورینه

او په پای کې یې دا لاندې بیتونه راغلي دي:

دا تصنیـف د میا روښان دی　　　　ســړی دې یـې نغـورینه
خدای د پاره دې یې ساز کا　　　　چې غلطي پکې مـومینـه

فرحت المجتبي: دا د بایزید روښان یوه بله منظومه پښتو رساله ده، چې د پښتو د اولسي شعر په آهنګونو کې یې نظم کړې ده.

د دې منظومې رسالې پیل داسې شوی‌دی:

ميا روښان ولي دي په عنايت د الهي
زه به دربيان کړم يو څو رباعي

د دې رسالې په پای کې يې ويلي دي:

ميا روښان ويلي دا رساله مې فرحت المجتبي

دا رساله تر اوسه نه ده چاپ شوې، مضامين يې د عرفاني مسايلو بيان ته وقف شوي دي. د بايزيد روښان د آثارو له کتنې څرګندېږي، چې ده په عربي، هندي، پارسي او پښتو ژبو دڅه ليکلو توان درلود او خپل عرفاني افکار او په ديني او شرعي تبليغ پورې مربوط مسايل يې په دغو څلورو سرو ژبو بيان کړي دي.

ده په پارسي نثر او نظم او په پښتو د مسجح نثر توټې او منظوم اثار ليکلي دي.

د بايزيد روښان پښتو آثار هنري ارزښتونه نه لري، نو ځکه د ادبياتو د اوسنيو تعبيرونو سره سم بايد دده پر آثارو په دې اثر کې بحث نه واى شوى، خو دا چې بايزيد د يو داسې نهضت باني او سرلاري دی، چې افکارو يې په يوه ځانګړي زماني پېر کې پر پښتو ادبياتو خپل اغېز ښندلی دی او دده پيروانو پښتو ادب ته ډېر څه ورکړي دي، نو ددغسې ادبي آثارو د تحليل او څېړنې لپاره لازمه بريښي چې پر روښان اودده پر آثارو او افکارو هم څه مختصربحث وشي. ما هم په همدې نيت دا لور بحث پر وکړ.

د بايزيد آثار که ادبي ارزښت ونه لري، خو دغه آثار د ژبې د لغاتواو ترکيبونو يوه عمده ذخيره لري او د پښتو ژبې د تحولاتو په عمومي مطالعاتو کې خپل ځای لري. له دې سربېره په پښتو او پښتنو کې د عرفاني افکارو او انديښو د څېړنو په لړ کې د بايزيد آثار په ډېره لوره پورې کې ځای لري او دا ځکه چې د بايزيد آثار په پښتو کې هغه لومړني آثار دي، چې يوه مشخصه عرفاني نظريه په بشپړه توګه پکې بيان شوې ده. که څه هم تر بايزيد دمخه هم مور په پښتو کې د عرفاني آثاروڅرک مومو، خو هغه آثار لږ دي او د يوه سيستماتيك او منظم عرفاني فکر د لټون لپاره کفايت نه کوي.

# د پښتو ادبیاتو په پرمختیایي بهیر کې د روښانیانو هڅې

هسې چې دهند د مغلي دولت په وړاندې د بایزید روښان له تیکې رااېستې توره د ده اولادې او مریدانو په کلونو کلونو وچلوله او دهند مغلي امپراتوري یې ناآرامه کړې وه، دغسې د ده مریدانو، پیروانو او اولادې د بایزید د فکر پلوشې تر کابو یوې نیمې پېړۍ پورې ځلاندې وساتلې او د ده مفکوره او عرفاني حرکت دده په مریدانو او پیروانو کې ژوندی پاتې شو.

په لس ګونو شاعرانو د ده د افکارو او نظریاتو د تبلیغ او تلقین لپاره مستقل آثار، رسایل او غټ غټ کتابونه وکښل او د اشعارو دیوانونه یې جوړ کړل.

اوس به موږ وګورو چې د ده مریدانو او پیروانو پښتو ادب ته څه ورکړي دي؟

دلته د ده د مریدانو او پیروانو ادبي کارنامې د تاریخي تسلسل له مخې راوړل کېږي.

د بایزید روښان په مریدانو کې پخوانی سړی چې پښتو آثار یې موږ ته رسېدلي دي هغه ارزاني خیشکی دی، ارزاني د برهان خان زوی و او د پنجاب په قصور کې اوسېده. ارزاني د خیشکو په قبیله کې د عزیز زي په خېل پورې اړه درلوده. خود ده دیوان له یوه شهادته داهم راوزي چې ارزاني زیر زوته منسوب و. کېدای شي زیرزی د عزیزو یوه پښه وي.

د ارزاني د زوکړې او مړینې یقیني نېټې موږته نه دي معلومې، کومه وروستۍ نېټه ، چې د ده د پښتو شعرو له دیوان څخه تر لاسه کېږي، هغه د ۱۰۱۰ هـ ق کال ده، نو څکه تر دغه وخته پورې موږ د ده ژوند یقیني ګڼو. د حالنامې له یو بیان څخه ښکاري چې دی د بایزید معاصر سړی و اود ژوند وروستي وختونه یې د ډیلي د توابعو د خورجي په خیشکو کې تېر کړي دي، ښایي مړ هم هلته وي؟

په حالنامه کې راغلي دي، چې کله د بایزید د پیرۍ آوازې هرې خواته خورې شوې، نو د هند له لوري درې ورونه ملا ارزاني، ملا علی او ملا عمر راغلل اود بایزید روښان مریدان شول. ارزاني بیا بایزید د تبلیغ او خلکوته د سمې لارې د ښوولو په منظور هند ته واستاوه.

ارزاني په پښتو ژبه منظوم او منثور آثار ليکلي دي، چې په آثارو کې يې دغه لاندې کتابونه موږ ته معلوم دي:

(۱) د پښتواشعارو ديوان، چې د شعر د شکلي اقسامو له پلوه غزل، قصيده اورباعي پکې شته او د شعر له معنوي اقسامو څخه د ده په ديوان کې برجسته شعري ډول الفنامه ده.

الفنامه د شعر يو معنوي ډول دی، چې په دې ډول شعرونوکې د الفبا هر توری شاعر د خپل مشرب سره سم تشريح کوي. د ارزاني الفنامې يوه د قصيدې په چوکاټ کې ده او بله د رباعيو په کالب کې ده. دا په دې معني چې ارزاني په لومړۍ الفنامه کې د الفبا هر توری په يوه بيت کې تشريح کړی دی. اوپه دوهمه الفنامه کې يې د الفبا هر توری په يوه رباعي کې تشريح کړی دی.

ارزاني روښاني په پښتو کې لومړنی شاعر دی، چې الفنامې يې ويلي دي. په ځينو عرفاني طريقو کې د حروفو (توريو) اسرارو او عددي ارزښتونو ته توجه لرل ليدل کېږي، چې روښانيانو هم د توريو دغو اسرارو ته ارزښت ورکړی دی.

(۲) بې نومه رساله: د ارزاني له خطي ديوان سره مله يوه پنډه منظومه رساله يا د رسالو مجموعه هم شته، چې دغه رسايل ټول د رباعياتوپه کالب کې نظم شوي دي. په دې رباعياتو کې ديني اوعرفاني مسايل او ځينې حکايات ليدل کېږي. ارزاني د پښتو ادبياتو په تاريخ کې لومړنی سړی دی چې د رباعياتو په کالب کې يې پرله پسې مطالب راوړي دي.

(۳) حکايت رسول: د ارزاني دغه اثر هم د رباعياتو په کالب کې نظم شوی دی او د حضرت پيغمبر عليه السلام د يو خوب قصه پکې راغلې ده، دا رساله داسې پيل شوې ده:

اې د آدم زويـــــه ورځ بـــه دريشـــی غه لويه
که ته غه خواري ووينــي ته به ښل شې له خپل زويه

(٤) د ارزاني منثوره رساله: ارزاني د روښان پير د نظر يو په تشريح او تفسير کې يوه منثوره پښتو رساله هم لري، چې خطي نسخې يې ليدل شوې دي. د ده نثر مسجح نثر نه دی، بلکه روان نثر دی، چې دلسمې هجري پېړۍ له شرايطو او غوښتنو سره برابر يې ليکلی دی، يوه ټوټه يې دا ده: «د سړي اندامونه خدای کړي دي، د هر اندام بخره شته، سترګې خدای کتو لره کړې دي او خوله خدای خبرو لره کړېده ، او پوزه خدای دم لره کړېده او غوږ خدای اروېدو لره کړی دی او پښې خدای يانه لره کړې دي او زړه خدای ياد لره کړی دی».

(٥) مراة المحققين: دا اثر ارزاني په پارسي ژبه ليکلی دی، دا هم يو عرفاني اثر دی، چې د روښانيانو فکري اغېزې پکې ښکاري، دا اثر نه دی ليدل شوی، خو

اقتباسات یې په حالنامه کې راغلي دي.

اخوند درویزه ننګرهاري (رح) په خپل کتاب تذکرة الابرار والاشرار کې لیکي چې ملا ارزاني تیز فهم فصیح او زیرک سړی و، په څلورو ژبو پښتو، پارسي، عربي او هندي یې شعر وایه، او د (چهار رما) په نامه یې هم یو اثر لیکلی دی، چې دا اثر هم تر اوسه نه دی لیدل شوی.

د ارزاني آثار په فکري او موضوعي لحاظ د بایزید روښان د افکارو او عرفاني نظریاتو تفسیر او تشریح ته وقف شوي دي، موږ ده ته د روښان د افکارو مفسر او شارح ویلای شو. د ده کلام له عرفاني موضوعاتو سربېره دیني او اخلاقي، حکایتي او کله کله اجتماعي مسایل هم بیانوي، د بایزید روښان وضع کړي اته مقامات یې په خپل یو نظم کې داسې پیيلي دي:

| | |
|---|---|
| شـــریعـــت دی، طـــریقت دی | حقیقت یـــې معـــرفت دی |
| هر چې دا څلور یې خپل کـړل | د بـــابـــا آدم پرېـــت دی |
| بل قربت، بل یې وصلـــت دی | بـل وحدت بل سکونت دی |

د ارزاني اشعار د هنر مالګه نه لري، خپل قصاید، غزلیات او رباعیات یې په وچه ژبه نظم کړي دي. او د استاد رښتین خبره چې ارزاني په خپلو اشعارو استعارې، تشبیهات او کنایې نه دي راوړې.

تر ارزاني روښاني وروسته موږ د ځینو داسې روښاني شاعرانو له نومونو سره اشنا کېږو، چې د دوی منظم آثار تر موږه پورې نه دي رسېدلې، بلکه متفرق آثار یې حالنامې تر موږه پورې رارسولې دي، او موږ د دغه بحث د تکمیل لپاره اړ یو، چې د دوی یادونه هم وکړو: په دغو کسانو کې یو تن حاجي ګدای نومي، چې د بایزید معاصر سړی دی، د پېښور د شاوخوا سیمو اوسېدونکی و. په حالنامه کې یې دی د حاجي ګدای سړبني په نامه ښوولی دی، په بېړه پور کې له روښان پیر سره یو ځای شوی و، د ده مرید شوی و او په دې لاره کې د کمال درجې ته رسېدلی و. په حالنامه کې د ده ځینې اشعار شته، چې څو بیته یې دا دي:

| | |
|---|---|
| داخلـور څیـزه لطیف دي | د فقیـــر پـــه ځان ناساز دی |
| کـــه مـا فهـم دلیل وکه | یو دیدن دی بـل آواز دی |

بل سړی چې په دې لړۍ کې یې موږ نه شو هېرولای، هغه درویش دادو دی، د ده هم متفرق پښتو بیتونه په حالنامه کې راغلي دي.

درویش دادو د فرید خان زوی و، د تیرا په سیمو کې یې ژوند کاوه. د بایزید او د ده د زامنو په زمانه کې ژوندی او د روښاني مسلك پیرو و. په دې لار کې د خلیفه تر درجې پورې رسېدلی و.

د ده لاندې بیتونه کامل پیر (روښان) ته د عقیدتمندۍ ښکارندویي کوي:

د کامـل مخ آئینه دی　　د حـــق مـــخ پکې لیده شي
د مـرید قبله کامل دی　　دکامل وخپل مخ وته کاته شي
درویش دادو په تیرا کې مړ شوی دی.
د درویش دادو لور شهزادګله هم د روښانیانو په پیروانو کې شامله وه، په حالنامه کې د دې پښتو بیتونه هم شته، لکه:

اې جلۍ شهزادګلـــې
د هېچابه روزي نه شې
ته د شهنشاه خپلـــې

ابابکر کندهاری د روښانیانو په ډله کې بل د یادونې وړ فرهنګي شخصیت دی، چې د مراة العارفین په نامه یې په پښتو ژبه د اشعارو یو دیوان درلود، هغه دیوان اوس ورک دی، مګر ځینې اقتباسونه یې په حالنامه کې راغلي دي.
ابابکر کندهاري د عثمان کاسي زوی و، په تیرا کې یې استوګنه درلوده، د جلال الدین او احداد معاصر دی، د احداد د لښکرو مشر و، کله چې د احداد او الهداد (رشید خان) تر منځ مخالفت پیدا شو، ابابکر د الهداد طرفداري وکړه او په ۱۰۲۸ هـ ق کال یا ۱۰۲۹ هـ ق کال شاوخوا هندوستان ته ولاړ، هـورې اوسېده د ژوند په وروستیو وختونو کې د هند داوړیسي ایالت ته لاړ او دمیدنـي پـور فوجدار مقرر شو. خو کله چې د احداد د وژل کېدو له واقعې خبر شو، خو را ناوره اغېزه یې پروکړه اوله دې ګرومه دی هم ومړ او په میدنی پور کې په خپله حوېلۍ کې خاوروته وسپارل شو. د مړګ کال یې ۱۰۳٤ هـ ق کېږي، په حالنامه کې د ده یو رزمي پارکـی خوندي دی، چې د احداد او روښانیانو د یوه جنګ قصه یې پکې بیان کړې ده او څو نور بیتونه یې هم راغلي دي چې د هند دمغلي پاچا جهانګیر په دربار کې دده د اوسېدلو ښکارندویي کوي، هغه بیتونه دا دي:

ابابـــکر سرفراز شو په عالم کې　　چې پخپلـه حضـرت شاه یادکړله سلو
ظاهري بادشاه سایه د الهي دی　　شکـــرانه د لـــوی بـادشاه ده دویلو

میرزا خان روښاني د نورالدین زوی د بایزید روښان لمسی او د روښانیانو په ډله کې تر ټولو مشهور معروف او لوی شاعر دی.
د ده مور زلیخا نومېده، میرزا په ډېر کوچنیوالي کې له مور وپلاره جلا شو، په کوچنیوالي کې تر تاندې ځوانۍ پورې په تیرا کې اوسېده او بیا د رشید خان د پلویانو په ډله کې د ۱۰۲۸ هـ ق او یا ۱۰۲۹ هـ ق کال شاوخوا له ابابکر کندهاري سره یو ځای د ملتان له لارې لاهورته لاړ او له باچا سره یې ولیدل بیا د باچا په ملازمانو کې شامل شو، جاګیرونه یې وموندل او بالاخره د دکن په جنګ کې په ۱۰٤۰ هـ ق کال ووژل شو.

په حالنامه کې د میرزا خان په باب ډېر بیانونه شته، په حالنامه کې راغلي دي، چې میرزا خان په سیرت او صورت آراسته سړی و، سپینې جامې یې اغوستې، له سیل او تفریح سره یې ډېره علاقه درلوده او له خلکو سره به یې صحبت کاوه، د ناروغانو پوښتنه به یې کوله، ظاهر اوباطن یې دواړه صفا وو، رباب یې ډېر ښه ږغاوه.

ده د روښاني شاعرانو په روزنه کې هم برخه اخیستې ده، علي محمد مخلص او دولت له میرزا څخه ډېر فیض موندلی دی. میرزا د اشعارو یو بشپړ پښتو دیوان لري، چې خورا مشهور دی او څو ځله چاپ شوی دی. د ده دیوان په ځینو ځایونو کې د هدایت الحقیقت په نامه هم یاد شوی دی.

د ده په دیوان کې غزلې، قصیدې، مخمس او ځینې نور شعري انواع لیدل کېږي، د هنر په لحاظ هم د میرزا خان دیوان د ارزانې په پرتله ځینې هنري ځانګړنې لري، اما د ده اشعار هم د هنر په جامه هومره نه دي پسولل شوي. د ده پر دیوان پوهېدنه ګرانه خبره ده، ځکه ده ډېر غامض او ګران تصوفي مسایل په پښتو نظم کې بیان کړي دي. محققین عقیده لري، چې میرزا خان د پښتو ادبیاتو او د شرقي فرهنګ دلویو متصوفانو د آثارو تر منځ نښتون پیدا کړی دی.

میرزا خان د روښاني لارې او د روښاني عرفان د تبلیغ تر څنګه د اسلامي تصوف عمده او اساسي اصطلاحات په شعر کې راوستي دي.

د روښاني د مخنیو شاعرانو په پیروي ده هم په پښتو الفنامه ویلې ده. د ده الفنامه د غزلو په چوکاټ کې بشپړه شوې ده. دی د روښاني شاعرانو په ډله کې قدیم سړی دی چې دغزلو په قالب کې یې پښتو الفنامه ویلې ده. که څه هم میرزا چې څه تبلیغي او تلقیني مسایل بیان کړي دي. زیاتره د هنر مالګه نه لري، خو ځینې داسې غزلې او نور شعرونه یې هم په دیوان کې شته، چې سړی ورته په هنري ارزښت قایلیدای شي، لکه دا لاندې غزل، چې خوبیته یې دلته راوړم:

چې دیـار د مینې خـوب پـه خـراب زړه ورم
بېهـوده بـه د نـور چـامنت پـه څـه ورم
خپـل اشنـا د یـادو داغ رابانـدې کېښـود
د دې داغ نقـش یـې عیـن پـه لېمـه ورم
دواړه کسـې مې لـه دغـه سیـاهی روغ دي
اوس یـې ځکـه پـه سیـاهی پسـې لیـده ورم
دې یـوه کتولـه هـره لـوري بېـل کړم
دا د جنـګ نـاوك یـې ډوب پـه لړمانـه ورم

د میرزا په دیوان کې د عرفاني مسایلو د بیان تر څنګه اخلاقي مطالب، نصایح او

عشقي خبرې او ورسره ځيني واقعاتي مسايل او مرثيه هم موندل کيږي، د احداد مرثيه يې سوزناکه ويلې ده، په هغه زمان کې چې په دکن کې کوم حالات روان وو، د هغو بيان يې هم په يوه پارکي کې کړی دی.

خواجه محمد د روښانيانو د ډلې بل شاعر دی، چې د ده هم پښتو ديوان تر اوسه نه دی ليدل شوی، دوی غزلې يې په حالنامه کې راغلي دي. دی د ابابکر کندهاري زوی و. له خپلې کورنۍ سره هندوستان ته تللی و اُو د هندوستان په اوسته کې اوسېده. د ده دوې ترلاسه شوی غزلې د روښان د عرفاني افکارو څلا لري. دی د يو ولسمې پېړۍ د روښاني شاعرانو په ډله کې ولاړ سړی دی، يوه غزله يې چې مطلع نه لري، د بايزيد روښان په وصف کې داسې بيانونه لري:

د حضرت لار دې تازه کړه — اې روښانه حـق نمايــــه
طالبـــان دې بينــا کـــړي — درځرکند دي دواړه خايه
ډېر گمراه دې پر لار کړي — د مضـلو رهنمـــايـــــه

واصل روښاني، د روښان په ډله کې د ديوان خاوند شاعر تېر شوی دی، چې د دبستان مذاهب له مؤلف «موبد» سره يې ليدلي دي، نوموړي موبد د روښانيانو په باب مطالب زياتره د واصل له خولې ليکلي دي. د واصل ژوند تر ۱۰۵۸ هـ ق کال پورې يقيني دي.

د ده ديوان او الفنامه زمونږ په واك کې دي، ديوان يې هم چاپ شوی دی او الفنامه يې هم چاپ ده.

د واصل روښاني په ديوان کې قصيده، غزل، رباعي، مخمس او قطعه پيدا کيږي، دا ديوان په فکري لحاظ د روښاني تصوف تر اغېز لاندې جوړ شوی دی او ځيني عمده عرفاني مسايل يې يکې راوړي دي او دخپلې وينا سره سم يې د معرفت رموز بيان کړي دي، لکه چې ده خپله ويلي دي:

د واصــل کلام رموزد معرفت دی
د شاعر په دود خبره په ميزان کړم

د ده کلام سره له دې چې، لکه نور روښانيان د هنر پانګه ډېره نه لري، خو اشعار يې پخوالی اُو متانت لري، او لوست يې په سړي کې يو ډول خاص کشش او شور پيدا کوي. واصل هم ، لکه ميرزا ډېر درانه تصوفي مسايل راوړي دي، خو څومره ګران او مشکل نه دي لکه د ميرزا هغې.

د ده ديوې غزلې دا څو بيته زمونږ د لورو خبرو د ثبوت دلايل کېدای شي:

جهان روغ دی لـه ســوده هـم لــه زيانــه
د بـــاطن پرېشانـــي مـــه ګنـــه اسانـــه

هر احوال چې په صورت باندې تېرېږي
په قدرت يې بيرون نه دی له فرمانه
دحکمت داهل زرونه رحمتي دي
قياس که د بل عذاب له خپله خانه

د بايزيد روښان دمقصود المؤمنين يوه پښتو ترجمه د هند د دکن د سالار جنګ په موزيم کې شته، چې همه دان ابن شيخ نعمت ليکلې ده او فکر کېږي، چې دا پښتو ترجمه به دهمدغه همه دان وي. همه دان د يوولسمې پېړۍ په دوران کې ژوند کړی دی.

د مقصود المؤمنين دغه پښتو ترجمه ادبي ارزښت نه لري، خو د روښاني پښتو آثارو په لړۍ کې يې يادونه ضرور وه.

کريم داد بنګښ د روښانيانو د ډلې يو داسې شاعر دی، چې په پښتو او پارسي ژبو يې اشعار ويلي دي. د اشعارو يو نيمګړی ديوان يې د پېښور پښتو اکېډيمي چاپ کړی دی، ده په پارسي اشعارو کې عيشي تخلص کړی دی.

دی دشمالي هندوستان د فرخ آباد دشمس آباد په سيمو کې زوکړی دی او په رشيد آباد کې اوسېده او هورې لوی شوی دی او ښايي چې هماليته به مړ وي. يوه سنه چې د ده له اشعارو څخه لاس ته راځي هغه ۱۰۵٦ هـ ق کال دی، نو ځکه زموږ محققينو د ده ژوند تر دغه وخته يقيني ګڼلی دی.

د کريم داد په موجود ديوان کې قصيدې او غزلې پيدا کېږي، دی د روښان پير پيرو دی، لکه چې خپله يې ويلي دي:

کريم داد حکمت موندلی — له روښان د دين سقراط

نو ځکه د ده په ديوان کې چې کوم عرفاني افکار بيان شوي دي، هغه د روښاني تصوف تر اغېز لاندې دي. کريمداد په خپل ديوان کې د عرفاني اندېښو د بيان تر څنګه، اخلاقي، عشقي او ځينې نور مضامين هم بيان کړي دي.

د کريم داد کمال دا دی چې د نورو روښانيانو په پرتله د ده په اشعارو کې د هنر تومنه زياته ده، کريمداد خپل اشعار د هنر په ګېڼه سمبال کړي دي. د استاد حبيبي وينا ده ، چې په روښاني شاعرانو کې کريمداد يوازينی سړی دی، چې د روښانيانو قصايد يې د وچو خبرو او نظمونوله درشل څخه راوايستل او دادب او هنر ميدان ته يې ور داخل کړل.

د ده دهنرمندۍ قدرت په لاندې بيتونو کې کتلای شئ:

د عاشق په نظر ګورئ — د محبوب د مخ جمال دی
تورې زلفې يې خورې کړې — پر سپين مخ يې اېښی خال دی

کهې سرو د چمن شي | بیا جنبش یې په خپل حال دی
که بلبل خوش الحان شي | که طوطي شیرین مقال دی

علي محمد مخلص د روښانیانو دیوې فرهنګي کورنۍ وروستی‌فرد دی، چې دا کورنۍ ټوله د روښان پیروان او د ده د اولادې مریدان وو. له دې سربېره د دې کورنۍ غړي شاعران او مؤلفین هم وو، لکه چې د علي محمد مخلص د پلار ابابکر او د ده د مشر ورور خواجه محمد په باب مولنډ مطالب دمخه ولوستل. دا دی اوس دعلي محمد مخلص پر فرهنګي کارونو لږ څه خبرې کوو.

علي محمد مخلص د ۱۰۲۹ هـ ق کال شاوخوا له خپلې کورنۍ سره هند ته تللی دی او د شمالي هندوستان په رشید آباد او د جنوبي هندوستان په برهانپور کې اوسېدلی دی او دخپل پلار او مشر ورور استوګنځي د اوریسي میدنې پورته یې هم تګ راتګ کړی دی.

ده روحاني فیض له میرزا خان روښاني څخه موندلی دی، د پښتو او پارسي ژبو لیکوال او شاعرو چې پښتو او پارسي اشعار او آثار یې موږ ته پاتې دي.

د ده په آثارو کې ډېر عمده اثر د بایزیدروښان حالنامه ده، چې ده بشپړه کړې اوله سره یې لیکلې ده او د بایزید د کورنۍ او د ده د پیروانو احوال او تر روښان وروسته واقعات یې هم پکې راوړي دي.

حالنامه په پارسي ژبه لیکل شوې ده، د روښانیانو د عرفاني، جنګي او ادبي کارنامو د څېړلو په برخه کې اساسي کتاب همدا حالنامه ده، د دغه کتاب له مطالې پرته د روښانیانو د نهضت د بېلابېلو اړخونو مطالعه ناقصه ښکاري.

د علي محمد مخلص یوه منثوره عرفاني پښتو رساله هم زموږ په واک کې ده، چې د ده د پښتو نثر لیکنې روش ترې ښکاري. دا رساله د روښان پیر د عرفاني عقایدو په رڼا کې د روح د حقیقت بیانونه لري. د دې رسالې پښتو نثر د سجعی تابع نه دی، بلکه روان نثر دی، چې په عام ډول د ارزاني روښاني نثر ته نږدېوالی لري. دا نثر هم ادبي ارزښت نه لري.

دعلي محمد مخلص د پښتو اشعارو دیوان تر اوسه نه دی چاپ شوی، یوه خطي نسخه یې په لندن کې شته.

استاد پوهاند میر حسین شاه چې د ده دیوان لیدلی دی، په خپله یوه لیکنه کې یې لیکلي دي، چې د مخلص دیوان د مولانا جلال الدین بلخي د مثنوي شرح او تفسیر ګڼل کېدای شي.

پروفیسور عبدالقدوس قاسمي هم لیکلي دي، چې د مخلص دیوان دخپلو عرفاني تمایلاتو له پلوه د عطار او رومي له کلام سره په تله کې سړی تللای شي.

دمخلص په کلام کې هم د عرفان مسایل تر یوې اندازې په هنري ژبه بیان

شوي دي او هغه د پروفیسور قاسمي خبره چې د مخلص په کلام کې فن هم شته. د مخلص په دیوان کې د نورو روښاني شاعرانو په پیروۍ الفنامه هم لیدل کېږي. د ده الفنامه د غزلو په چوکاټ کې ویل شوې ده. د ده په دیوان کې غزلي او رباعیات او مربع موندلای شو، د ده د یو ښکلي مربع یو بند دادی:

زه پـــه هـــر سحر بېدار یم — تل دایم د عشق په داریم
څرګند کړونــی داســرار یم — صبـر څه غــوارې لــه ما

د مخلص د زوکړې او مړینې یقیني نېټې نه دي معلومې، تر ۱۰۶۹ هـ ق کال پورې ژوندی ښکاري.

دولت لوانی د دادو زوی، د هغو روښانیانو په ډله کې ولاړ سړی دی، چې هند ته تللی دی او هورې یې ژوند کړی دی. دولت په رشیدآباد او د کن کې اوسېدلی دی. دی د دکن په هغه جنګ کې شامل و، چې میرزا خان روښاني پکې وژل شوی و. دولت هم په دې جنګ کې زخمي شوی و.

دولت لواڼي د روښاني لارې زده کړې له میرزا خان روښاني څخه کړې وې او د معرفت په انوارو بې زړه د میرزا په وسیله روښان شوی و.

دی دروښاني لارې د تبلیغ په لاره کې د خلیفه درجې ته رسېدلی و. دولت د دیوان خاوند شاعر دی. په پښتو ژبه یو پنډ دیوان څنې پاتې دی، چې پـه دوو دفترونو کې تنظیم شوی دی. دده په دیوان کې غزل، قصیده، رباعي، مثنوي، مربع او نور پیدا کېږي. الفنامه یې هم جوړه کړې ده او د روښاني عرفان د تشریح اوبیان تر څنګه، اخلاقي، دیني مسایل پندونه، معجزات مرثیې او نور مضامین هم د ده په دیوان کې پیدا کېږي. کله کله رندانه غزل هم وایـي. دده پـه شعر کـې هنري ارزښتونه دمیرزا او واصل په سطح دي، د یوې ښکلې غزلې څو بیته یې دا دي:

شیرین یار چې ما د زړه په سترګوتل کـوت
هر ساعت به مې دمینې د ده ګـل کـوت
د دیدن شراب یې راکړه هسې مست شوم
چې هر جز مې د معنی په قوت کل کـوت
څان، جهان راڅخه هېر شو په مستی کې
لور په لور به مې دلبر جلوه ګر خپل کـوت

دولت په دې غزله کې عرفاني مسایل په ښه هنري انداز کې بیـان کړي دي. د دولت دیوان په کابل کې پښتوټولنې چاپ کړی دی.

له زړو معیارونو سره سم د دولت د دیوان یو ابتکاري اړخ دادی، چې د ده په دیوان کې ځینې غزلې د خلیل بن احمد فراهیدی پروضع کړي عروضي سیستم

برابرې دي. د پښتو ادبياتو په معلوم تاريخ کې دولت لومړنی پښتون شاعر دی چې له دغه عروضي سيستم سره برابرې يې ځينې غزلې وېلې دي.

استاد عبدالشکور رشاد د دولت دغسې عروضي اشعار څېړلي دي او اوږدې څېړنې يې پر کړې دي. د دولت ژوند تر ۱۰۶۹ هـ ق کال پورې يقيني ښکاري.

ميرخان روښاني د دې ډلې بل ديوان لرونکی شاعر دی. ديوان يې تر اوسه نه دی چاپ شوی، د استاد رښتين په وينا د ده د ديوان نسخه په تاجکستان کې وه. خو د ميرخان يوه اوږده قصيده چې۱۰۷ بيته لري، د دولت لواڼي په يوه خطي نسخه کې شته، چې د هماغې نسخې له مخې د دولت په چاپي ديوان کې هم راغلې ده.

دا قصيده د (کنج عارفين) د اصطلاح شرح ده، او په دې بيتونو شروع شوې ده:

نن مې زړه له خفي کنج که څو وينا    مخفي کنج دی بې شريکه بې همتا

يو عجب ښايسته نـــورو بـــې مثاله    منـــزه له سبـــزو ســـرخه هـــم بيضـــا

د ده قصيده هنري ارزښت نه لري، يوازې ځينې عرفاني خبرې يې د نظم په تار پيلې دي، ميرخان روښاني د دولت معاصر ښکاري.

د بايزيد روښان د کورنۍ وروستی شاعر چې پښتو آثار يې تر موږه رسېدلي دي،هغه قادر داد دی، چې د روښان افکاروته يې په پښتو ادبياتو کې د دوولسمې پېړۍ په اوايلو کې انعکاس ورکړی دی.

قادر داد د محمد زمان زوی د پير داد لمسی د کمال الدين کړوسی او د بايزيد روښان کوسی و. د قادر داد مور دريا خاتون نومېده، چې د احداد لور وه. د احداد د زوی عبدالقادر تر مړينې وروسته چې څه روښانيان هند ته ولاړل په دې کاروان کې قادر داد هم ملګری و، چې له خپلې کورنۍ سره هند ته ولاړ دا وخت د قادر داد عمر له ۱٤ کالو زيات نه و، قادر داد په هندوستان کې لوی شو او شاعر شو او د روښاني لارې د تبليغ لپاره يې اشعار وويل. دقادر داد ژوند تر ۱۱۱۸ هـ ق کال پورې يقيني دی.

د ده پښتو بشپړ ديوان تراوسه نه دی کشف شوی، خو ځينې اشعار يې چې قصيدې او غزلې پکې شاملې دي، په (دخير ادب ) او ورکه خزانه کې چاپ شوي دي.

د استاد حبيبي.وينا ده، چې د قادر داد په قصيده کې شعريت د واصل تر قصيدې درونـد دی او غزلې يې د شعر ښکلا وې لـري، لکـه دا لانـدې غـزل چې څوبيته يې دا دي:

چـې مـدام پـه زړه کـې خيـال لـري وجنـګ تـه
څوك به څه وايي دې مـسـت وشوخ وشنـګ تـه
چـې پـرې آه د عـــاجزانــو اثـر نـــه کـــا
د نـرمـی خـوی بـه څـه ستـايې وسنـګ تـه

لکه زه چې د هجران په اور ګداز شوم
خدای دې هسې ساعت پېښ نه که پتنګ ته

د ده په لاس ته راغلو اشعارو کې عرفاني مطالب، کله کله رندانه خبرې او ځيني نور مسايل ليدل کېږي. د قادر داد يو معاصر شاعر ورکزی روښاني دی، چې د ده غزلې او قصيدې ښاغلي هميش خليل په ورکه خزانه کې چاپ کړې. دده په باب اضافي معلومات نشته، دومره ښکاري چې د روښاني لارې پيرو شاعر و. د پښتو ادب پوهانو، لکه استاد حبيبي د تحليل له مخې د اورکزي د قصيدې خوند نشته، خو په غزلو کې يې هنري ښکلا ځلېږي. د روښان د لارې د پيروۍ يادونه يې داسې کړې ده:

رامدد بايزيد مسکين کړه په تقوی کې مې متين کړه
د عقبی دمعاش فکر هم د ده په رهبري کړم

د يوې *رندانه غزلې څو بيته يې دادي:*

پر يو تم عالمه په زندان د تورو زلفو
طوق مې دګردن شوه دوه رېسمان د تورو زلفو
زره مې مثال ګوی کړ په ميدان دعاشقۍ کې
راښکو دلبرانو په چوګان د تورو زلفو

# د روښانيانو ادبي پېر ته يوه کتنه

د لسمې هجري پېړۍ په دوران کې بايزيد روښان په پخواني افغانستان کې د خاصو سياسي، اجتماعي او فرهنګي شرايطو او تمايلاتو تراغېز لاندې يو عرفاني حرکت پيل کړ، د پيرۍ او مريدۍ سلسله يې جاري کړه او د خپل عرفاني حرکت اساسات او خپلو خلکو ته د ده په عقيده د سمې لارې د ښوولو مبادي يې په خپلو پښتو، پارسي،عربي او هندي آثاروکې تنظيم کړل او د خپلې لارې د تيوريکو بنسټونو د تقويې لپاره يې د قلم له ليارې هاندو هڅه پيل کړه او چې کله جنګ پر وتپل شو نو يې تورې ته هم لاس واچاوه او عرفاني حرکت يې رزمي حيثيت هم غوره کړ.

د قلم له ليارې جد و جهد هم يوازې په روښان پورې محدود پاتې نه شو او د مريدانو په ډله کې يې په لسګونو شاعران او ليکوال پيدا شول، چې په پښتو او پارسي يې منظوم او منثور آثارو ليکل او د خپل پير د نظرياتو د تفسير او تشريح او

تبلیغ په لاره کې یې د قدر وړ کارونه وکړل.

د روښانیانو جنګي کارنامې د خپل نوعیت اود خپل ځانګړي سیاسي، اجتماعي موقعیت له امله د افغانانو د مبارزو په تاریخ کې خپل ځای لري، چې هېڅ حق بین مورخ به دا جنګي هلې ځلې هېرې نه کړي. دغه رنګه د روښانیانو فرهنګي کارونه هم زموږ په فرهنګي تاریخ کې ځانته خپل خاص مقام لري چې په خاص ډول د پښتو ادبیاتو په تاریخ کې د دوی کارنامې د یوه ځانګړي پړاو د لومړني ادبي جریان په توګه د پښتو ادبي تاریخ په دوهمه دوره کې خپل ځای لري.

په دغه پېر کې ایجاد شوي فرهنګي آثار دغه لاندې خصوصیات لري:

(۱) په دې پړاو کې په پښتو کې د مسجع لیکنې زمینه برابره شوه، بایزید په خیرالبیان کې ځینې مسجع ټوټې ولیکلې، چې دغه روش بیا په پښتونخوا کې ان تر هرانه پورې ځینو نورو هم پسې تعقیب کړ.

(۲) دغه مهال د نظم یوه غټه ذخیره په پښتو کې پیدا شوه، چې زیاتره د غټو دیوانونو او ځانګړو رسالو په بڼه تر موږه رسېدلي دي او د پښتو منظم آثار په همدې پېر پورې اړه لري، د پښتو د ادبي تاریخ په لومړۍ دورې کې دغسې منظم آثار تر موږه نه دي رسېدلي. له بایزید نه نیولې دده د کورنۍ اومریدانو فرهنګیانو په دې برخه کې ډېر کار وکړ او پنډ پنډ آثار یې نظم کړل.

(۳) که څه هم په دې ادبي پېر کې دمسجع یا قافیه وال نثربېلګې ایجاد شوې، خو د دې ترڅنګه همدا مهال له سجعي نه آزاد او دهغه وخت له شرایطو سره برابر روان نثر لیکل هم پیل شول ارزاني روښاني اوعلي محمد مخلص چې کوم پښتو نثرونه لیکلي دي، هغه مسجع نه دي او د روانې نثر لیکنې خوا ته د بازګشت پړاو همدا د ارزانې له نثره پیل کېږي. دغو روښاني لیکوالو پښتو نثر لیکل بېرته د سلیمان ماکو د نثر لیکلوله روشونو سره وصل کړل.

(٤) ځینو روښانیانو نه یوازې په پښتو لیکنې وکړې او اشعار یې وویل، بلکه په پارسي ژبه یې هم قلم وچلاوه او خپله طبع یې وازمایله، خپله روښان، ارزاني، میرزا، شیخ مودود ترین، علي محمد مخلص او خواجه محمد په دغه ډله کې شامل کسان دي، په دغو روښانیانوکې ځینو کسانو،لکه روښان او څنګه چې ویل کېږي ارزاني په عربي او هندي ژبو هم آثار ولیکل.له نورو فرهنګونو سره د پښتو ارتباطات تر پخوا زیات مخ په بره روان شول.د پښتو د ادبي تاریخ په لومړۍ دوره کې موږ ته د هغې دورې د لیکوالو او شاعرانو پارسي یا دنورو ژبو آثار نه دي معلوم.

(٥) عرفان د یوه مسلک په توګه په همدې روښاني پېر کې پښتو آثارو او پښتو ادب ته لاره پیدا کړه د اسلامي عرفان ژور مفاهیم او اصطلاحات په پښتو نظم او نثر کې وارد شول او پښتو ادب داسلامي فرهنګ له یوه فکري اړخ سره اساسي نښتون

پیدا کړ.

دپښتو د ادبي تاریخ دلوړې دورې کوم پښتو د عرفاني مزایاوواو ارزښتونو لرونکي آثار چې تر موږه رسیدلي دي،په هغو کې د عرفاني افکارو پلوشې خلېږي، منظم خپل عرفاني فکر روښان او روښانیانو پښتو ادب ته ډالۍ کړی دی. د عرفاني مسلك ارزښتونو ته په پاملرنه روښانیانو الفنامه لیکل په پښتوادب کې پیل کړي دي، د پښتو لومړنۍ الفنامې د روښانیانو دي.

(٦) دروښاني حرکت او روښانیانو ارتباطات د هند له زمکو سره هم مستقیم او منظم وو. د روښانیانو د ایجادیاتو یوه غټه برخه په هند پورې اړه لري او هورې ایجاد شوي دي، نو ځکه د هندي فرهنګ اثرات پرې ښکاره دي او دغه مهال دی، چې د هندي ژبو لغاتو او د هندي فرهنګ ځینو نومونو تر پخوا زیات پښتو ادبیاتو او پښتو آثارو ته لاره پیدا کړه.

(٧) د روښانیانو فکري او هنري اثرات په پښتونخوا کې پر نورو غیر روښاني لیکوالو او شاعرانو هم لویدلي دي چې په آینده بحث کې به خبرې باندې وکړو.

(٨) په روښاني آثارو کې له عرفاني افکارو سربېره ځینې نور مسایل هم بیان شویدي، چې نمونې یې په تېره دوره کې هم شته، دشعري انواعو له پلوه یوازې مخمس او مربع داسې شعري ډولونه دي، چې په تېره دوره کې دغه شعري انواع نه لرو. هنري ارزښتونه په روښاني ادبي آثارو کې سیستماتیك انکشاف کوي، یعنې په لومړنیو روښاني آثارو کې دغه ارزښتونه لږ دي په وروستیو کې.ورو ورو زیاتېږي.

((۲))

# پښتو ادب ته د اخوند درویزه ننګرهاري، د هغه د کورنۍ او د ده د سبك د پیروانو بخښنې

هغه وخت چې دروښانیانو روحاني پیشوا او لارښود بایزید روښان د خپلې وضع کړې روښاني عرفاني لارې د تبلیغ اوتلقین په چارو کې مخ په بره روان و او ډېر پښتانه یې د روه په ځینو برخو کې د پیروانو په قطار کې دربېدل، نو همدغه مهال دروه په سیمو کې ځینو اوسېدلو علماوو او مشایخو د ده له رااېستلې عرفاني لارې سره مخالفتونه هم ځرګند کړل او ده د تبلیغ په لاره کې یې خنډونه ایجاد کړل.

هرچا له بایزید او نورو روښانیانو سره ددغو مخالفتونو عوامل د روښان له حرکت څخه د خپل برداشت سره متناسب ښوولي دي. یعنی که چا د روښان حرکت محض یو دیني او عرفاني حرکت بللی دی،د مخالفت عوامل یې هم دغسې دیني او شرعي بللي دي، خوکه چا د بایزید حرکت ملي یا بزګري بللی دي، نو یې عوامل هم له همدې نظر یې سره انډول ورته پیدا کړي دي.

موږ دلته د ټولو مخالفانود مخالفت دلیلونه او ددغو مخالفانو نومونه نه راوړو او د مخالفت ډولونه یې نه ښیو، یوازې پر هغو مخالفانو یا مخالف خبرې کوو، چې په پښتو یې څه لیکلي دي او په دې ادبي تاریخ کې یې موږ د نامه او فرهنګي کارنامو له ذکره چاره نه لرو.

د بایزید د لارې له مخالفانو څخه یو سړی اخوند درویزه ننګرهاری(رح) دی چې ده، دده کورنۍ او د سبك پیروانو پښتو ادب ته ډېر څه ورکړیدي. نو ځکه موږ اړ یو، چې د ده پر احوالو، پیروانو، کورنۍ او آثارو دلته څه ووایو.

اخونددرویزه(رح) د ګدای زوی، د سعدي لمسی ، د درغان کړوسی، د احمد کوسی د متي کودی او د جیوڼ پردی دی. جیوڼ په لغمان کې اوسېده، او درغان له لغمان نه د ننګرهار پایین ته راغی او د ده زوی سعدی د سوات او بونیر سیمو ته ولاړ. د اخوند درویزه پلار ګدای د بونیر په سیمو کې استوګنه درلوده او په همدغه

خای کې د ۹٤۰ هـ ق شاوخوا اخوند درویزه دنیا ته سترګې پرانیستې.

اخوند درویزه(رح) له ملا منزر، ملا مصر احمد او ملازنګی څخه زده کړې وکړې او د خپلې علمي سویې د لوړولو لپاره هندوستان ته لاړ او هلته یې درس ووایه چې له هندوستانه بېرته راوګرځېد. نود پیر . با سید علي ترمذي (۹۰۸. ۹۹۱هـ ق) مرید شو او د ده له خوا د خلافت اجازه ورکړل شوه او دده خلیفه و.

اخوند درویزه (رح) د بایزید روښان او روښانیانو له سرسختو مخالفانو څخه و. دده او د روښانیانو د مخالفت په خصوص کې هم هرچا هرڅه ویلي دي. ددغو وېناوو یوه انتقادي کتنه کاندید اکادمیسن محمد صدیق روهي په خپل (ادبي څېړنې) نومي اثر کې کړې ده او په نتیجه کې یې دا خبره څرګنده کړېده، چې له روښانیانو سره د اخوند درویزه د مخالفت علتونه زیاتره پر دیني اساساتو متکي دي.

اخوند درویزه (رح) خپل مشهور کتاب مخزن الاسلام له روښانیانو سره د مخالفت تر اغېز لاندې د هغوی په مقابله کې لیکلی دی.

اخوند درویزه یو متشرع عالم و، خو د دې ترڅنګه یې له سلوك او معرفته هم برخه درلوده، ده په پښتو او پارسي ژبو ځینې آثار لیکلي دي او ځینې یې له عربي او پارسي څخه پښتو ته اړولي دي.

دده په آثارو کې ارشادالطالبین اوارشاد المریدین نومي کتابونه په پارسي ژبه لیکل شوي دي، تذکرة الابرار والاشرار یې هم په پارسي ژبه لیکلی دی، له دغه کتابه د پښتو د فرهنګ د ځینو اړخونو په څېړنه کې استفاده کېدای شي.

د ده په اثارو کې مشهور اثر د ده مخزن الاسلام دی، چې د ده د بېلابېلو لیکلو او ترجمه کړو رسالو مجموعه ده، په مخزن کې د اخوند درویزه دغه لاندې آثار اوترجمې لیدلای شو:

(۱) د قصیدهٔ امالي پښتو ترجمه: اخوند درویزه دغه قصیده په پښتو نظم اړولې ده، چې د سربیتونه یې دادي:

په نامه د حق آغاز کړم اوس له دې علم کلامه
دی رحمان، رحیم، خښتن دی په ده چار مې شي تمامه

داقصیده اخوند درویزه په ځانګړي ډول په پارسي هم شرح کړې ده، چې پارسي شرح یې جلا چاپ شوې ده.

(۲) د قصیدهٔ برده پښتو ترجمه: اخوند درویزه دا قصیده هم پښتو ته اړولې ده، چې پیل یې په دې بیت شوی دی:

په نامه د حق به وایم، چې د حق له بزکته
په قیامت مې بخره وشي د رسول له شفاعته

(۳) در بیان عقاید نسفیه: دا رساله هم اخوند درویزه په پښتو ترجمه کړې ده.

(٤) خلاصه کيداني:دا د لمانځه په باب د حنفي فقهي يوه کوچنۍ رساله ده، چې اخوند درويزه په پښتو اړولې ده، د دې رسالې پيل دا دی:

بسم نام د الله خــدای دی     کار ساز د کل عالم د بنده گانو
دی رحمان مهربان خدای دی     رزق ، روزی ورســــــوينــــــه

(٥) د لسو فرقو د عقايدو بيان: دا رساله اخوند درويزه له پارسي څخه په پښتو ژباړلې ده. د تجويد رساله د درويزه الفنامه او نور د دې کتاب نور رسايل دي. له دې سربېره ځينې نور مطالب هم اخوند درويزه په دې کتاب کې بيان کړي دي. د دغو بيانونو په ترڅ کې اخوند درويزه د ناصر خسرو بلخي بيتونه او د حمزه اذري يوه معما هم په پښتو اړولې دي.

د اخوند درويزه د مخزن مطالب د ده زوی کريمداد سره راټول کړي دي، او په ١٠٢٤ هـ ق کال کې يې له ټولولو فارغ شوی دی. کريمداد خپله الفنامه او د خپل تره ملا اصغر يو پارکی هم له مخزن سره مله کړي دي.

مخزن الاسلام دويم ځل د درويزه کړوسي مصطفی محمد راټول کړی د ترتيب کال يې ١١١٢هـ ق دی په دې ترتيب کې د درويزه له مطالبو سربېره د کريم داد، مصطفی محمد، ملا اصغر، محمد حليم او عبدالسلام ملحقات هم ورسره مله شوي دي.

مخزن الاسلام له ١٢٨٤ هـ ق کال نه وروسته څو ځله چاپ شوی او تحقيقي متن يې هم د پېښور پښتو اکاډيمی چاپ کړی دی. د اخوند درويزه د مخزن الاسلام په باب له پخوا نه دا خبره باب ده چې دا کتاب په مسجع نثر ليکل شوی دی، مګر د هېواد نامتو عروض پوه استاد رشاد ددې کتاب بېلابېلې رسالې تقطيع کړې دي او دا ثابته شوې ده، چې د مخزن اکثرې برخې نظم دی، که ځينې ټوټې يې مسجع نثر وي، نو دا بيا د بايزيد دخيرالبيان ځينو مسجع ټوټو ته ورته دي، چې د دغسې ليکنو اساس په پښتو کې بايزيد روښان اېښی دی. درويزه خپله الفنامه هم د روښانيانو په تقليد ويلې ده او د مخزن د حروف تهجي بيان هم د روښان د رسم الخط د رسالې ځواب دی.

د درويزه ځينې رسايل لکه د خلاصې، قصيدۀ امالي، قصيدۀ بردي او تجويد ترجمې او يا ليکنې په پښتو کې اوليت لري، ځکه د معلومو او تراوسه کشف شوو اسنادو له مخې دغه رسايل او قصايد تر درويزه(رح) دمخه چا په پښتو ليکلي او يا ترجمه کړي نه دي.

د درويزه په آثارو کې د شريعت عنصر ډېر برجسته دی. د ده په آثارو او ترجمو کې هنري ارزښتونه په نشت شمار دي مګر موږ اړ يو چې د ځينو ادبي اثارو ترجمو ته يې په ادبي څېړنو کې ځای ورکړو.

اخوند درویزه(رح) تر یوه عمر زده کړې، تدریس، تعلیم، تلقین، تالیف او ترجمې وروسته په ۱۰۲۸ هـ ق کال وفات شو او د پېښور د هزارخانی په هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

## د اخوند درویزه د کورنی لیکوال، ناظمان او شاعران:

تر اخوند درویزه وروسته پښتو ادب د ده په کورنی، مریدانو او پیروانو کې وپالل شو او دده مخزن په پښتو کې دومره عام شو، چې ډېر نور تالیفات د مخزن په شیوه په پښتو کې بشپړ شول. هغه کسان چې د اخوند درویزه د فکر او د لیکلو د سبك تابع دي دا دي: ملا اصغر د کدای زوی د اخونددرویزه ورور د دې کورنی بل فرد دی، چې پښتو منظومات ځینې راپاتې دي، د ده لاسته راغلي منظومات وعظیه موضوعات چاپیروي، د ده یوه منظومه داسې پیل شوې:

واورئ یارانو نبي ناست په جماعت و
جبرائیل و پرې راغلی له ښه خدایه پرې رحمت و

د ملا اصغر د ژوند زمانه د لسمې هجري او یوولسمې هجري پېړی په حدودو کې اټکل کېدای شي.

د اخوند درویزه د کورنی یو بل عالم فرد دده زوی اخوند کریمداد دی، چې په پښتو او پارسي ژبو آثار ترې پاتې دي.

په پارسي اثارو کې يې مور د مکتوبات، مسایل حقوق نسوان او نور متفرق آثار یادولای شو. په پښتو اثاروکې يې شرح جام جهان نما او الف نامه د یادونې وړ آثار دي، د مخزن د ځینو خطي نسخوپه ملحقاتو کې داخوند کریمداد متفرق اشعار هم راغلي دي. یو مخمس يې هم لیدل شوی دی.

د ده په پښتو منظومو آثارو کې ډېر شهرت دده الف نامه لري، چې د غزلو په چوکاټ کې بشپړه شوې ده، دا الف نامه هنري ارزښتونه هم لري او فکري خوايي هم درنه ده او په پښتو کې د عرفاني افکارو په څېرنه او په پښتو ادبياتو کې د وجودي او شهودي عرفاني نظرياتو د لټون په لړ کې د کریمداد الف نامه نه شي هیرېدای.

ده په خپله الف نامه کې د عرفان هغه اصطلاحات استعمال کړي دي، چې تر ده دمخه روښاني شاعرانو خپل کړي دي او ده هم په خپلو منظوماتو او شعرونوکې په کافي اندازه منعکس کړي دي.

دکریمداد شعرونه خپل خاص عرفاني شور لري. دده دا لاندې بیتونه زمور د

ادعا بنه تایید کولای شي:

ت: توحیددی ته یې ګوره چې جلوه کا لور دلوره
لــه چا راز کا په کعبه کې له چا راز کاندي له اوره



هــر طــالب چــې د شهادخــال هــوس کــا
کمینــي دې کــا اختیــاره ځــان دې خــس کــا
بېهــــوده نظـــــر دې پــــــربږدي
همیشــه دې پاسبانــي د خپــل نفــس کــا

کریمداد سربېره پردې چې خپله لیکوال او شاعر و، ده د خپل پلار آثار ګرده راټول کړي، دا نومیالی فرهنګي ویناوال په ۱۰۷۲ هـ ق کال د سوات په کوهستان کې په یوه جنګ کې شهید شو او د سوات په توابعو کې خاورو ته وسپارل شو. د ده الفنامه د افغانستان، پښتونخوا او د هند د نیمې وچې د پښتنو په فرهنګي حلقو کې خورا مشهوره وه او ډېرې شرحې پرې لیکل شوې دي، چې مشهوري یکې د حاجي بهادر کوهاټي مفتاح الدقایق او د عبدالله قصوري خیشکي شرح کلمات وافیات دي په عربي او فارسي ژبو د ده پرالفنامه نورې شرحې هم لیکل شوې دي، د کریمداد عرفاني لاره د ده د کورنۍ نورو غړو، لکه محمد حلیم او مصطفی محمد هم په خپلو اشعارو کې تعقیب کړې ده.

محمد حلیم د عبدالله زوی او د اخوند درویزه(رح) لمسی و، د ده د عرفاني اشعار و نمونې د هغه په هغه الفنامه کې لیدل کېږي، چې ځینې برخې یې د مخزن په ملحقاتو کې خوندي دي، د ده په عرفاني اشعارو کې هنري ارزښتونه دکریمداد تر اشعارو هم پرمختللي دي. د ده دا لاندې څو بیتونه د کتودي:

شهی ډېر غشــي روغ کــړي عاشقان یې دي نومړي
دوی ویشتلي په غونډ زره دي په میــدان ورته ورغړي

د محمد حلیم په لاس ته راغلي کلام کې ځینې منظومې ترجمې هم شته. ده د سعدي شیرازي (رح) یوه غزله هم په پښتو نظم ترجمه کړې ده. د عبدالحلیم د ژوند زمانه د یوولسمې هجري پېړۍ په دوران کې اټکل کېږي.

مصطفی محمــد د نــور محمــد زوی د کریمــداد لمســی اود اخونــد درویــزه ننګرهاری کړوسی دی، چې د خپل ورنیکه اخوند درویزه مخزن الاسلام یې په ۱۱۱۲ هـ ق کال کې بیا راغونډ کړی دی. داسې ښکاري چې مصطفی محمد بـه د دوولسمې پېړۍ په اوایلو کې ژوندی و، دی خپله هم د پښتو ژبې شاعر اومتصوف سړی و. د عرفاني نظریو په خپلولو کې یې د خپل نیکه (کریمداد) لار نیولې ده، د

الف نامې یوه نمونه دی هم لري، د الفبا ځینې توري یې په خپلو ځینو پارکو کې تشریح کړي دي، په شعر کې یې هنري قوت تر کریمداد زیات نه دی او د محمد حلیم د شعر شاعرانه ښېګنې زما په نظر پر دواړو زیاتې ایسي.

دده څو بیتونه دا دي:

ل، لطیف لکه سور ګل شه　　　د معنی پـه میـوه پور شه
د طاعت په پاڼو کور شـه　　　پـه بلا کې یې صبـور شه
په نعمـت کې یې شکـور شـه
ته له نفسه، له شیطانه سره جنګ کړه

دده په متفرقو منظوماتو کې د آیة الکرسی منظومه پښتو ترجمه هم لیدل کېږي.

عبدالسلام د پاینده محمد زوی او د اخوند درويزه لمسی، د دې کورنۍ یو بل دانشمند فرددی چې په پښتو ځینې اشعار ځنې پاته دي، د ده د ژوند زمانه هم د یوولسمې هجري پېړۍ اواخر اټکلو لای شو د عبدالسلام ځینې نظمونه د مخزن په ځینو خطي نسخو کې شته، دا نظمونه شعریت نه لري او ځینې پر دیني اساساتو بنا بیانونه دي، لکه دا بیتونه:

یو ویي به درته وایم
دصدیق له بزرګیي د رسول له جماعته
چې صدیق و سرحلقه داولیاوو
دغه لوبخرې موندلې له رحمته
دویم عمر فاروق دی
چې مکه یې کړه وزګاره له کافرو له بتانو په یکلخته

د اخوند درويزه په کورنۍ کې بل شاعر رحیمداد نومېږي، چې د اشعارو هنري خوا یې ډېره درنه ده او څو مدحیه اشعار یې د مخزن الاسلام په ملحقاتو کې د رحیمداد او عبدالرحیم په نومونو راغلي دي:

د اروانباد عبدالحلیم اثر د تحقیق مطابق رحیمداد د مصطفی‌محمد زوی، د نور محمد لمسی، د کریمداد کړوسی او د اخوند درويزه ننګرهاری کوسی دی. دی په ۱۱٤٦ هـ ق کال وفات شوی او د سوات په سلام پور کې خاورو ته سپارل شوی دی.

د ده ځینې مدحیه اشعار، چې د اسلام دستر پیغمبر حضرت محمد (ص) په ستاینه کې ویل شوی دی، خو راخواږه او شورانګیزی یې زیاته ده، لکه د ده د یوې مدحیې دا بیتونه:

تـر شیـرین اسـم دې جـار شـم محمـده
سرفـراز دې پـه دیـدار شـم محمـده

سعـــادت د دوارو کونـــــو زمــــا ذادی
کــــه دې خـــاورې د دربـــار شــم محمـــده
ستـــا ثنـــا بـــه د لويـــي ويلای‌نـــه شـــم
کـــه بلبلـــه د سهـــار شـــم محمـــده
ستا له جامه جرعـه راکړه چې يې نـوش کړم
ســـر تـــر پايـــه بـــه خمـــار شـــم محمـــده

له دغـو لـوړو يـادو شـوو افـرادو او اشخاصـو پرتـه د اخونـد درويـزه (رح) پـه کورنۍ کې د ده د يوه زوی عبدالخالق نوم هم په پښتو ناظمانو کې ياد شوی دی. استاد رښتين د پښتو د ادب په تاريخ کې ويلي دي، چې عبدالخالق د (شرايط و احکام ايمان) په نامه يو کتاب په پښتو نظم کړی‌دی.

## د اخوند درويزه د سبك پيروان:

ديوولسمې او دوولسمې هجري پېړيوپه دوران کې موږ ځينې ليکل شوي پښتو آثار ګورو، چې ځينې د ليکنې د سبك له پلوه او ځينې هم د فکري ارزښتونو له پلوه د اخوند درويزه او د ده د زوی اخوند کريمداد د آثارو د سبك په پيروي ليکل شوي دي.
دغه آثار يا په نيم منظوم سبك، يا د ماتو ګوډو نظمونو په قالب کې ليکل شوي او نظم شوي دي، خو کوم آثار او ليکوال چې موږ دلته ياد وو، د دوی په آثارو کې ځينې په تول برابر نظمونه هم شته، خو څنګه چې د دغو ناظمانو او ليکوالـو د آثـارو فکري، موضوعي او شکلي خـواوې د اخونـد درويزه او يـا د ده د زوی د آثـارو پـه پيروی دي، نو څکه موږ اړ يو چې دغسې کسان هم په دغه ځای کې مطالعه کړو.
هغه ليکوال او شاعران چې د اخونـد درويزه او د ده د زوی اخونـد کريمـداد پـه پيروي يې مسجع ټوټې او يا ځينې نظمونه او يا هم پـه دغـو کالبونـو کـې منظم آثـار، لکه: رسايل او کتابونه ليکلي دي، زښت زيات دي او د مخزن په محلقاتو کې د ډېرو شاعرانو او ناظمانو شعرونه او نظمونه راغلي دي، چې کېدای شي موږ ټول په دغه ځای کې ياد او مطالعه کړو، خو هغه کسان چې د دې کتاب په نـورو څپرکـو کـې د مطالعې ځای لري، پر هغو په دې ځای کې خبرې نه کوو.
د اخونـد درويزه او کريمـداد لـه پيروانـو ناظمانـو څخـه ميرخـان او عمرخـان شلماني دوه داسې کسان دي، چې د مخزن په ډېرو نسخو کې يې اشعار راغلي دي.
ملا عمر شلماني او ميرخان دواړه د يوولسمې پېړۍ ويناوال يـادېږي، چـې د

پښتونخوا په سیمو کې یې ژوند کړی دی او د اخون درویزه او د ده د زوی اخوند کریمداد له فکر اونظر سره اشنا کسان وو او د دوی په متابعت یې ددوی په سبک نظمونه جوړول. اخوند درویزه(رح) په خپله تذکره (تذکرة الابرار والاشرار) کې ویلي دي چې عمرخان شلماني د ده شاګرد و. عمرخان هم په خپلو اثارو کې د خپل استاد درویزه ننګرهاری(رح) آثار تفسیر اوتشریح کړي دي، لکه چې ده ویلي دي.

دا بیـــان اخـــون ویلـی په پښتـــو و | و معني یې په هر چا ویلی نه شوه
بیچاره عمر خـــان چـــې ورخبـــر شـــه | تـــار پـــه تـــار معنـــي یـــې ووې
دي فاسق پراګنده په مخلوقات کې | پـــرده فهم لـــه څښتنه عنایت دی

میرخان بیا د اخوند کریم داد تر مرګه پورې ژوندی ښکاري، ده په خپل یوه پارکي کې د اخوند کریمداد (۱۰۷۲ هـ ق شهید) مرثیه ویلې ده، چې څو بیتونه یې دا دي:

ستـــا پـــه زړه کـــې یـــو مقصود و | خکـــه تـــه د کـــوهستـــان و سرتـــه ولاړې
غه مقصود دې خدای حاصل کړ | څکـــه رنګ د شهیـــدی پـــه وینـــو ولاړې
کـــریمـــداد ډېـــوه د دیـــن وه | د مرګوتي په باد مړه شوه ځای یې خاورې
د اخـــونـــد زوی کریمـــداد دی | چـــې خبـــرې یـــې د هنـــد تر ملکه ولاړې

د اخوند درویزه د سبک په پیروانو کې د ډېرو مؤلفاتو خاوند سړی اخوند احمد دی، چې د یوولسمې هجري پېړۍ په حدودو کې ژوندی و. ده د اخوند درویزه د نظمونو په سبک ځینې حکایات او دیني رسایل په پښتو ژبه یا لیکلي یا ترجمه کړي دي. په دغو رسایلو کې د حضرت یوسف قصه، د ابراهیم خلیل الله قصه، د حضرت محمد(ص) شمایلنامه او د آنحضرت (ص) وفاتنامه اونور دیادونې وړ دي.

له دې سربېره احمد ځینې جذابې او تر دیني احساس لاندې ښکلې غزلې هم ویلي دي، چې د یوې دغه ډول غزلې څو بیته یې دا دي:

جنـــت یـــې جـــوړ کـــړ پـــه زېـــر ګلونـــه
چـــې پکـــې ناستـــي د جنـــت جونـــه
کنګـــرې یـــې روغـــي کړې د ســـرو زرو
شهـــد و شکـــر دي پکـــې رودونـــه

د دې اوږدې غزلې په پای کې وایي:

احمده ژاړه دیدارېي غواړه | دیدار بهتر دی تر جنتونه

اخوند احمد خپله نظم کړې نبوي شمایلنامه د اخوند درویزه (رح) د شمایل نامې پر بنسټ نظم کړې ده، لکه چې ویلي یې دي:

شمایل مې له مخزنه له دوه بیتو په پنځو کړ
په دالار مې د اخوند صاحب په مرسته تک وپو کړ
ما دا خواست له درویزه په درویزو کړ
ساده نثر مې په نظم د پښتو کړ
د نبي صاحب په مدح دا یوځه سحر حلال و

د اخوند درویزه (رح) ویلي شمایلنامه د ځینو شمایلنامو ماخذ هم دی، لکه د سکندر خټك ویلي شمایل نامه چې په راتلونکو بحثونو کې به خبرې باندې وکړو.

بابو جان لغماني د پښتو په پخوانیو شاعرانو کې د اشعارو د دیوان، قصیدهٔ سریاني، الف نامي او نورو ډېرو قصصو ناظم دی، چې د بابو جان دغه کرده آثار د ده کلیات جوړوي، او دا کلیات په دوو دفترونو کې ترتیب شوی دی.

د بابو جان په کلیات کې عرفاني، اخلاقي، تربیوي، قصصي مطالب اود دیني مسایلو بیانونه راغلي دي.

د استاد رشاد د وینا مطابق بابو جان د سید علي ترمذي، اخوند درویزه او اخوند کریمداد د عرفان او سلوك سلسلي ته ټینګ ارادت درلود. داخوند کریمداد پر مړینه خواشینی د دې رابطې یو دلیل دی، ده د اخوند کریمداد پر مړینه ویلي دي:

چې اخوند جدایي بیل که بابو جانه — پسې ورانه شوه زما د زړکي خونه
په ډېر غم دې د اخوند زه هسې سیر کړم — د جمله هوس له ذوقه مړوه مې
دغه حال بیان په خوله راوایه نه شي — چې مې یاد شي د اخون خواږه ورمونه

د اخوند درویزه او د ده د زوی اخوند کریمداد په سبکي پلویانو کې دیاد شوي اخوند احمد او بابوجان پر ځینو حکایاتو په ادبي بحثونو کې خبرې کېدای شي، او ځینې غزلیات یې هم لږ و ډېر هنري ارزښتونه لري. د بابوجان د یوې غزلې څو بیته دادي:

سینه ستا کړه د دنیا مینې لتاړه — د زړه مینه دې تمامه پسې لاړه
د دنیا له مینې هسې مبدل شوې — څه دروغ الابلا دې کړه په [illegible]

د دې سبك په تقلید په لیکلو شوو آثارو کې مور د میر حسین [illegible] نافع المسلمین هم نه شو هیرولای د میر حسین هروی نافع المسلمین چې د [illegible] مضامینو او رسالو مجموعه ده. په دې کتاب کې د خلاصة الاسلام پښتو ترجمه، نور نامه نور کې دیني، شرعي او فقهي مسایل په پښتو ژبه بیان شوي دي. دا مضامین او رسایل د مخزن په سبك نظمونو کې تکمیل شوي دي. دا سرې دوې منظومې الف نامې هم لري، چې یوه یې د غزلو، غزل ډوله نظمونو او قطعاتو په چوکاټ کې نظم شوې ده، اوبله یې د خلوریزو په چوکاټ کې ده، له دې الفنامې یوه خلوریزه دا ده:

الف: ابتدا دې په نامه کوم الله — بنــده پور دی له گناه
که ستـــا رحــم پر مــا وشي — زه به نه درومم بی راه

میر حسین هروی په ۱۰۷۰ هـ ق کال خپل نافع المسلمین تکمیل کړی دی او میرحسین هروی هم په همدې اساس د یوولسمې هجري پیړی له لیکوالو او ناظمانو څخه ګڼو.

شیخ محمد سعید هم د یوولسمې پیړی داسې لیکوال دی، چې د اخوند درویزه د مخزن په سبک یې خپله شفاعت نامه بشپړه کړې ده، دا شفاعت نامه له پارسي څخه پښتو ترجمه شوې ده.

آدم، علي خان سرغلانی او د ملتان اوسېدونکی عبدالغني کاسي هم داسې لیکوال او ناظمان دي، چې په خپلو لیکنو کې د شکل او مضمون له پلوه د مخزن د موضوعاتو او سبک تابع دي.

د اخوند موسی بتي کوټي لاس ته راغلې پښتو رساله، هم د اخوند درویزه د مخزن پر سبک په نیم منظوم ډول ترتیب شوې‌ده.

اخوند قاسم پاپین خېل شینواري، چې خپل مشهور اثر فواید الشریعت یې په ۱۱۲۵هـ ق کال کې بشپړ کړی دی. د اخونددرویزه کورنۍ ته معتقد ښکاري، ده ویلي دي:

اخونان شهیـــدان دواړه — خدای پیدا کړل چراغونه
پر افغانانو ملك صفا شـــه — دین روښان شه پر ملکونه
دکمراهو مونډیي وکیښ — نیست نابود شوه بدعتونه

فوایدالشریعت دواتیا بابو نه لري، بېلابېل، دیني، فقهي، شرعي مسایل او د حضرت محمد(ص) شمایل او نور پکې ځېړل شوي دي. د یادونې وړ خبره دا ده، چې د نور محمد غلجي نافع المسلمین هم د مخزن په سبک د نظم په قالب کې تالیف شوی دی خو دا چې نوموړي ښنې مخمسونه هم لري، نو دهغه پر کارونو به په آینده بحثونو کې په خپل ځای کې بحث وشي.

د وروستیو ناظمانو، لکه: میرحسین هروي، اخوند قاسم، د ملا شیر خان د زوی عبدالغني کاسي ملتاني، آدم، علیخان سرغلانی او ځینو نورو آثار ادبي او هنري ارزښتونه نه لري، او د ادبیاتو په تاریخ کې پرې بحث هم د سوال لاندې واقع کېږي. خو دا چې موږ په پښتو کې د اخوند درویزه (رح) د سبک تداوم سوباى وی، نو ځکه مو دغه آثار او نظمونه ډېر لنډ یاد کړل.

# د دغه فرهنګي جريان څو عمده ځانګړني:

موږ په تېر بحث کې ولوستل، چې اخوند درويزه(رح) له روښانيانو سره د مخالفت په اساس او د دوی په مقابله کې مخزن الاسلام وليکه، مګر دغه کتاب په پښتنو کې دومره شهرت پيدا کړ، چې تر اوسه لا په ديني حلقو کې لوستونکي لري.

د مخزن د سبك په پيروی او د اخوند درويزه او د ده د زوی د افکارو تر اغېز لاندې ډېر آثار وليکل شول، د لسمې، يوولسمې او حتی دوولسمې پېړۍ ځينې آثار د همدغه سبك تر تاثيرلاندې ليکل شوي دي، دغه ليکلي آثار دغه لاندې ځانګړنې لرلای شي:

(۱) په دغو آثارو کې په شکلي لحاظ نظمونه او د مسجع نثر زياتې نمونې ليدل کېږي، چې د مسجع نثر اساس خو تر دوی د مخه د بايزيد روښان د خيرالبيان په څېنو برخو کې موږ ته ښکاره دی. دې جريان ته د منسوبو آثارو منظوم آثار هم د پښتو شعر په ژانري انکشاف کې کوم خاص نقش نه لري.

د دې جريان د مربوطو آثارو نظمونه: غزلې، اوردې غزلې، قطعې، رباعې، مربعونه او درې ګوني دي. له درې ګونو پرته (چې د بابوجان او ځينو نورو د آثارو د تقطيع او چاپ په صورت کې مونډل کېدای شي) نور ګړده داسې شعري انواع دي، چې تر دې جريانه دمخه د روښانيانو په ادبي جريان او حتی د پښتو د ادبي تاريخ په لومړي دوره کې ډېر مونډل کېږي.

(۲) پښتو آثارو په دې دوره کې موضوعي وسعت پيدا کړی دی، ځينې داسې ترجمې او ليکنې دې جريان ته د مربوطو ليکوالو په فرهنګي کارونو کې مونډلې کېږي، لکه: شمايلنامه، شفاعت نامه، ايمان نامه (د اخوند درويزه) د قرآن عظيم د صحيح لوست په منظور تجويدي آثار، نورنامه د ديني زده کړو لپاره د خلاصه کيداني او خلاصه الاسلام پښتو ترجمې، ډېر مشهور عربي قصايد لکه قصيده برده او قصيده سرياني دغه ادبي جريان ته منسوبو ليکوالو په پښتو ترجمه کړل. اسلامي او عربي فرهنګ ته مربوط ډېر مشهور قصص هم همدا مهال پښتو ته واوښتل. دغه ترجمه شوي او ليکل شوي آثار زياتره روزنيز او ديداکتيك بڼه لري.

(۳) په فکري لحاظ په دې آثارو کې د عرفان او سلوك مسايل هم په کافي اندازه بيان شوي، مولوي غلام سرور لاهوري په خزينة الاصفيا کې ليکلي دي، چې د اخوند درويزه په آثارو کې د شريعت معارفو او تذکرو ته ډېره توجه شوې ده. خو د ده د زوی کريمداد په آثارو کې حقايق او معارف د رياتې ياملرنې ور دي.د دې کورنۍ په پيروانو کې د سلوك او معرفت پابند ليکوال او شاعران هم مومو او د

شرعي احکامو مفسرین او مبلغین هم یکې زیات دي.

(٤) په دې کورنۍ او د هغې په پیروانو کې چې کوم منظوم او نیم منظوم آثار ایجاد شوي دي، په هغو کې ادبي او هنري ارزښتونو ته پاملرنه ډېره نه ده شوې لیکوالو خپل هداف د خلکو د پوهولو لپاره په منظوم یا نیم منظوم ډول لیکلي دي، شعریت او ادبي خواوو ته یې چندان توجه نه ده کړې. د دې جریان په ادبي آثارو کې صرف د خینو لیکوالو او ناظمانو آثار په ادبي تحقیقاتو او ادبي تاریخ کې د مطالعې ځای لري، نور کرده علمي آثار دي، چې د علومو په بېلابېلو څانګو کې لیکل شویدي او کله چې موږ خپل فرهنګي تاریخ لیکو پر هغو به مفصل بحثونه کېږي. په دې لنډ ادبي تاریخ کې موږ دا آثار یوازې په دې منظور لږ لږ یاد کړل چې د دې جریانه سره په اړیکه کې دي. که نه وي پر هغو دلې بحث نه بنایي.

(٥) د الفنامو لیکل، چې له عرفاني نهضتونو سره اړه لري، په پښتو کې د روښانیانو له عرفاني غورځنګ سره په ارتباط کې الفنامې ولیکل شوې، د اخوند دروېزه او د ده د کورنۍ او پیروانو په آثارو کې هم د شعر دغه معنوي ډول ته توجه شته. دې جریان ته مربوطو زیاتو لیکوالو او ناظمانوالفنامې ویلې دي.

(٦) په ژبني لحاظ دا آثار د لسمې. یوولسمې او دوولسمې پېړۍ د اوایلو د پښتو ژبې خپل خاص تعابیر، ترکیبونه او لغات لري. چې د پښتو ژبې د تکاملي سیر په څېړنه کې استفاده ځنې کېدای شي.

(٧) د دې جریان د لیکنې او فکري سبک اثرات ډېر پراخ وو او ډېرو پښتنو له سواته نیولې تر هراته پورې پر دې ډول آثار ولیکل. میر حسین هروی په ١٠٧٠هـ ق کال خپل نافع المسلمین اونور منظوم اونیم منظوم آثار د اخوند پر سبک لیکلي دي.

(٨) دې جریان ته مربوط لیکوال زیاتره له پښتو سربېره په عربي، هندکو او پارسي ژبو پوهېدل، د دغو ژبو اثرات د دوی پر پښتو آثارو ښکاره دي، له دې سربېره له پارسي اوعربي ژبو څخه ترجمې هم د دې جریان د لیکوالواو ناظمانو له خوا په یو انکشافي بهیر کې واقع شوې دي او ډېر دیني رسایل، ادبي آثار هم په پښتو ترجمه شوي دي.

. ښوونکي دې د بایزید روښان او اخوند دروېزه د مخالفتونو په باره کې شاګردانو ته ځانګړی بیان وکړي او له شاګردانو څخه دې وغواړي چې دده له بیانه یې څه زده کړي هغه دې پر کاغذ ولیکي.

ښوونکي دې له شاګردانو وغواړي چې د بایزید روښان او داخوند دروېزه د کتابونو نومونه واخلي او د دې کتابونو په برخه کې یې چې څه زده کړي وي، هغه دې پر کاغذ ولیکي.

«۳»

# د پښتو ادب یوه بله تصوفي او تبلیغي حلقه

د یوولسمې پېړۍ په جریان کې چې د روښانیانو او اخوند دروېزه ډلې د پښتو اثارو د تالیف او ترجمې او دعرفاني اشعارو د ایجاد په کاروبارلګیا وې. په همدې یوولسمه پېړۍ کې مورږ ځینو داسې متصوفو شاعرانو، دیني او اخلاقي مبلغینو اوواعظانو یوه ډله هم لرو، چې نه د روښانیانو په ډله اړه لري او نه یې سرې سل په سلو کې د دروېزه(رح) په پیروانو پورې تړلای شي. سره له دې چې دځینو اشعار د مخزن الاسلام په ملحقاتو کې راغلي دي خو داسې داخلي یا خارجي سند چې له دغو دوو ډلو سره په خاص ډول د اخونډ دروېزه ننګرهاری له ډلې سره د دوی نښتون تړې ثابت شي، زما په لاس کې نشته، زه سملاسي دغه ډول شاعران او اسلامي مبلغین یوه دریمه ډله بولم، چې په فکري لحاظ یې آثار عرفاني ، اخلاقي اوتبلیغي رنګ لري او په عام دول د اسلامي فرهنګ اساسات بیانوي.

په دې ډله شاعرانو اوناظمانو کې دځینو دیوانونه لاس ته راغلي دي او دځینو هم متفرق پارکي زمورږ په واک کې دي.

دغو پوهانو د عرفان په خم کې رنګېدلي اشعار هم ویلي دي او د اسلامي ښښهونواو اخلاقو د تبلیغ په منظور یې وعظونه اونصیحتونه هم په خپلو نظمونو کې وراندې کړي دي.

د دغو عارفانو او واعظانو په ډله کې مورږ د دغو ویناوالو یادونه کولای شو:

۱/ میاعلي محمد : د ده یو وعظیه پارکی، چې ځینې بیتونه یې د سلوك یوه نیمه خبره هم لري او دهنر تومنه هم تر یوې اندازې ورسره ملګرې ده، د بیانات افغاني په خطي نسخه کې شته، له همدې خایه د ادبي ستوري فاضل مولف دغه سړی له خپل دغه وعظیه شعر سره په دې کتاب کې معرفي کړی دی دا شاعر د یوولسمې هجري پېړۍ معلومېږي، د ده په باب زیات معلومات له مورږ سره نشته، دا دوه بیتونه یې د شعري استعداد د ښکارندوی په توګه وراندې کوم:

هغه توتیان چې په ثمر ګرځي چغار کاندي
اصلي بلبله خوشي ناسته د ګلزار کاندي
هغو توتیانو ته یې شکرې ورکړې
دا تور زاغان یې په مرداره غره هارکاندي

۲/ قمردین: دا شاعر په ۹۹۱ هـ ق کال زوکړي او په ۱۰۸۱ هـ ق کال د ۹۰ کالو په عمر مړشوی دی. دی دکونړ د درهٔ نور اوسېدونکیو، پلار یې سید احمد نومېده، په دیني علومو کې یې مطالعه درلوده، او په خپله سیمه کې د دیني عالم په توګه د اعتبار څښتن سړی تېر شوی دی. په پښتانه شعراء دریم ټوك کې راغلي دي، چې ده داشعارو دیوان درلود، مګر هغه دیوان اوس نشته او یوازې د اشعارو څو محدودې نمونې یې په واك کې دي. د ده دغه اشعار عرفاني او تبلیغي رنګ لري، لږ هنري ښکلا هم ورسره مله ده، د یوې غزلې دوه بیته یې دا دي:

دا مې اقبال دی چې مین یمه زه ستا په جمال
بخت و طالع به مې وي که مې نصیب شي وصال
که حجاب پورته کړې له مخ تل به ښادي وي په ما
لکه غونچې د ګل غوړېږي د سهار په شمال

۳/ شیر محمد : دا شاعر په پښتانه شعراء لومړي ټوك کې د شېر محمد ننګرهاری په نامه معرفي شوی دی، مګرموږ ته داسې کوم سند نه دی معلوم، چې دی دې موږ د ننګرهار وګڼو.ددغه شېرمحمد ډېر اخلاقي او دیني اشعار د مخزن الاسلام په ملحقاتو کې خوندي دي، دا شاعر د یوولسمې پېړۍ د حدودو ژوندی ښکاري. د پښتانه شعراء په قول د ده له لاندې قطعې څخه د ده شاعرانه قدرت ښکاري:

یا ګوښه وای له سړیو پر آسمان باندې سحاب وای
یاعاشق وای پر مهرویو یامعشوق، لکه آفتاب وای
چې نه دا شوې، نه هغه شوې شېر محمد کاشکې‌تراب وای

٤/ اخوند مصري: دا شاعر هم د هغو صوفیانو او واعظانو په ډله کې ولاړ سړی دی، چې د یوولسمې پېړۍ په حدودو کې به یې ژوند کړی وي. د کلام ډېرې نمونې یې زموږ په واك کې نشته، د مخزن الاسلام د ځینو نسخو په ملحقاتو کې یې یوه، نیمه غزله موندل کېږي. د غزلې مقطع یې د حال ښکارندویه ده، ده ویلي دي:

اخوند مصري په تا پسې دردمن نور به په څه رغېږي
ستا لېونی مینه مې غواړي له دیداره سره

۵/ شیخ آدین: شیخ آدین د یوولسمې پېړۍ له متصوفو شاعرانو څخه دی، چې شعر یې هم عرفاني چاشني لري او هم شعریت. دی د پېښور په توابعو کې اوسېده او د شیخ رحمکار کاکا صاحب مرید و. د قاضي عبدالسلام زیارتي د معلوماتو له مخې چې یې په (ادبي سوغات) کې راوړي دي، شیخ آدین په ۱۰۷۳ هـ ق کال وفات شوی دی. د مخزن په ملحقاتو کې یې هم اشعار خوندي دي، په ادبي ستوري لومړي ټوک کې یې خوندي شوې غزله د صوفیانه حال نماینده ګي کوي، لکه چې وايي:

له روغـــه خلقــه کنــاره زه مــرور ګرځم

پر زړه مې مینه د هغه یار زه پرې اوتر ګرځم

۶/ آزاد: دا متصوف شاعر هم په ادبي ستوري نومي تذکره کې معرفي شوی دی او یوه عارفانه غزله یې موږ ته رسېدلې ده. ده هم ښايي د یوولسمې هجري پېړۍ په حدودو کې ژوند کړی وي.

د ده ددغې غزلې مطلع دا ده:

چې و دوست وته رښتینی عشق ریبار نه وي

هغــه رسمینه مینــه څکه څي په کار نه وي

۷/ بیګ محمد: بیګ محمد هم د همدې یوولسمې پېړۍ د حدودو له شاعرانو څخه ګڼل کېږي، د ده یوه غزله د مخزن له ملحقاتو موږ ته رسېدلې ده، د ده له لاندې بیتونو ښکاري، چې دی د عرفان له رموزو خبر و، لکه:

د کومـــان کړی دې ماتـــه پـــه نظـــر کړه

څـه عجـب پـټ سپاهـي یـې بهـادرې

دديـدن اجـر بــه درکــه بیـګ محمــده

تــه چـې هسـې د هجـران غمونـه نغـرې

۸/ قادر: دا شاعر هم د یوولسمې هجري پېړۍ د حدودو ښکاري، د مخزن په ملحقاتو کې یې اشعار راغلي دي. دی د هغو مبلغینو او عارفانو په ډله کې شامل سړی ښکاري، چې د یوولسمې هجري پېړۍ په حدودو کې به یې د خپلو خلکو د لارښوونې او روحاني روزنې په منظور په پښتو عارفانه او اخلاقي او کله کله د مینې او محبت اشعار ویل. لاس ته راغلې غزله یې داسې جذابه شروع کېږي:

غـــم راسره مـــل دی د سرخ چشمو له فراقه

څوک به مې د حال خبره یـــوسي تـــر عـــراقه

۹/ میا الهداد: په دې نامه د یوه عارف شاعر څو غزلې هم ترلاسه شوې دي، خو دده داحوالو په باب دقیق معلومات نه لرو د خپلوغزلو په مقطع کې یې خپل نوم میا الهداد راوړی دی.

۱۰/ نجابت: داسړی هم په همدې تصوفي او تبليغي حلقه کې محشور سړی دی، د يوولسمې پېړۍ د حدودو شاعر معلومېږي او له مخزن الاسلام سره په پښتو ملحقاتو او د بيانات افغاني په خطي نسخو کې يې اشعار راغلي دي.

۱۱/ عيسی کاکړ: عيسی کاکړ د يوولسمې هجري پېړۍ په حدودو کې د کندهار په سيمو کې اوسېده، دده يوه ښکلې اوپه تول پوره غزله پښتانه شعراءراورې ده، چې دده له حال او اورنی مينې رازپرېدلې ده، دده د غزلې دا لاندې بيتونه د ده د احساساتو ښکارندويې کولای شي:

لبونـي دې ډېـر د عشـق دريـاب لاهـو کړه
خپنـې ګرځـي لايعقـل اودی شيـدا څـوك
وير د مينې مې تا خون په زړه کې کښېښـو
نـه مـې وينـي بـې ژړا بـې واويلا څـوك
خـدای دې راولـه زمـا ښکلـی شهيـه
ستړګ تورن سـوه دلتـه هغـه دغـه دا څـوك

دا يوولس تنه شاعران داسې کسان دي، چې د پښتو اشعارو ديوانونه يې زموږ په واك کې نه دي له عيسی کاکړ او قمر دين پرته د نورو ټولو متفرق اشعار د مخزن الاسلام په ملحقاتو کې راغلي دي.

ځنکه چې د دغو کسانو بشپړ آثار اوس موږ نه لرو، نو ځکه يې د هر يوه پر افکارو ځانګړی بحث ګران دی. له لاس ته راغلو پارکو څخه يې سړی پوهېدلای شي، چې دغو خلکو له عرفان سره مينه درلوده او څينو يې د شديدوديني احساساتو تراغېز لاندې ځينې ديني او اخلاقي مسايل د خپلو خلکو د روزلو په منظور بيان کړي دي، دغه آثار ځينې د شعرد تخنيکي جوړښتونو له پلوه کمبوتی لري، مګر يو ډول احساس اوسوز پکې شته، چې دغه احساس او سوز يې پر جوله اغېز ښندي، او په لوستونکو کې د شوراو جذب د پيدا کولو له امله ارزښتمني پيداکوي او سړی ځينو دغو آثارو ته تر يوه حده د شعر په سترګه کتلای شي. په ځينو دغو آثارو کې تصوير او تخيل هم ليدل کېږي، خو بېه يې پرمختللې نه ده.

له دغو يوولسو تنو سربېره له دغه عرفاني او تبليغي جريان سره ځينې داسې کسان هم ارتباط لري، چې د دغو اهدافواو پيغامونو لرونکو مستقل آثار او بشپړديوانونه ترې پاتې دي، موږ اړيو، چې ددغه بحث د بشپړتابهٔ لپاره پر دغو کسانو هم خبرې وکړو:

ملا الف هوتك د زرم هجري په شاوخوا کې د کلات داتغر په سيمو کې اوسېده، عالم او شاعر سړی و، دده نصيحت نامه او د بحرالايمان مثنوي د اخلاقو او

اسلامي دودونو تبليغ کوي. ده په ۱۰۱۹ هـ ق کال خپل يو اثر نظم کړی دی د ده لاس ته راغلي آثار هنري ارزښتونه ډېر نه لري، خو د نصيحت نامې اشعار يې يو څه کشش لري، د دې نصيحت نامې يو بند دا دی :

بل که سړی يې خو ته خلق محمدي کوه تل
شيرين زبان خلاند جبين دې احمدي کوه تل
په طبيعت د هر سړي برابري کوه تل
چې حسن خلق به دې په کار شي د ميزانه سره

له دغو کسانو څخه چې په دې جريان اړه لري، يو بل ملا مست خمند دی، چې د بېلابېلو رسالو يو پنډ کليات ځنې پاتې دی. د ده په دې کليات کې د سلوك الغزات رساله هم شامله ده چې د شرقي افغانستان او د سوات په کوهستاناتو کې د اخوند چالاك د جنګونو بيانونه لري.

له سلوك الغزات سربېره د ده په کليات کې د حضرت محمد(ص) د مناقبو او سوال و جواب رسالې، الف نامې او د ده متفرق پارکي شامل دي.

له دې کليات څخه چې کومې سنې ترلاسه کېږي، يوه پکې د ۱۰۶٤هـ ق سنه ده.په دې کليات کې تاريخي، واقعاتي، رزمي، عرفاني،اخلاقي، ديني او شرعي مسايل مراثي او حتی اجتماعي پارکي موندل کېږي.

د ده په نظمونو کې په شکلي لحاظ غزل، قصيده ډوله غزلونه او نور موندل کېږي. د کتاب د نظمونو ځينې برخې د مخزن الاسلام په ډول منظومو ته پاتې کېږي، ځينې نور يې بيا رسا نظمونه دي، خو ځينې تخنيکي مشکلات هم پکې شته. د هنر پلوشې د ده پر ځينو منظوماتو تته ځلا لري او نور ډېر منظومات يې هنري ښېګنې نه لري. د ده د يوې رباعي جوړښت دا دی:

زه چې ياد کړم شهيدان د لمتی
پر فراق او ښي بهېږي په غوتی
آه سرد مې، لکه دود تر خوله روان شي
د غم اور مې يشوی‌د زړه چاتی

د ملامست خمند زيارت اوس د شينوارو دا چين ولسوالۍ د مامند په دره کې واقع دی او د يوولسمې پېړۍ له ناظمانو او واعظانو څخه ګڼل کېږي.

جان محمد هم د يوولسمې پېړۍ مبلغ شاعر دی، چې د حضرت محمد (ص) نورنامه يې له پارسي څخه په پښتو نظم ترجمه کړې ده.

د ده متفرق اشعارډېر ليدل شوي دي، چې زياتره يې دمخزن الاسلام په خطي نسخو کې محفوظ دي، د ده په ځينې اشعارو کې يوه جذبه هم ليدل کېږي او په

ښینو کې یې د هنر پلوشې خلېږي، د یوې غزلې څو بیتونه یې دا دي:

بـد لښکـر د بېلتانـه راتـه ولاړ شـو
پـر دغـه زمـا د زړه ښهـر ویجـاړ شـو
دوصـال لـه ډېـره قـدره دې خبـر کړم
چې مې زړه ستـا پـر بېلتـون بانـدې لتاړ شـو

زموږ په ادبیاتو کې د جنګنامه ویونکو شاعرانو په لړ کې یو تن سید حسین نومېږي، چې د اخونددرویزه د پارسي ارشادالطالبین په استناد یې له یزید سره د امامانو د جنګ قصه په پښتو روان نظم ویلې ده.

په دې جنګ نامه کې ځای ځای شاعر خپل نوم سید اوکله سید حسین راوړی دی، دغه راز د مخزن الاسلام د ځینو خطي نسخو په ملحقاتو کې ځینې تبلیغي، اخلاقي او عرفاني پارکي هم راغلي دي، چې په ځینو کې د شاعر نوم (سید) او په ځینو کې حسین راغلی دی، نو دا خبره قیاس تـه ډېره نـږدې پرېـوزي چې دا جنګنامه او د مخزن په ملحقاتو کې د حسین او سید په تخلصونو راغلي اشعار دې د یوه شاعروي. او دا شاعر لکه څنګه چې ځینو اټکل کړی دی، د نژدې زمانو سړی نه، بلکه د یوولسمې پېړۍ د حدودو شاعر دی. چې د پښتـو لومړنیـو مذهبي حماسه سرایانو په ډله کې موږ پر ده او د ده په جنګنامه خبرې کولای شو، د ده جنګنامه د جنګنامهٔ امامین او جنګنامهٔ حسنین په نامه په ځېرنو کې یاده شوې ده. دا جنګنامه په وارو وارو چاپ ده او خطي نسخې یې هم شته.

دا سید حسین ځینې مخمسونه هم لري او د مخمس په قالب کې ویل شوې یوه الف نامه یې هم زموږ په واک کې ده، چې یو بند یې دا دی:

| | |
|---|---|
| الـف نـــوم دی د الله | یا دوه یې په هــرساه |
| د زړه رزق کـړه الا الله | همیشه اوسه پــه تراه |

چې ضایع نکړې دفتر

د یوولسمې پېړۍ په دوران کې یو هنرمند عارف شاعر خواجه محمد بنګښ دی، چې د شاه جهان او اورنګزیب په زمانو کې یې ژونـد کړی دی، دمرحـوم استاد عبدالحی حبیبي د څېړنو له مخې موږ د ده د ژوند زمانه له ۱۰۳۰هـ ق نه تر ۱۱۰۰ هـ ق پورې اټکل کولای شو. دی په پښتو ژبه یو ښکلی دیوان لري، چې غزلې، قصیدې، رباعي او قطعې پکې شته. مضامین یې زیاتره عارفانه، اخلاقي، واعظانه او نور دي، خو غزلې یې خورا ښکلې او په قصیدو کې یې بیا هومره ښکلا نشته.

خواجه محمد بنګښ په تصوفي لارو کې د چشتیه طریقې پیرو و او د شیخ عبدالرحیم چشتي مرید و خواجه محمد بنګښ د چشتیانو په توصیف کې یوه خورا

جدابه قصیده لري، چې څو بیته یې دا دي:

زړه راڅخــــــه وړی دی جمــــــال د چشتیانــــــو
سرې سترګې سرې شونډې، مجذوب حال د چشتیانو
واړه شهبـــازان د لامکـــــان سیرونــــه کانــــدي
هســـې رنګــه تېـــز دي پروبـــال د چشتیانـــو
پټ په زړه کـې تـل، لکـه لالـه وینـه د زړه خـورم
نشتــه دي پـــه ژبـــه، قیـل و قـــال د چشتیانـــو

دده د دیوان زیاتره برخې په فکري لحاظ د عرفاني افکارو بیانوونکې دي، خو ده عرفاني مسایل په وچه ژبه نه دي بیان کړي، بلکه دهنر خوا پکې درنه ده.

د ده په شعر کې شاعرانه تخیل ډېر لوړ او انځورونه یې ډېر اوچت ادبي معیار لري، لاندینی بیت یې په هنري لحاظ په پښتو ادب کې بنایي ډېر لږ ساری ولري:

ګوتې تورې کړې په ما یې کړې راپورې
زه حیـران یـم ستـــا د سپینو ګوتو تور ته

صدیق د پښتو یو دیوان لرونکی شاعر دی، تر وروستیو کلونو پورې یې دیوان نه و کشف شوی او د خپلو هغو غزلو له مخې په ادبي څېړنو کې معرفي و، چې پـادري هیوز په کلید افغاني کې راوړې وې.

د همدغو غزلو له مخې زموږ مشرانو پوهانو دی د رحمان بابا په پیروانو کې ګڼلی و، خو کله چې یې دیوان وموندل شو نو ښکاره شوه چې دی یو متصوف شاعر دی، چې د یوولسمې او دوولسمې هجري پېړیو په حدود و کې یې ژوند کړی دی او د زوکړې نېټه یې د یوولسمې پېړۍ د دوهمې نیمایي په لومړیو دوولسیزو کې اټکل کېږي.

د ده په دیوان کې د نورو عشقي، اخلاقي،اجتماعي مسایلو د بیان تر څنګه عرفاني افکار هم روزل شوي دي، او دا پارکي یې:

| | |
|---|---|
| چې ثـابت په شریعت شي | نـــور سالك د حقیقت شي |
| د تـــوحید ډېوه کـــره بله | چې روان پــه طریقت شي |
| بې پرواهــه به رفتن کړې | چې د پیـــر په معرفت شي |
| د تلقین ذکر حـــاصل کړه | چې مشغول په محبت شي |

موږ په دې باوري کوو، چې صدیق منظمه عرفاني مطالعه درلوده او عرفـان دیوه مسلك په توګه د ده پر شاعرۍ وزرې غوړولې دي.

د صدیق په دیوان کې هنري ارزښتونه هم په ښه معیار کې دي، ده له پښتو سربېره په پارسي ژبه هم شاعري کړې ده د یوې غزلې دوه بیته یې دا دي:

ستړکې دې فتنې کا چې بېدارې شي له خوابه
مخ دې نمر خجل کا چې بېرون شي له حجابه
مخ دې رابنکاره شي چې سیه زلفې ترې باد یوسي
توره شپه رڼا شي چې څې ابرله مهتابه

د هغو دیوان لرونکو متصوفو شاعرانو په ډله کې چې یې په یوولسمه پېړۍ کې ژوند کړی دی، بل شاعر شیخ آدم دی. د ده د دیوان یوه خطي نسخه شته، د همدې نسخې له مخې د دغه شاعر کلام د پښتو څېړنو میدان ته لاره پیدا کړې ده، او د ادبي ستوري په دوهم ټوك کې یې احوال راغلی دی. ده د پښتو دوه تنه شاعران میرزاخان روښاني او خوشحال یاد کړي دي، چې دواړه د یوولسمې پېړۍ دي، د اورنګزېب یادونه یې هم کړې ده نو څکه مونږ وایو، چې د یوولسمې هجري پېړۍ د دوهمې نیمایي حدود به یې د ژوند له زمانې سره برابروي.

د ده په دیوان کې عرفاني افکار د اساس حیثیت لري، ددې تر څنګه یې دمینې، اخلاقو او ځینو اجتماعي مسایلو په باب هم خبرې کړې دي. ځینې اشعار یې هنري ارزښتونه هم لري، د یوې غزلې دوه بیته یې :

ما چې خوله په ډېر آرزو درڅخه غوښته
تالسو پټه په حجاب سره ونغښته
دې وې مخ دې سرې لښې دی وبه سوځې
ځان له اوره وساته په ببرته تښته

د ده صوفیانه وینا هم جذابیت لري او سړی ترې خوند اخلي، لکه دابیت:

د دوبین قلا به کړم پرې دړې وړې
برکت مې په آواز کې د کامل شته

د استاد حبیب الله رفیع د څېړنو له مخې شیخ آدم د هشنغر د جیند ی دسیند په شاوخوا سیمو کې ژوند کړی دی. دده د دیوان خطي نسخه زما د کتابخانې په خطي مجموعه کې موجوده ده.

اخوند میاداد له هغو عارفانو څخه دی، چې وینا یې خاص روحاني جذابیت لري او دا لاندې غزله یې دومره مشهوره ده چې حتی لا تر اوسه د پښتنو په صوفیانه حلقو کې په خورا جذب او شور د صوفیانو په خوله کې زمزمه کېږي:

که دې د حق مینه روزي شي له دوامه سره
لکه الف چې وصلت بیاموندده له لامه سره
که دې اودس د محبت په میو وشي چېرې
د حقیقت لمونځ به ادا کړې له امامه سره

اخوند میاداد د دیوان خاوند شاعر دی، چې په الهي مینه کې یې خورا خوندور او سوزناك اشعار ویلي دي د ده دیوان تر اوسه نه دی چاپ شوی، د دیوان دوې نسخې یې په بلوچستان او پښتونخوا کې لیدلې شوې دي، په یوه نسخه کې د ده منشورې ټوټې هم شته، چې د ده د نثر لیکنی روش ځنې معلومېږي ده لیکلي دي:
"راشه میاداده سر له بادشاه مه اخله، قلنګ قبول کړه، بادشاه عادل دی، رحم یې ډېر دی. رعیت یې تېر دی. په غم مه شه له زوره وره، اور دی د دروېشانو اور دی، لګېدلی د طالبانو د زړه په کور دی. په صورت له خلقو سره دي، ارواحان یې تللي د خدای په لور دی..."

ده په پښتو ژبه یوه نورنامه هم لیکلې ده، ددې نور نامې شکلي سکښت هم لکه لورې راوړل شوی نثري ټوټې نیم منظوم شکل لري. دده نثر کله کله سجع اوقافیه مراعاتوي او روان نثر نه شو ورته ویلای.

د اروابناد قاضي عبدالحلیم اثر د وینا مطابق دی د شیخ رحمکار کاکا صاحب مرید و. ده د پښتونخوا په سیمو کې ژوند کړی دی، یو روایت وایي چې میا داد د هشنغر مامنزي و او د اتمانزو په کلي کې اوسېده او هم د هماغه کلي په هدیره کې ښخ دی بل نظر دا دی چې یو روایت وایي چې دی د سوات په درشخیله کې ښخ دی.

د دې کړی بل عارف شاعر چې مور یې په دې ځای کې له یاده چاره نه لرو، هغه کنډیر دی. دی هم متصوف او عارف شاعر تېر شوی دی، یو دیوان ځنې پاته دی چې تر اوسه نه دی چاپ شوی. دی هم د یوولسمې پېړۍ د اواخرو شاعر ښکاري. د ده شعر رواني او ښکلاهم لري، عارفانه او د سلوك مسایل یې په شاعرانه ژبه بیان کړي دي. د دیوان خطي نسخه یې په کوټه کې له پروفیسور ولي محمد خان کاکړ سره شته.

په همدې ډله کې مور د عارف شاعر فتح شاه له نامه هم هسې نه شو تېرېدلای، دا سړی د یوولسمې پېړۍ د اواخرو شاعر او لیکوال معلومېږي، د اشعارو او آثارو یو کلیات لري، چې تر اوسه نه دی چاپ شوی، یوه خطي نسخه یې په بریتانیا کې محفوظه ده. په دې کلیات کې چې دده د اشعارو ځینې برخې کتل شوې دي. دی یو عارف او متصوف سړی ښکاري، دا لاندې دوه بیته یې د حال ښکارندویي تر یوه حده کولای شي:

د حق جوش به په هغو سینو کې وینه
چې له حقه مشرف په مجذوبي شه
د سالك سلوك تر ډېره حده بویه
چې مقصود سرېې حاصل له باري شه

د عارفانو او مبلغانو د دغې ډلې د ادبي او نورو فرهنګي فعالیتونو په دوران کې
خینې نور ناظمان هم زمونږ مخې ته راځي، چې په پښتو یې خینې آثار نظم کړي دي
او د یوولسمې پېړۍ دوران د دوی د فرهنګي فعالیتونو دوران دی. په دې سلسله
کې د امیر په نامه د یوه ناظم نوم هم دهېرولو نه دی، ده په ۱۰۲۳ هـ ق کال د
قرآن عظیم د صحیح لوست په منظور یو کتاب په پښتو نظم لیکلی دی. دا نظم
مثنوي دی، چې د تجوید د علم ابتدایي قواعد او اصول بیانوي.

د دې اثر محتویات ادبي، هنري ارزښتونه نه لري، خو موجودیت یې موږ ته
راښیي، چې دغه وخت پښتنو علماوو د دغسې آثارو د لیکلو ضرورت محسوس کړی و،
او دغه مهال ښایي پښتنو د دیني علومو د زده کړې خواته زیاته توجه درلوده.

دعارفانو په دغه دریمه ډله کې چې د روښانیانو او اخوند درویزه د ډلو د ادبي
او فرهنګي فعالیتونو په دوران کې یې ادبي او فرهنګي اثار لیکلي او یا ترجمه کړي
دي، پښتو ادب په پرمختیایي سیر کې خپل نقش لري او د پښتو دعرفاني پانګې په
غنې کولو کې موږ له دغو آثارو سترګې نه شو پټولای، د همدغو حلقې د شاعرانو او
لیکوالو په آثارو کې موږ خینې داسې آثار هم وینو، چې د پښتو ادب د موضوعي
پراختیا په پروسه کې یې اغېزې نه دي، لکه د مذهبي حماسو او رزمیو ایجادول او
نورو دې ته ورته مذهبي او اخلاقي آثارو ایجاد، لکه بحرالایمان، نصیحت نامه او
نور...

# د دوهمې ادبي دورې لومړي پړاو ته يوه کتنه

د لسمې او يوولسمې هجري پېړيو په ترځ کې د روښانيانو، اخوند درويزه او د ده د سبك ډېلوپانو او هم د همدې زمانې د ځينو مبلغو او صوفي شاعرانو، ناظمانو او ليکوالو آثار د خپلو شکلي جوړښتونو له پلوه ډېر سره نږدې يو شانوالی لري، موضوعات يې هم تر ډېره حده سره يو شی دي، نو په همدې اساس مو د دغو درې سروډلو له خوا ليکل شوي، ايجاد شوي، او ترجمه شوي پښتو آثار د پښتو د ادبي تاريخ د دوهمې دورې په لومړي پړاو کې سره يو ځای مطالعه کوو. زمان، اجتماعي، سياسي او فرهنګي شرايط يې يو ډول دي، او داسې فارقه علامه نشته، چې مو دې د دغو دريو ډلو آثارو ته د بېلابېلو پړاوونو نوم ورکړو.

که څه هم اخوند درويزه له روښانيانو سره مخالفت درلود، ده او د ده ځينو پلويانو د روښانيانو پر ضد څو ليکنې هم کړې دي، خو هغه ليکنې له قشري او ځينو نظرياتي اختلافاتو را زېږېدلې چې مو نشوکولای دغسې اختلافي ليکنې د بېلتون د يوې داسې کرښې په توګه ومنو، چې د دواړو ډلو آثار دې سره بېل کړو.

دلته مو د آثارو دايجاد او تاليف اهداف کورو، د دواړو په آثارو کې عرفان او د عرفاني لارو د اساساتو په خپلولو سره ځان الهي ذات ته نږدې کول، د نفس تزکيه، د زړه تصفيه، د اسلام د مقدس دين د اساساتو بيان، د اسلامي مقدس دين د لارښوونو په رڼا کې د خلکو اخلاقي روزنه، پندونه، نصايح او نور دې ته ورته مطالب ددې درې واړو ډلو له خوا په ترجمه شوو، ليکل شوو او ايجاد شوو آثارو کې ليدل کېږي، داهدافو همدا ورته والی مو اړ کوي، چې د دغو درې واړو ډلو آثار په يوه پړاو کې مطالعه کړو او د دوهمې ادبي دورې د لومړي پړاو نوم پر کښېږدو.

د دې پړاو ادبيات او نور فرهنګي آثار د خپلو خصوصياتو له پلوه دغه لاندې ارزښتونه لرلای شي.

(۱) په دې پړاو کې د ليکل شوو، ايجاد شوو او ترجمه شوو آثارو کافي زياته برخه تر لاسه شوې او د اشعارو په لسګونو ديوانونه يې زمونږ په واك کې دي، د ځينو ډېرې او د ځينو لږې خطي نسخې ليدل شوې دي، د دغو آثارو د زياتو نسخو او زياتې برخې موجوديت مو په دې باوري کوي، چې دغه مهال په پښتنو کې د باسوادو خلکو شمېر يو څه ډېر شوی و او خلکو د کتابونو له لوست او د کتاب د ساتلو او لرلو له دود سره علاقه ښودله. حال دا چې تر دې پړاو د مخه د لومړی

دورې د آثارو ځینې محدودې نمونې له موږ سره دي، چې هغه هم ځینو تذکرو ته موږرسولې دي.

(۲) د دې پړاو آثار په شکلي لحاظ نیم منظوم، منظوم او منثور دي. د نیم منظوم یا د مسجع او مقفی نثر لیکلو طریقه همدا مهال د بایزید روښان له خوا پیل شوه، اخوند درویزه (رح) له څه اصلاحاتو سره پسې تعقیب کړه او د اخوند او د ده پلویانو په آثارو کې یې ښه رونق پیدا کړ، چې اثرات یې موږ ان تر دوولسمې هجري حتی دیارلسمې پېړۍ پورې هم لیدلای شو.

دا پړاو دنیم منظومو آثارو تر څنګه بشپړ منظوم آثار هم خورا زیات لري او په کمې لحاظ تر نیم منظومو هغو ډېر دي. په دې منظومو آثارو کې ځینې نظمونه وزني ورانۍ هم لري او د شعر د فنونو له پلوه نیمګړتیاوې پکې لیدل کېږي، خو دا باید هېره نه کړو، چې په همدې پړاو کې په تول پوره منظوم آثار او اشعار هم شته.

د دې پړاوو منثورو آثارو کې ځینې ځانګړې رسالې شته له نورو سربېره یوه د علي محمد مخلص او بله هم د ارزاني روښاني، د دې رسالو نثرونه سجع نه لري او د هغه وخت له شرایطو سره سم روان نثر بلل کېدای شي او سړی په زغرده دا ویلای شي، چې دغو دواړو روښانیانو په نثر لیکلو کې خپل ځانګړی روش درلود، چې د مسجع لیکنې په تاوده بازار کې یې په دغه سبک لیکل ونه کړل، بلکه د روانې خواته یې توجه وکړه او د ژبې له جوړښت سره برابر یې خپل منثور آثار ولیکل.

د اخوند میاداد په نثرونو کې د ده نور نامه نیم منظومه سبک تعقیبوي، خو په دیوان کې یې چې کومې منثورې ټوټې شته، سره له دې چې د جملو په پای کې قافیې ته توجه لري، خو ورسره داسې هم انګیرل کېدلای شي، چې په دې منثورو ټوټو کې ده دروان نثر د لیکلو خواته هڅه کړې ده، اما هڅه یې ډېره بریالۍ نه ښکاري.

(۳) که څه هم د پښتو ادبي آثارو هغه نمونې، چې موږ د پښتو ادبي تاریخ په لومړۍ دوره کې مطالعه کړې، ځینې یې لوړ هنري ارزښتونه لري او هغسې ښکلا او شعریت چې د هغې دورې په ځینو لاس ته راغلو آثارو کې لیدل کېږي، د دې پړاو په زیاترو آثارو کې یې نه شو لیدلای. که د دې پړاو آثار د هنري ځانګړتیاوو له مخې د لومړۍ دورې له ځینو نمونو سره مقایسه کړو، نو د انکشاف څرك ځنې نه لګي، خو موږ باید ووایو، چې د دې دورې زیاتره آثار د عرفاني، دیني او اخلاقي مسایلو بیان ته وقف شوي دي، چې په ځینو وختونو کې د دغسې اهدافو لرونکي شاعران او لیکوال د نظم دشعریت خواته ډېره توجه نه کوي او آرزویې دا وي چې د خلکو زده کړې په منظور خپل آثار په منظومه بڼه وړاندې کړي. البته دا خبره هم باید هېره نه کړو، چې د دې پړاو ګرده آثار دغسې خصوصیات نه لري، بلکه ځینې په هنري ګانه سمبال اشعار او آثار هم موږ په دې پړاو کې پیدا کولای شو. د مذهبي او

عرفاني شور او جذبې نه ډك اشعار هم په دې پړاو کې شته.

(٤) په موضوعي لحاظ د دې پړاو آثار ډېر وسعت لري. عرفان د بوه مسلك په توګه پښتو ادبياتو ته لاره پيدا کوي او د عرفاني افکارو څرګونه چې د پښتو د ادبي تاريخ دلومړۍ دورې له خينو متفرقو پارکو رااېستل کېدلی شي. په دې پړاو کې په مکتبي شکل پر پښتو ادبياتو خپلې وزرې غوړوي.

د اسلام د دين د اساساتو تبليغ او تشريح ته خورا زياته توجه شوې ده او د دغو اساساتو د تبليغ او بيان په منظور منظم آثار او رسايل په دې پړاو کې رامنځ ته شوي دي.

رزمي آثار، مرثيې، واقعاتي خبرې، اجتماعي او اخلاقي مسايل هم د دې پړاو په آثارو کې ليدل کېږي.

(٥) د شعري ژانرونو د انکشاف خينې څرکونه هم موږ د دې پړاو په آثارو کې ليدلای شو.

د دې پړاو په اشعارو کې: غزلې، قصيدې، رباعي، مثنوي، قطعې، درې کونې، مربع او مخمس پيدا کېږي.

په دې شعري انواعو کې مربع، درې کونې او مخمس داسې شعري انواع دي، چې په لومړۍ ادبي دوره کې يې موږ څرك نه شو ايستلای، په دې پړاو کې د دغو دريو نوو شعري ژانرونو موجوديت د پښتو په شعري ژانرو کې د انکشاف يو څرك په لاس راکوي.

په دې پړاو کې د پښتو د اولسي شعر نمونې ډېرې نه لرو، يوازې د بايزيد روښان فرحت المجتبی او د ملا الف هوتك نصيحت نامه د پښتو شاعرۍ په ولسي اوزانو کې نظم شوې ده.

(٦) په دې پړاو کې پښتني فرهنګ له اسلامي فرهنګ سره خورا زيات نږديکتونه پيدا کړل او د اسلامي فرهنګ ډېرو اساسي مسايلو پښتو ته لاره پيدا کړه ډېر اسلامي، ديني او عربي فرهنګ ته مربوط قصص پښتو ته واوښتل ، د پښتو کوم آثار چې موږ دلومړۍ دورې څخه په لاس کې لرو، دا ډول خصوصيات نه لري.

(٧) په دې پړاو کې خينې مهم ديني او فقهي آثار په پښتو ترجمه شوي دي لکه خلاصه کيداني، قصيدهٔ برده، قصيدهٔ سرياني، نورنامه، خلاصه الاسلام او نور... د دې تر څنګه د پارسي او عربي ژبو له عمده اسلامي آثارو نه په استفادې سره خينې مهم د ديني او شرعي اساساتو بيانوونکي کتابونه په پښتو کې په تحقيقي ډول وليکل شول، لکه : مخزن، نافع المسلمين، فوايدالشريعت او نور...

(٨) د دې پړاو زياتره ليکوال او شاعران له څو ژبو سره اشنا دي، لکه پارسي، پښتو، عربي او هندي ژبې. په دغو ليکوالو کې خينو له پښتو سربېره په هندي، پارسي او عربي ژبو هم آثار ليکلي دي، چې له نورو فرهنګونو سره د پښتنو ليکوالو ارتباط ښې څرګندېږي. د پښتو د ادبي تاريخ د دوهمې دورې لومړی پړاو د لورو خصوصياتو په لرلو سره يوې بلې پرمختيايي مرحلې ته داخلېږي.

((٤))

# دبشپړتيا په لور د پښتوادب پرمختيايي يون خوشحال خټك او د خوشحال د سبك پيروان

د لسمې هجري پېړۍ په دوران کې د هند دمغلي امپراتورۍ بنسټ د هند په زمکو کې کېښوولی شو. د يوولسمې هجري پېړۍ په لومړۍ نيمايي کې د دې امپراتورۍ جرړې په هند او شاوخوا زمکو کې ښې ژورې تللې وې او دې امپراتورۍ د خپل عروج مراحل تر شا کول.

د پښتونخوا او افغانستان ډېرې سيمې دغه مهال د همدې امپراتورۍ په ولکه کې شاملې وې او مغلي حکامو اداره کولې.

د پښتنو قبايلو داېل ساتلو په منظور د دې امپراتورۍ اراکينو د دغو قبايلو خانانو ته توجه درلوده او دوی ته يې دمنصبونو او جاګيرونو د ورکړې له لارې پردې سيمې او پښتنو قبايلو خپل نفوذ جاري ساته.

دغه مهال په پښتنو کې نفوذ لرونکي اقشار همدا خانان او روحانيون وو، عام اولس چې د بزګرانو، شپنو او پوونده و وېړکنې يې متشکله عناصر وو، د دغو خانانو او روحانيونو تر نفوذ لاندې وو او په خورا ټيټه اجتماعي، اقتصادي سطح کې يې ژوند کاوه. له عامو خلکو څخه ځينو د دغو خانيو په لښکري کاروبار کې برخه درلوده، که څه هم له ډېر پخوا څخه هندوستان ته له ماوراءالنهر او نورو سيمو څخه تجارتي کاروانونه د پښتونخوا او افغانستان له لارو وررسېدل، دغه مهال هم دغه تجارتي روابط له هند سره له همدغو لارو ټينګ وو. پېښور، کابل، هرات، کندهار، بلخ، مشهد او بخارا د دې منطقې مهم تجارتي ښارونه او د اموالو د مبادلې مراکزو و. پر هندي اموالو بارکاروانونه به همدغو ښارونو ته ورتلل او دافغانستان، پښتونخوا ماوراءالنهر او نورو سيمو اموال به د مبادلې له همدغو مراکرو څخه د هند سيمونه لېږل کېدل.

په فرهنګي لحاظ دغه مهال د پښتنو په سيمو کې د روښانيانو او آخوند درويزه (رح) د پيروانو او د دې دوو ډلو تر اغېزې لاندې د ديني او شرعي احکامو د بيان او

د اسلامي قصصو د نظمولو او د عرفاني افکارو د تبلیغ او تلقین لپاره کار روان و. د پښتنو دهغه وخت په فرهنګي حلقو کې دغه ډول تمايلاتو د پښتو د ادبي او نورو فرهنګي آثارو د ایجاد او ترجمې په جریان حاکمیت درلود.

عام ولس د خپل هنري ذوق دتسکین د پاره خپل ولسي شعرونه او خپل ملي شعري اوزان درلودل، چې دهغو شفاهي، ولسي ادبیاتو د ایجاد له لیارې یې خپله هنري تنده ماتوله.

پارسي ژبه دغه وخت په منطقه مسلطه فرهنګي ژبه وه او عربي هم دیني ژبه وه، چې د دواړو ژبوزده کړه دهغه وخت د پښتنو دفرهنګي او دیني حلقو دنصاب مهم جزو او هغو پښتنو خانانو چې د هند د مغلي دربار سره روابط درلودل، هغو هم د پارسي ژبې دزده کړې خواته توجه کوله او دا ځکه چې د دربار رسمي ژبه هغه وخت پارسي وه. د پارسي ژبې د عرفاوو او ادیبانو، شاعرانو آثارو د پښتنودیني او فرهنګي حلقو او د پښتنو د خانانو دربارونو ته لاره درلوده او د همدغو آثارو له لارې یې پارسي زده کوله. ګلستان، بوستان، سکندرنامه، یوسف زلیخا، مثنوي، حدیقه، دحافظ دیوان اونور آثار د دغه مهال د پښتنو د تدریس په حلقو کې مروج درسي کتابونه وو.

د پښتونخوا اوافغانستان زیاتره سیمې،سره له دې چې د هند دمغلي امپراتورۍ په ساحه کې شاملې وې او د خینو خانيوپه وسیله دربار دغه قبایل په خپلو رعایاوو کې شمېرل خو مور کورو، چې پښتانه قبایل، د بابر له وخته نیولې تر اورنګزیب پورې او نورو مغلي پاچاهانو په زمانه کې په عام و تام ډول د ډیلي د دربار تابع نه وو اوهمېش یې د لارو د بندولو او پرشاهي فوجونو د حملو له لارې د هند د مغلي امپراتورۍ په وړاندې مقاومتونه هم کول، د روښانیانو او دهغه مهال د نورو پښتنو قبایلو مقاومت د دې خبروښکاره ثبوت دی.

په همدغه دوران کې د پښتنو دهغو خانیو له جملې څخه چې یې له مغلي دربار سره روابط درلودل یوه هم په خټکوکې دملك اکوړي خاني وه. چې د ارواښاد استاد دوست محمد خان کامل مومند په وینا د دې کورنۍ مشرخان. ملك اکوړی و. ده دمغل امپراتور جلال الدین اکبر (۹٦۳. ۱۰۱٤ هـ ق) توجه خپل خان ته واړوله او له هماغه وخته دغې کورنۍ له مغلي دربار سره روابط پیدا کړل. جاګیرونه اومنصبونه یې ترې تر لاسه کړي وو.

دمغلي باچا جهانګیر د (۱۰۱٤.۱۰۳٦ هـ ق) د پاچاهي په شپږم کال د خټکو په همدغې خانۍ کې یو ماشوم نرۍ ته سترګې پرانیستې.چې کله لوی شو. حوان شو او خان شو، نو یې د خپلې خانۍ د سیاست په ساحه او په عام ډول د فرهنګ په ساحه کې دومره کارونه وکړل. چې اوس یې د پښتنو اوسیمې په سیاسي. احتماعي

او فرهنګي تاریخ کې کار نامې خلانده موقف لري او نوم یې مرګ نه مني. دا شخص د خټکو دقبیلې نومیالی خان خوشحال خان خټک دی.

## خوشحال خټک:

د خوشحال خټک د ژوند، د آثارو افکارو د څېړنې لپاره خورا کافي مواد د محققانو او ادبپوهانو په واک کې دي. د خوشحال خپل آثار، دده د کورنۍ، د نورو آثار او له یوې پېړۍ نه زیاتې مودې راپدې خوا د ده په باب ترسره شوي تحقیقات د خوشحال د ژوند او هنر او فکري مسیر د څېړنې لپاره لازم او اساسي مواد جوړوي.

خوشحال په خپلو آثارو کې د خان په باب ډېر څه لیکلي او ویلي دي، په خپله یوه قصید کې یې خپل خان داسې راپېژندلی دی:

| | |
|---|---|
| زه خوشحال د شهبازخان یم | چې تور زن یم کان په کان |
| شهباز خان د یحیا خان و | چې بل نه وهې څوان |
| یحیا خان د اکوړي و | چې په توره شو سلطان |
| د اکبر باد شاه په دور | شو د خپل ولس طرخان |
| د هجرت زر دوه ویشت سن و | چې زه راغلم په جهان |
| هغه کال پوره پنځوس و | چې شهید شو شهبازخان |
| د هغه دور پادشاه و | قدردان شاه جهان |
| دپلار ځای یې وماراکړ | په ولس شوم حکمران |

خوشحال خان دشهباز خان زوی د ۱۰۲۲ هـ ق کال د ربیع الثاني په میاشت د خټکو دا کوړې په سرای کې زېږېدلی دی.

خوشحال دخپلې کورنۍ په غېږ کې لویېده، خوله کو چنیوالي څخه دده ژوند له خینو حوادثو سره ملګری و. د مثال په ډول دی په ۱۰۲۹ هـ ق کال د لنډي په سین کې ډوب شو او نجات یې ومونډ . په اته کلنۍ کې په ۱۰۳۰ هـ ق کال له څېرنه کانې پرې راولوېد، دا خل هم له مرګ نه بچ شو. دی دیارلس کلن و،چې په ۱۰۳۵ هـ ق کال د ختکو او یوسفزوتر منځ دجهانګیري په کلي کې جنګ واقع شو،په دې جنګ کې خوشحال هم ګدون درلود.

خوشحال لا ځوانی څخه د ښکار شوقي و او د علومو د تحصیل تر څنګه یې له ښکار سره هم خپله مینه دالله. د خپلې کورنۍ د سرداری د ټینګښت لپاره یې له دیارلس کلنۍ څخه نه محلي جنګونو کې شرکت هم درلود. په ۱۰۴۳ هـ ق پر عیسا

خپلو برید او په دې جګړه کې د خوشحال برى، د زیاتو ولجو تر لاسه کول به ضرور د ده پر رزمي روحیه اغېزه درلودلې وي او ده ته به په آینده جنګونو کې د بریو د زمینو په پیدا کولو کې مرستندوی واقع شوی وي؟

خوشحال د عیسا خېلو تر حملې درې کاله د مخه په ۱۰۴۰ هـ ق کال کې لومړنی واده وکړ. د استاد رشاد د څېړنو له مخې د خوشحال مشره مېرمن مرجانۍ نومېده. د دغه واده په مهال کې د ده عمر د اتلسو کالو و، تر دې واده وروسته خوشحال نور ودونه هم کړي دي.

په ۱۰۵۰ هـ ق کال د مندړو اکا خېلو قبیلې د مالیې له ورکړې انکار وکړ، د خوشحال دپلار شهباز لښکرو د اکاخېلو پر کلیو یرغل وکړ. خوشحال هم په دې جګړه کې شامل و. دمندړو او خټکو تر منځ سخته جګړه وشوه، په جګړه کې خټکو ماتې ومونده. شهبازخان غښتی خورلی و، له جګړې پنځه ورځې وروسته مړ شو. خوشحال هم په دې جګړه کې زخمي شوی و.

د پلار تر مړینې وروسته له قبیله یي رسومو سره سم خوشحال د پلار پر ځای د خپلې سرداری پرګدۍ کښېناست، له تبې نه تر جوړېدو وروسته ډېر ژر د انتقام اخیستو په فکر کې شو. پر اکا خېلو مندړو او یوسفزو یې لښکرې وخېژولې او د دې خلکو ډېر کلي یې وسوځول او تر جګړو او مرګ ژوبلې وروسته بېرته خپل کلي ته راغی.

دغه وخت ده ته د هند د مغلي امپراتور له درباره د سر داری فرمان راورسېد او خوشحال د شاه جهان منصبدار او دخپلې قبیلې سردار شو.

تر دې وروسته خوشحال د شاه جهان پاچا د منصبدار او سردار په توګه د هند له امپراتورانو څخه د سرغړوونکو د ټکولو او ددې امپراتورۍ د ستنو د ټینګښت له پاره جنګونه کول.

په ۱۰۵۱ هـ ق کال په ختیځ پنجاب کې راجه جګهت سنګه د شاه جهان له درباره سر غړاوی وکړ او یاغي شو. پاچا خپل زوی مراد بخش د راجه جګهت سنګه د ټکولو لپاره واستاوه.

خوشحال هم له خپلو دوه زروتنو لښکرو سره په دې جنګ کې برخه درلوده. خوشحال په دې جنګ کې په مېړانه وجنګېد او دتاراګډ هـ تر فتحې وروسته یې موقف لوړ شو.

د ۱۰۵۵ ـ ۱۰۵٦ هـ ق کالونو ترمنځ خوشحال د هند مغلي امپراتورۍ له لښکرو سره د بلخ او بدخشان په جنګي کار روایيو کې برخه واخیسته او په دې بسوکې هم ډېر ښه وځلېد او په منصب کې یې اضافه راغله.

په ۱۰۵۹ هـ ق کال شاه جهان د کندهار د نیولو لپاره له هنده راوخوځېد. په پښتونخوا کې یې خوشحال مخې ته راووت او تر ډکې پورې د ده ملګری و. بیا کابل

ته ورپسې ورغی، دغه مهال شاه جهان پاچا خوشحال ته د یوسفزو د سیمې سرداري هم ورکړه.

خو څنګه چې د یوسفزو مشر بهاکو خان له شهزاده داراشکوه سره روابط درلودل. نو يې خکه ډېر ژر دغه سرداري د پاچاهي په اوامرو له خوشحال څخه بېرته واخیسته.

د ۱۰۶۳ - ۱۰٦٤ هـ ق کالونو تر منځ خوشحال له بنګښو سره جګړې وکړې او دری خله يې دغو خلکو ته ماته ورکړه.

په ۱۰٦۸ هـ ق کال د شاه جهان پر ځای اورنګزېب عالمګير دهند د مغلي امپراتورۍ پر تخت کښېناست. په لومړيو څوکلونو کې د خوشحال خان ختك او اورنګزېب تر منځ روابط ښه وو، خو د اورنګزېب د سلطنت په دوران کې دمغلي امپراتورۍ له خوا د راهدارۍ اخیستل منع شول، اما د پښتنو په سیمو کې د دغه امر عملي کول يو څه ګران کار ابسیده.

د تاريخ مرصع د بيان له مخې د امهال امير خان دکابل صوبه دارو، هغه پاچا ته ويلي وو چې راهداري هسې نه منع کېږي تر هغې چې د زبردستۍ عمل ونه شي. پاچا ورته په مجمل ډول ويلي وو: ما د راهدارۍ د بندولو حکم درکړی، څنګه چې ته داکار کولای شې هسې يې وکړه. صوبه دار د دغسې يو اجمالي امر تر، ترلاسه کولو وروسته بېرته پېښور ته راغی او د خوشحال د کورنۍ له خينو غړو سره په مصلحت کې يې د خوشحال خان ختك د نيولو حکم وکړ. هماغه وو چې دی يې له سرای اکوړي نه پېښور ته راوباله او د اروانباد سرفراز خان عقاب ختك د څېړنې له مخې د ۱۰۷٤ هـ ق د شپږمې مياشتې په دوولسمه د مغلو له خوا ونيول شو او د همدې مياشتې په نولسمه يې منصب ضبط شو. دوې مياشتې په پېښور کې و، د همدې کال د اتمې مياشتې په اواخرو کې يې ډيلي ته روان کړ. د شعبان په مياشت کې لاهور ته رسېدلی و او د ۱۰۷٤ هـ ق کال د رمضان المبارك په نيمايي کې ډيلي ته ورسېد. دوه نيم کاله يې په ډيلي او د هند دراجستان د سوايي مادهپورد رنتهبور په کوټ کې تېر کړل. د ۱۰۷٦ هـ ق کال د ذي القعدې په ٥ مه درنتهبور له کوټه وايستل شو او اګرې ته راوستل شو او هلته له قيده خوشی شو. خو کورته د تللو اجازه ورنه کړل شوه او په ډيلي کې نظر بند وساتل شو. د نظر بندۍ دغه ورځې هم خورا د مصيبت نه دکې وې، خو د غم دا ورځې هم تېرې شوې او په ۱۰۷۹ هـ ق کال خپلې سيمې ته د ورتللو اجازه ورکړل شوه. د اروانباد عقاب ختك په قول د ۱۰۷۹ هـ ق کال د دريمې مياشتې په لسمه عالمګيري منصبدار شو، خوشحال خان د خپل بند او خوشۍ کېدو مراحل په خپل يو نظم کې داسې ښوولي دي:

عالمګير چې په تخت کښېناست | له قرا نه يه قران شوم

لــــه بکرامــــه پښې ترلــــی هندوستــــان لــــوه روان شوم
پــه ډیلــــي په رنتهبــــور کې درې کلــــور کاله حیران شوم
په آګره کــې مــې پښې واشــــوې بیا نــــوکر د بــدســلطان شــوم
د شجــــاع پــــه شــرو شــور کې خپــل وطــن وتــه روان شــوم

کله چې خوشحال بېرته خپل کورته راغی. د ده په افکارو کې پوره بدلون راغلی و. تر بند وروسته خوشحال کابو یوویشت کاله نور ژوندی و، خو د ده د ژوند دغه کلونه هم آرام نه وو، له ډېرو پېښو او پرابلمونو سره مل تېر شول. د نامتو خوشحال پېژندونکی اروابناد دوست محمد خان کامل مومند په وینا د خوشحال د ژوند وروستي څو کلونه له تیارو او ناکامیو ډک دي.

تربند وروسته د خوشحال ژوند پېښې په کرونولوژیك ډول داسې بیول کېدای شي:

په ۱۰۷۹ هـ ق کال مغلو په لنکر کوټ کې کلا جوړوله، خوشحال د دې کلا په جوړولو کې له مرستې انکار وکړ. په ۱۰۸۱ هـ ق صوبېدار امین خان خیبر ته بوته. په دې جنګ کې پښتنو د ایمل خان په مشرۍ مغلو ته سخته ماتې ورکړه، د دې ماتې په نتیجه کې محمد امین د علي مسجد له لیارې پېښورته په شاشو او د لښکرو بله ډله یې د تاترې له لارې په شا کېده چې په تاتره کې پښتنو پر مغلو بیا حمله وکړه او دوی یې ډېر زیات له منځه یوورل. تر محمد امین خان وروسته مهابت خان د کابل صوبه دار شو. په ۱۰۸۳ هـ ق کال کې یې خوشحال ته د مرستې لاس وغځاوه، خو ده مرسته ورسره ونه کړه. د خوشحال د دې رویې په مقابل کې مغلي حکمرانانو په خپل کــور کــې خوشحــال تــه پرابلمونــه ایجــاد کړل. د ده زوی بهرام د مغلو په طرفدارۍ ودرېد. د خوشحال او بهرام تر منځ د ۱۰۸۳ هـ ق د درېمې میاشتې په لومړۍ نېټه جنګونه وشول.

په ۱۰۸٤ هـ ق کال کې خوشحال پرله پسې درې لوېې سوبې وکړې. د خیرآباد کلا یې فتح کړه، دوابه یې ونیوله او د نوښار پر کوټ یې برې وموند.

دغه مهال خوشحال د زرښت خوا ته روان و، نظر یې کمرورۍ شوی و. په ۱۰۸۵ هـ ق کال یې خپله خاني هجري ته ورکړه. په همدې کال د بسو لښکرو د دریا خان په مشرۍ په کوهاټ یرغل کړی و او په دې جګړه کې د درباخان ورور تاتار خان هم ووژل شو.

خوشحال د پښتني غمرازي په نیامت د ۱۰۸۵ هـ ق کال د درېمې میاشتې په ۱۵ مه نېټه د تاتارخان فاتحې ته ولاړ.

په همدې کال خوشحال د مغلو پر ضد د خلکو د پارولو، دلښکرو د تولولو لپاره د ډېرې دورې وکړې. د ۱۰۸٦ هـ ق کال د پنځمې میاشتې په لومړۍ نېټه پرسول ته

ولاړ او له برموله د ۱۰۸٦ هـ ق کال د پنځمې میاشتې په نهمه نېټه سوات ته روان شو. مندروته ورغی په همدې کال یې په شهباز ګړهۍ کې مغلو ته ماتې ورکړه او بیا یې په غله ډېر کې ګوجر ووهل. بیا دنګډنګ ته ورغی او د ۱۰۸٦ هـ ق کال په دوولسمه میاشت یې د ګنبت په جنګ کې برخه واخیسته. په دې جنګ کې بنګښو د مغلو په طرفدارۍ خټکوته ماتې ورکړه، خوشحال او د ده زوی عبدالقادر خان هم په دې جنګ کې ټپي شول.

په ۱۰۸۸ هـ ق کال کې یې په پېښور کې له شاه عالم سره ملاقات وکړ. په همدې کال یې په خیبر کې له امیر خان سره ولیدل. د ۱۰۹۱ هـ ق کال د اوومې میاشتې په دریمه نېټه یې پر بنګښو حملې وکړې او د دوی درې کلاوې یې ووهلې اوپه دې توګه یې د ګنبت د جنګ انتقام له دوی څخه واخیست، د دوډې په جنګ کې یې د مغلو طرفدار بنګښ مات کړل.

د ۱۰۹۲ هـ ق کال د پنځمې میاشتې په پنځمه نېټه یې د هجري پر ځای بهرام د ختکو خان مقرر کړ.

خوشحال په ۱۰۹۸ هـ ق کال دنبره نومي ځای ته هجرت وکړ او بلاخره د ۱۱۰۰ هـ ق کال د څلورمې میاشتې په ۲۸ مه نېټه وفات شو. د ده مړی یې له اپریدو نه راوړو او له سرای اکوړي نه څو میله لیرې یې د ایسوړ و په مقام کې خاورو ته وسپاره.

د خوشحال ختك ترېند وروستی ژوند که سری په اجمالي ډول تر نظره تېر کړي، نو ښکاري چې ده خپل ژوند دخپلو دغو لاندې بیتونو له روحیې سره سم عیار کړی و او له ډېرو کورنیو، قبیلو ي او سیمه ییرو مشکلاتو سره سره ده د دربار دعمالو او د مغلي پوځونو په وړاندې مارزه کوله:

| | |
|---|---|
| پس له بنده دی د' عزم | د خوشحال د خاطر جزم |
| یا نیولی مخ مکې تــــه | یا مغلـــــو ســــــره رزم |

د خوشحال ژوند پېښې مو یـه احمالـي دول لـوړې ولیکلـې. د ده د رزمي، اجتماعي او سیاسي ملي ژوند خیني څنکونه رانبکاره شول. خو د ده په ژوند کې اساسي مساله د ده د شخصیت د فرهنګي اړخ ده چې په دې ادبي تاریخ کې مورد د ده د ژوند او شخصیت له لورو یادو شویو اړخو سره یه څنګ کې د ده پر فرهنګي شخصیت په لاندې دول بحث کوو.

څنګه چې مو لوره اشاره ورته وکړه. خوشحال ختك نه یوازې د خپل زمان یواجتماعي، سیاسي شخصت او بریالی سالار و. بلکې دی د پښتو ژبې یو داسې شاعر او لیکوال و، که وړایو د پښتو ادب تاریخ د ده له نامه او آثارو پرته نیمګری دی، نو

دابه کومه د مبالغې خبره نه وي. خوشحال لا د شلو کالو نوی زلمی و، چې په شعر ویلو یې پیل وکړ. ده چې کوم وخت شاعري پیل کړه، نو دپښتنو غوریانو او سوریانو د ادبي جریان خاطرې د پښتونخوا په دې پېڅه کې د چا په حافظو کې نه وې پاتې او د پښتنو په فرهنګي او دیني، عرفاني حلقو کې د روښانیانو، د حضرت اخوند دروېزه(رح) د پلویانو او نورو عارفانو او مذهبي شاعرانو نظمونو رواج درلود. خوشحال دغه روان جریان ته په انتقادي نظر وکتل.د دغه جریان پیروي یې ونه کړه، بلکې دخپل عالي استعداد او سالمې شعري قریحې او لوی علمیت په مرسته یې په پښتو ادبیاتو کې داسې لاره پرانیستله، چې هغه د ده خپله ابتکاري ادبي لاره وه او تر ده وروسته که چا پردې لاره یون کړی دی، نو هغه ګرده د ده پیروان دي. ده په خپله یوه قصیده کې د خپلې زمانې ادبي آثار په دې ډول نقد کړل:

په پښتو شعر چې ما علم بلند کړ
د خبرو ملک مې فتح په سمند کړ
مدعي د تورې شپې اورا ورکې و
د سهیل غونډې مې ځان باندې ځرګند کړ
د میرزا دیوان مې ومانده په ګوډې
مسخره مې ارزانې خیشکې خمند کړ
که دولت و که واصل و که دانور وو
په خبرو مې دهر یوه ریشخند کړ
قتلمې مې ورته سازې کړې د قندو
دا وربشو په ډوډیو چې یې شخوند کړ



په تازه تازه مضمون د پښتو شعر
په معنا مې د شیراز او د خجند کړ

خوشحال خان خټک، لکه څنګه چې یې ویلي دي، پښتو ژبې او ادب ته په نظم او نثر کې هغه څه ورکړل چې تر ده د مخه او وروسته یې بنایې ساری مور په ندرت سره بیا مومو.

ده د خپل هنر او خپلې ژبې د لفظي او معنوي بډایتوب لپاره د ګاونډیو ژبو له ادبي زمینو څخه پوره استفاده وکړه. پښتو شعر یې د شکل او شعري ژانرونو له پلوه بډای کړ او په موضوعي لحاظ یې داسې څه پرې نه ښوول چې ده دې پکې شعر نه وي ویلی. ده پښتو شعر د مضمون په لحاظ خورا غني کړ او په پښتو شعر کې تر ده د مخه بیان شوو موضوعاتو تر څنګه ډېر نوي او رنګارنګ موضوعات راوړل.

ده په نظم او نثر دواړو کې آثار ایجاد او ولیکل او ده دغه لاندې بیت وکوږ:

که د نظم که د نثر کړه دخط دی په پښتو ژبه مې حق دی بې حسابه

زمونږ د ادعا د ثبوت له پاره ښه دلیل کیدای شي. د خوشحال د شعر زیاته برخه د خپلو لوړو فکري ارزښتونو تر څنګه هنري مایه هم لري او د تخیل او ابداع ځینې بې جوړې نمونې بې وړاندې کړې دي.

د خوشحال په غزلو کې د هنر او ښکلا په معیارونو پوره غزلې خورا زیاتې دي او ځینې غزلې یې دومره ښکلې راغلې دي، چې دخپلو انځورونو او لوړو خیالونو له امله د سیمې له ډېرو پرمختللو ادبیاتو سره، پښتو ادبیات پرې دسیالۍ جوګه کیږي. د خوشحال له ښکلو غزلو څخه د یوې غزلې څو بیته:

تــوره چــې تېــرېږي خــو ګــوزار لــره کنــه
زلفې چې ولـول شـي خـو خپـل یـار لـره کنـه
ولـې راتـه وایـې چـې پـه ښکلـو نظـر مـه کړه
سترګې چـې پیـدا دي خــو دیـدار لـره کنـه
شیخ دې لمونځ روژه کا زه به ډکې پیالې اخلم
هـر سړی پیـدا دی خپـل خپـل کـار لـره کنـه
مې شته چنګ ونی شته دخپل یار سره خوشحاله
خپـل بیـاض پـه لاس کـې څـه ګلـزار لـره کنـه

د خوشحال هنر او شعر د ده د سیاسي، اجتماعي ژوند له بېلابېلو پړاوونوسره په ارتباط کې وده کوي او دده له موقف سره متناسب بېلابېل رنګ اخلي.

تر بند د مخه د خوشحال بابا آثار یو ډول تمایلات لري او تر بند وروسته یې شعر او هنر بل رنګ اخلي او هغه د پوهاند دوکتور حبیب الله تږي په وینا: هغه حادثه چې د خوشحال ژوند په دوو څرګند و متمایزو برخو وېشي او له همدې امله باید د ده په حیات کې د انعطاف نقطه وبللی شي هغه د ده اسرار آمېزه ګرفتاري او د حبس حادثه ده.

محققانو د خوشحال د آثارو شمېره ډېره زیاته ښوولې ده، خو هغه آثار چې معلوم دي په لاندې ډول ښوول کیږي:

(۱) کلیات: د خوشحال خټك له آثارو څخه ډېر مشهور اثر د ده کلیات دی، چې د ده د خپلې وینا له مخې یې په ۱۰۹۵ هـ ق کال کې د بیتونو شمېره تر څلوېښتو زرو او ښتله، خوشحال ویلې دي:

د دیوان که مې بیت بیت سره حساب کړې
تـر څلویښت زره به تېر شـي پـه داکــال

څنګه چې خوشحال تر ۱۱۰۰ هـ ق کال پورې ژوندی و، نو ضرور بـه د ده د اشعارو دبیتونو شمېر نور هم زیات شوی وي او د استاد کامل په وینا د ده د کلیات د اشعارو شمېر سرې د ۴۰ ـ ۴۵ زرو بیتونو تر منځ ګڼلای شي. د ده په کلیات کې، قصیدې، غزلې، رباعي، قطعې، مخمس، مسدس، معشر، ترکیب بند، ترجیع بند، مثنوي، ترکیب بند ذوالقافیتین او نور پیدا کولای شو.

په دې کلیات کې عشقي، دیني، اجتماعي، سیاسي، فلسفي، علمي، عرفاني، تربیوي، انتقادي، تاریخي، واقعاتي رویدادونه او نور ګڼ مضامین پیدا کېږي. دده کلیات د ده د فکر او هنر هینداره ده، د خوشحال کلیات تر اووه خلو زیات چاپ شوي دي.

(۲) فراقنامه: د خوشحال په آثارو کې د ډېر ارزښت ور کتاب د ده فراقنامه ده، چې په ۱۰۷۵ هـ ق کال یې درنتهبور په کوټ کې له وطنه لیرې د قید و بند په حال کې نظم کړې ده.

په فراقنامه کې غزلې، قصیده، قطعې، رباعي، فردونه شته او ډېره برخه یې د مثنوي په شعري قالب کې نظم شوې ده. د موضوع په لحاظ په دې کتاب کې ګڼ اجتماعي، انتقادي، رندانه، عارفانه، د وطن دوستی، اخلاقي مضمونونه، دهغه زمان سیاسي مسایل او نورې خبرې بیان شوې دي.

د فراقنامې انتقادي اړخونه، چې د وخت سیاسي پېښو ته کره کتنه کوي، د ډېر اهمیت ور دي، خوشحال په دې کتاب کې دوخت پـر پاچـا اورنګزېب دا ډول انتقادونه کړي دي:

پـلار تـړلـی پـادشاهـي کـــا — ســـل ناحقــه ګمراهـــي کـــا
د دا دخـــواهـــو زرآهـــونـــــه — لـــور پـــه لـــور اوجـاړ ملکونـــه
سکــــه ورونـــه قتــــل کـــړي — ده یـــې مـــال ګنجونـــه وړي
د سکـه وراره عـــــور تـــــه — پـــــه ستـــم کـــړه فضیحتـــه
زر نـــاســـازې زر فســـاده — دم وهــــه لـــــه عـــــدل داده
پــه دا هـــومــره قبـاحـــت — دم وهــــه لــــه شریعـــــت
پــه داهـــومـــره رســوایـــی — دم وهــــه لــــه پارسایـــی
الحـــذر لـــه دې زمـــان — الامـــان لـــه دې سلطـــان
دا بـــادشـــاه نـــه دی بلادی — چـــې راغلـــی پـــه دنیـــا دی

د خوشحال د قیداو بند د دورې ټول شعرونه د خاص سوز لرونکي دي او د

شاعر رواني حالت، له وطنه او خپلو خلکو دلیرۍ والي دردونه ټول په دې شعرونو اغېزه لري.

دلته باید دا خبره هېره نه کړو، چې د خوشحال دقید او بند د دورې ټول شعرونه په دې کتاب کې نه دي راغلي، د قید او بند د زمان ډېر نور شعرونه يې په کلیات او نورو آثارو کې هم شته، فراقنامه په کابل او پېښور کې چاپ شوې ده.

(۳) دستار نامه: د خوشحال په آثاروکې بل ډېرمهم اثر دده دستار نامه ده. د پروفیسور محمد نواز خان طایر د يو بیان مطابق دستار نامه د شرق د کلاسیکو آثارو د دری څلورو ډېرو مشهورو کتابونو په قطار کې د درېدو حق لري. دستارنامه هم خوشحال خان په ۱۰۷۶ ه ق کال درنتهبور په کوټ کې تالیف کړې ده.

دستار نامه دوه بابه لري چې په يو باب کې يې شل هنره او په بل کې يې شل خصلته ښوولي دي. د خوشحال په نظر دا هغه هنرونه او خصلتونه دي، چې د يوه ملي مشر لپاره لازمي شرایط ګڼل کېږي.

د خوشحال دستار نامه په پښتو نثر لیکل شوې ده، ځای ځای يې د خوشحال خپل او د نورو شرقي شاعرانو پارسي شعرونه هم د خپلې ادعا د ثبوت د پاره پکې راوړي دي.

د خوشحال د جهانداری نظریه او د ښوونې او روزنې اصول او نور ډېر مهم د اجتماعي، فلسفي ارزښتونو لرونکي مسایل پکې بیان شوي دي. دستار نامه هم په کابل او پېښور کې چاپ شوې ده.

(٤) منظومه بازنامه: د بازونو او ځینو نورو ښکاري مرغانو د ساتنې، تداوی او پر هغو دښکار او نور دې ته ورته مسایل يې په دې اثر کې بیان کړي دي. دا کتاب خوشحال خټك په ۱۰۸۵ ه ق کال په رستم نومي ځای کې نظم کړی دی. بازنامه يې د پښتو مثنوي په قالب کې ویلې ده، خو د ده ځینې غزلې هم ورسره ملې دي. باز نامه په کابل او پېښور کې چاپ شوې ده.

(٥) پارسي منثوره بازنامه: خوشحال د باز او باز داری او په مجموع کې د ښکار ډېر شوق درلود.

له همدې امله ده د پښتومنظومې باز نامې تر څنګه پارسي بازنامه هم لیکلې ده. دا بازنامه په پارسي نثر ده، د خوشحال د پارسي بازنامې يوه خطي نسخه په کابل کې کشف شوه. د خوشحال پارسي بازنامه دهمدې نسخې له مخې په کابل کې چاپ شوې ده.

(٦) فالنامه: دخوشحال دا منظومه رساله تر وروستیو کلونو پورې خانګړې نه وه چاپ شوې اود خوشحال له نورو آثارو سره ګډه راغلې وه. ښاغلي حبیب الله رفیع دا رساله د خوشحال له آثارو رابېله کړه او په مستقل ډول يې چاپ ته آماده کړه، چې

په وروستيو کلو کې په پېښور کې چاپ شوې ده. په دې منظومه رساله کې د فالونو اوفال ايستلو خبرې راغلې دي.

(۷) فضل نامه: خوشحال خټك دا مثنوي په ۱۰۸۹ هـ ق کال کې بشپړه کړې ده. د استاد کامل مومند په عقيده ددې کتاب له ليکلو د خوشحال مقصد دا دی، چې يو طالب العلم په آسانۍ سره ضروري ديني او فقهي مسايل او احکام زده کړي. په دې کتاب کې ډېر زيات ديني او فقهي مسايل په ډېره اسانه او قريب الفهم طريقه بيان شوي دي، فضل نامه په پېښور کې چاپ شوې ده.

(۸) طب نامه: دا هم د خوشحال يو منظوم اثر دی، چې د زاړه طب له اساساتو سره سم يې د ځينو ناروغيو د علاج مسايل پکې بيان کړي دي. د دې منظومې ځينې نظمونه د خوشحال په کليات کې هم شته، طب نامه په کابل او پېښور کې چاپ شوې ده.

(۹) بياض: خوشحال خټك د ا اثر په پښتو نثر کښلی دی، خپل او د خپلې کورنۍ ځينې حالات يې پکې بيان کړي دي، دا اثر تاريخي ارزښت لري. د خوشحال بياض په مستقل ډول نه ليدل شوی او نه چاپ شوی دی. مګر دهغه لمسي افضل خان د بياض مضامين په تاريخ مرصع کې راوړي دي.

(۱۰) ځنځيری: د پښتو ليك دود دا شېوه خوشحال خان ايجاد کړې ده. په وروستيو کلونو کې د خوشحال ځنځيرې ليکدود، ښاغلی حبيب الله رفيع له ډېرو تشريحاتو سره رابرسېره کړ او په کابل او پېښور کې د ځانګړي اثر په توګه چاپ شو.

(۱۱) سواتنامه: د خوشحال خان په دې اثر کې د سوات او د سوات دسفر حالات راغلي دي. خوشحال دا کتاب د مثنوي په قالب کې نظم کړی دی. په سواتنامه کې جغرافي، سياسي، اقتصادي، کلتوري، انتقادي او ادبي مسايل بيان شوي دي. کانديد اکاډميسين محمد صديق روهي د خوشحال سواتنامه د اجتماعي اصلاحاتو هينداره بللې ده او مرحوم استاد دوست محمد خان کامل مومند ويلي دي چې د افکارو، مضامينو، ژبې او د بيان د انداز له پلوه سواتنامه د خوشحال د لوړې پايې ادبي اثر دی او د خوشحال له بهترينو آثارو څخه ګڼل کېږي.

سواتنامه په پېښور او کابل کې څلور ځله چاپ شوې ده.

(۱۲) پارسي ديوان: د خوشحال د آثارو په خطي او چاپي نسخو کې د ده ځينې پارسي قصيدې، غزلې او نور اشعار هم راغلي دي، چې دا ګرده اشعار که سره راټول شي، نو د ده د پارسي اشعارو ديوان ځنې جوړېږي. د خوشحال د پارسي اشعارو يوه غټه برخه مرحوم سيد رسول رسا په ارمغان خوشحال کې چاپ کړې ده. په دغو لړو يادو شويو دوولسو کتابونو سربېره محققانو دخوشحال په آثارو کې فرخنامه، آئينه، هدايه او نور هم ياد کړي دي. خو دا کتابونه تر اوسه نه دي ليدل

شوي. ددغو نه لیدل شویو کتابونو ترڅنګه محققانو ځینې نور آثار کشف کړي، چې خوشحال ته یې د تاءلیف اوترجمې نسبت شوی دی. ځینو بیا دغه نسبت ته د شك په سترګو کتلي دي، خوشحال ته منسوب آثار دادي:

(۱) اخلاقنامه: اخلاقنامه د اخلاق محسني آزاده او منظومه پښتوترجمه ده، چې لومړي اووه لس بابه یې یو سړي او درې وروستي بابونه یې بل چا ترجمه اونظم کړي دي د لومړیو اووه لسو بابونو په باب د ځینو محققانو دا رایه ده، چې د دې بابونو ناظم او مترجم به خوشحال خان خټك وي او پاتې درې نور بابونه به د ده کوم زوی بشپړ کړي وي. ځینې نور محققان بیا دا نظریه ردوي، داخلاقنامې په باب نور ډېر تحقیق ته ضرورت دی. آینده څېړنې به خبره سپینه کړي، چې د اخلاقنامې لومړنې اووه لس بابه د خوشحال خان دي او که نه دي؟

دخوشحال خان بابا د موجودو آثارو مطالعه رانبیي، چې دی د پښتو ژبې په ډېرو سترو او لویو شاعرانو کې شامل سړی دی. پښتو ادب د ده د فرهنګي او ادبي هڅو مرهون دی.د ده آثار نه یوازې د کمیت په لحاظ د یادونې او منلو ور دي، بلکې په کیفي لحاظ هم د خوشحال د آثارو کیفیت ډېر لوړ دی او هم یې هنري معیار د منطقي د ژبو د لوړو ادبي آثارو په سطح کې واقع دی. ناروېژې پښتو پوه پروفیسر مورګنستیرن پر ځای ویلي وو چې د خوشحال په آثارو کې د فکر ژور والی، د لفظي ترکیبونو باریکي او شاعرانه ادا دومره اوچته ده، چې د فارسي په شاعرانو کې ورسره هېڅوك نشي مساوي کېدای.

خوشحال د پښتو تر څنګه په پارسي ژبه هم نظم و نثر لیکلي دي، په پارسي اشعارو کې یې یوه قصیده دومره اوچته ده، چې د دوکتور روان فرهادي په وینا د خسرو، جامي، نوايي او نورو له هماغه ډول پارسي قصیدو سره په یوه ردیف کې د درېدو حق لري.

خوشحال د خپلو پښتو منظومو اومنثورو آثارو د تالیف په برخه کې د خپلې زمانې د مسلط ادبي جریان تر اغېزې لاندې رانغی، بلکې د خپل لوړ هنري او فکري استعداد په زور یې یوه نوې لاره غوره کړه، چې نه د ده د زمانې روښاني اثار او نه هم د نورو عرفاوو او نورو شاعرانو آثار دغسې خصوصیات لري. د خوشحال د شعر او لیك سبك، ته استاد پوهاند حبیبي ځینې خصوصیات ټاکلي دي، چې لنډیز یې له تغییر او اضافاتو سره دلته وړاندې کېږي:

(۱) په دې سبك کې د پښتو شعر ډېر ارت شو، د شرقي شاعرۍ تقریباً ټولو اقسامو د دې سبك دمؤسس او د دې سبك د پیروانو په اشعارو کې وده ومونده.

(۲) د مضمون تنوع د دې سبك یواساسي رکن دی، د دې سبك تر اغېزې لاندې په ایجاد شوو آثارو کې: رندانه، صوفیانه، اخلاقي، فلسفي، فکاهي، هجو،

مدح، رثا او نور موضوعات شته، د ملي عواطفو او مزاياو تلقین هم لري.

(۳) د دې سبك یوه عمده ځانګړنه داده، چې پښتني روحیه، پښتني احساسات او د پښتو خپل کره وره پکې بیان شوي دي او د پښتنو د رزمي روحیې ممثل اشعار په دې سبك کې خورا زیات دي.

(٤) د دې سبك تابع قصاید اکثره دېر اورده تاریخي او اقتصادي مضامین رانغاړي.

(٥) اجتماعي نقد د دغه سبك یو بارز خصوصیت دی، د دې سبك په ځینو اشعارو کې جامعه، خلك، مسلط اجتماعي سیاسي نظام او فرهنګي جریان په خورا صریحو الفاظو کې نقد شوي دي.

(٦) دتخیل، نزاکت اوانځور جوړوني له نظره دا سبك ځینې ابتکاري خصوصیات لري، او مور ځینې نادر تخیلات د دې سبك په اشعارو کې مومو، چې د نړۍ له ادبي آثارو سره په دې برخه کې سیالي کولای شي.

(۷) خوشحال او د ده د سبك ځینې نور پیروان د شعر تر څنګه نثر هم لیکي. د دوی د نثر لیکنې شیوه هم خپلې خاصې ځانګړنې لري او د خوشحال بابا په دوران کې د مسجع لیکنې له مسلط جریان څخه بېلوالی ښیي. د دغه سبك نثرونه زیاتره تاریخي، فلسفي، اخلاقي او روزنیز رنګ لري، دباز داری او ښکار مسایل هم دوی بیان کړي دي، ادبي ارزښتونه په زیاترو دغو نثرونو کې نشته.

(۸) د دغه سبك په منظومو او منثورو ځینو آثارو کې یو ارمان او یو هدف نغښتی دی او شاعران خپلې جامعې او خلکو ته یو پیغام لري او زیاتره د جامعې له احوالو شرایطو سره په ارتباط کې د آثارو ایجاد او تالیف ته هڅه کوي.

خوشحال خټك د دغو لورو خصوصیاتو لرونکي ادبي سبك مؤسس دی. چې د ده د کورنۍ ځینو شاعرانو د دغه سبك پیروي وکړه او د پښتو ژبې ځینو نورو شاعرانو هم د خوشحال په غوره کړې لاره قدمونه کېښوول.

اوس به مور لومړی د ده د کورنۍ پر ځینو شاعرانو او بیا به د دغه سبك په پیروانو، نورو شاعرانو بحث وکړو.

## د خوشحال د کورنۍ شاعران:

د پښتو د ادبي آثارو مطالعه را څرګندوي، چې د یوولسمې هجري پېړۍ نه واخله ان تر اوسه پورې د خوشحال خټك په کورنۍ کې د پښتو شعرو شاعرۍ او پښتو لیکوالۍ هنګامه توده ده. په لسګونو شاعران او لیکوال په دې کورنۍ کې پیدا

شوي او لوی شوي دي او په لسګونو منظوم او منثور آثار يې خپل اولس ته وړاندې کړي دي او د پښتني فرهنګ په بډايتوب کې يې خورا زياته برخه اخيستې ده.
په دې ځای کې موږ د خوشحال د کورنۍ پر تولو ليکوالو او شاعرانو خبرې نه کوو، بلکې يوازې هغه شاعران ښيو چې په نظم او نثر ليکلو کې يې د خپل پلار پيروي کړې ده. خو مخکې تر دې چې د خوشحال په زامنو، لمسيو او کړوسيو کې د ده د سبك پيروان وښيم، لازمه بولم چې لومړی د خوشحال په دانشمند ورور جميل بېګ هم څو خبرې وکړم. د ده ډېر لږ پښتو منظومات زموږ په واك کې دي. موږ د دغو منظوماتو له مخې دی د خوشحال د سبك په پيروانو کې نه شو درولای، ځکه په فکري لحاظ هم د دواړو تر منځ ډېر واټن موجود دی او د شعرونو د شکلي جوړښتونو له پلوه هم. خو د دې کورنۍ د يوه ښځواني فرهنګي شخصيت په توګه د دې بحث په پيل کې خبرې ورباندې کوو:
د جميل بېګ نوم د پښتو په ادبي تاريخونو او ځينو ادبي څېړنو کې جمال خان، جمال الدين خان او جمال بېګ ياد شوی دی چې دا نومونه کرده سم نه دي. دده نوم جميل بېګ دی، لکه چې خوشال خان په خپل بياض کې ليکلي دي: «يو د ما ورور شيخ جليل القدر جميل بېګ دی.» د خوشحال لمسی افضل خان ختك په تاريخ مرصع کې راوړي دي: « ميا جميل زوی د شهباز خان» عبدالقادر خان ختك د ګلدستې په مقدمه کې ويلي دي:

په خلفا ووکې يې مست فقير جميل و
صاحب حال و مستانه يې قال وقيل و
ابراهيم غوندې خاني ميري يې پرېښوه
په اختيار يې فقيري ته غاړه کښېښوه

د جميل بېګ د مناقبو ناظم شمس الدين ويلي دي:

هغه وخت چې سرداران وو — د ختکو اميران وو
جميل خان او خوشحال خان وو — دواړه زويه دشهباز خان وو

له لوړو اسنادو څخه ښکاري چې د ده نوم جميل بېګ و، چې په ميا جميل، شيخ جميل او فقير جميل يې هم شهرت درلود.
د دوکتور راج ولي شاه ختك د څېړنو مطابق جميل بېګ د شهباز خان ختك دوهم زوی و. د زېږېدو تاريخ يې ۱۰۲۴ هـ ق کال ښوول شوی دی.
په يوه روايت کې راغلي دي، چې شهباز خان ختك د خپلو اولادونو د درس اوتعليم له پاره شاه اويس ملتاني استخدام کړی و. نو له احتمال نه ليرې نه ده، چې جميل بېګ به سواد او د علومو مبادي له همدغه شاه اويس څخه زده کړې وي.
جميل بېګ د ځوانۍ په لومړنيو کلونو کې د پلار د سرداری په چارو کې

معروف و. کله چې په ۱۰۵۰ هـ ق کال د ده د پلار تر مشرۍ لاندې د ختکو لښکرو په اکازو منډرو حمله وکړه. جمیل بېګ هم له خپل پلار او ورور سره په دې جګړه کې شامل و، په دې جګړه کې دی هم زخمي شو. خو چې صحت یې ښه شو، د خپل ورور خوشحال په ملتیایې د خپل پلار انتقام واخیست. اما تر دې وروسته یې فقیري غوره کړه، خپل ټول مال او شته یې فقیرانو ته ووېشل او له خپلې خېلخانې سره د چشمې درې ته ولاړ.

جمیل بېګ د حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب ختک (رح) (۱۰۶۳ هـ ق مړ) په خاصو مریدانو کې شامل سړی و او کاکا صاحب خاصه توجه ورته درلوده. د کاکا صاحب د خاصو توجهاتو نتیجه وه، چې شیخ جمیل بېګ د عرفان له لارې د کمال درجې ته ورسېد او د سلوك له رموزو آګاه شو.

د عبدالحلیم اثر د تحقیق مطابق ده له چشتیه طریقې سره نسبت درلود او ډېر کسان په دې طریقه کې د ده مریدان وو.

په تاریخ مرصع کې راغلي دي، چې جمیل بېګ به د مستۍ په وخت کې له دریا او دف سره سندرې بللې او سماع به یې کاوه.

جمیل بېګ چې د شور او مستۍ او جذبې په حال کې کومې پښتو ټوټې ویلې دي، څینې یې په تحفة الاولیا کې ضبط شوې دي، یوه ټوټه یې دا ده:

تیك دې وي چارګل دې وي      پېزوان که نه وي نه دې وي

جـلال دې وي تل دې اوسي

علی خان که نه وي نه دې وي

له جمیل بېګ څخه په پښتو کې دغسې څو ټوټې پاتې دي، مګر په پارسي کې یې څینې ډېر مهم آثار لیکلي دي. د ده په پارسي آثارو کې مهم کتاب مناقب شیخ رحمکار ختك دی، چې پارسي متن یې دوکتور اسدالله شعور چاپ ته آماده کړیدی او د کابل پوهنتون له خوا چاپ شوی دی.

دده پارسي آثار د پښتنو فرهنګ له اسلامي فرهنګه سره ډېر نژدې کوي او د اسلامي فرهنګ په څېړنه، تفسیر او تشریح کې یې ارزښتونه خورا لوړ دي.

جمیل بیګ ختك دخپل عمر تر شپېتو زیات کلونه په روحاني مجاهده او خدای‌ته د نژدې کېدو په لاره کې تېر کړل او بالاخره په ۱۱۱٦هـ ق پېښور ته د تګ په لار کې د څینو بدنیتو له خوا شهید کړی شو او د تنګاړ و درګۍ تر منځ دره کې خاورو ته وسپارل شو. زیارت یې اوس هم هلته مشهور دی او زیارت ته د ورڅېرمه کلي خلك چې څان ته فقیر خیل وایي ټول څان د فقیر جمیل بیګ اولاده بولي.

تر جمیل بیګ وروسته په دې کورنۍ کې چې د بل چا نوم تر نورو دمخه مخې ته راځي، هغه د خوشحال خان ختك مشره مېرمن ده.

هانري جارج راورټي (۱۸۲۵ ـ ۱۹۰٦) د خپل پښتو ګرامر په مقدمه کې ویلي دي، چې د خوشحال خان مېرمن د اشرفخان مور هم شاعره وه او همدغه راورټي په خپل بل کتاب د پښتو اشعارو منتخبات کې هم دا خبره کړې ده او مولوي نورمحمد افغان په تحفة الامیر کې د همدې شاعرې یوه غزله راوړې ده. استاد رښتین په خپله یوه مقاله کې د نور محمد افغان نوري په حواله د اشرف د مور د شاعرۍ خبره کړې ده.

د اشرف خان د مور د نامه په باب استاد رشاد د (ګلشن روه) ددریم چاپ د مقدمې په یو ځای کې لیکلي دي چې د اشرف مور مرجانۍ نومېده، د الف خان لور وه او نیکه یې ملك سرور نومېده؛ سینۍ خټکه وه. له خوشحال بابا سره یې په ۱۰٤۰هـ ق کال واده کړی دی او په ۱۰۸۰هـ ق کال مړه شوې ده.

اما ځینو نورو منابعو په خاص ډول په خوشحالنامه کې سرفراز خان عقاب خټك د خوشحال دمشرې مېرمنې نوم (توتیا) ضبط کړی دی او دا یې هم ویلي دي چې د خوشحال خان ټول مشران زامن له توتیا نه پیدا شوي دي.

دنوموړي عقاب د تحقیق مطابق د خوشحال په کلیات کې یوه قطعه، دوې غزلې او یوه قصیده د همدې توتیا دي. په نورو منابعو کې دا لاندې غزله هم د توتیا په نامه ثبت شوې ده:

نـور بــه مــخ پــه آئینــه برابــر نــه کړم
نـه بـه دواړې سترګې تـورې پـه رانجـه کړم
نـه بـه سپیـن لاسونـه سـره کړم پـه نکریـزو
نـه بـه لانـدې بانـدې لـب پـه پانـو سـره کړم
چې د مینې یـار مې نشتـه چې یـې ګـورې
د صــورت سینګــار وکــوم یــوه تــه وکړم
درست صورت مې سرې لمبې شي شنې ددوزې
چــې د خپــل میــن دمینــې زار تــر زړه کړم
که ژونـدون تر هرڅـه خـوږ دی په جهان کې
اوس بې یاره په ما تریخ شي زه یې څـه کړم
هغه یار مې چرتـه دی خوشحـال دې اوسـي
دی دې خپلـه خوشحالـي، کـا غـم بـه زه کړم

یو روایت داسې موجود دی چې د خوشحال مشرې مېرمنې دا اشعار هغه وخت ویلي دي چې خان په هندوستان کې بندي و او دې دا اشعار هند ته وراستول.

ددې نوم، لکه چې لوړ تاسې ولوستل مرجانۍ او توتیا راغلی دی. خوشحال

خپله هم د اشرف د مور نوم مرجانی ښوولی دی. کېدای شي دواړه نومه دې د همدې وي؟ په هر صورت دا خبره اوس واضح ده، چې د خوشحال مشره مېرمن د اشرف خان هجري مور شاعره وه. د ادبپوهانو په عقیده د دې اشعار ساده او آسانه دي، شاعرانه کشش لري خو هغه بلاغت او زور چې د خان خوشحال خان په اشعارو کې شته، د دې شعر هومره بلیغ نه دی.

د خوشحال د ورور او مېرمنې پر منظوماتو له لوړ اجمالي بحث نه وروسته راځو د ده د کورنۍ نورو شاعرانو ته. په نورو د خوشحال پیرو شاعرانوکې مونږ دا بحث د ده د فرهنګیالو زامنو پر ژوند او آثارو پیل کوو:

د هر شاعر او لیکوال ژوی‌احوال او آثار یې دلته ښیو؛ لومړی د خان پر هغو زامنو بحث کوو چې منظم آثار یې لیکلي دي، ورپسې به د ده د هغو شاعرانوزامنو په باب خبرې وکړو، چې منظم آثار یې زموږ په واک کې نشته، بلکې متفرق آثار یې ترلاسه شوي دي.

د خوشحال په زامنو کې د ده دوهم او بیا مشر زوی اشرف خان دی. دوهم او مشر مو ځکه ورته وویل چې د خوشحال لومړنی زوی اکبر خان نومېده، چې تر زوکړې وروسته اووه ورځې ژوندی و او بیا مړ شو. نو ځکه مونږ اشرف خان ته د خوشحال مشر زوی‌وایو.

اشرف خان د خوشحال دمشرې مېرمنې مرجانې له نسه په ۱۰۴٤ هـ ق کال د رمضان المبارك په اوومه نېټه د پسرلي په موسم کې زېږېدلی دی. د خپلې فرهنګې کورنۍ په غېږ کې لوی شو او د دغې کورنۍ له فرهنګي پشتوانې نه په استفادې سره یې خپلې زده کړې وکړې اود خپلې کورنۍ د سرداری په کیر و دار کې د خانۍ او سرداری له رواجونو سره هم بلد شو او د خپل قبیلوي هویت او خانۍ د ساتنې له پاره یې د جنګ چارې هم زده کړې او د عمر په دوولسم کال یې د تري بولاقو په جنګ کې برخه واخیسته او له دې وخته وروسته ان تر هغه وخته چې بندي کېږي، په ځینو نورو ډېرو جنګونو کې یې برخه اخیستې ده.

اشرف خان د خپل پلار تر نیول کېدو وروسته (۱۰۷٤هـ ق) د خپلې قبیلې مشر شو. په همدې کال اشرف خان د خپل پلار د خلاصېدو لپاره کابل ته ورغی او هلته سید میرخوافي دی بندي کړ، خود دلبرهمت خان په ضمانت له زندانه خوشې شو؛ د پلار تر خوشې کېدو وروسته په ۱۰۸۵ هـ ق کال پلار بیا خپله خانې او سرداري ده ته وسپارله. د خپلې دغې سرداری په دوران کې یې له خپل ورور بهرام سره هم جنګونه وشول او د مغلو حکمران مهابت ته یې ضمانت ورکړ، چې خپل پلار خوشحال خان به د خپلې خانۍ په سیمه کې نه پرېږدي. خوشحال بابا د هجري په دې وضع خوابدی شو او د دوی ترمنځ مناسبات خراب او حتی د جنګي کارروایـو

سبب شول.

اشرف خان د مغلي حکامو په اشاره او د ده د ورور بهرام او الله داد خان خيشکي په مصلحت په ۱۰۹۲ هـ ق کال په پېښور کې د سيد پهولا په کور کې ونيول شو او بندي هندوستان ته بوتلل شو او د منځني هندوستان د ګواليار په کوټ کې يې بندي کړ او په ۱۰۹۷ هـ ق کال چې اورنګزيب د بيجا پور قلعه ونيوله، دی يې له نورو بنديانو سره بيجاپور ته واستاوه. څه موده يې د کړکې په زندان کې هم تېره کړې ده او کله چې بيجاپور ته ولاړ، نو د ژوند تر پايه په هغه زندان کې پاتې شو او تر دې چې په ۱۱۰۶هـ ق کال په بيجا پور کې مړ شو.

اشرف خان سره له دې چې دختکو د سردار په کور کې پيدا شوی و او خپله هم څو کاله د خپل قوم او د ختکو د خانۍ مشر او سردار و خو د ژوند زياته برخه يې په کشمکش او جنجالونو کې تېره شوې ده، جنګونه يې کړي دي د پردو لپاره يې خپل ټکولي او د حکامو د خوشحالۍ لپاره يې په پلار او ورور هم صرفه نه ده کړې.

خو بالاخره پردو دی هم پرې نښود او بندي يې هندوستان ته بوته او د عمر پاتې څورلس کاله يې په خورا نا اميدۍ دهندوستان په زندانونو کې تېر کړل او هلته مړ شو. د اشرف خان هجري ژوند له دېرش کلنۍ نه وروسته له يو لړ اجتماعي، سياسي ستونزواو پرابلمونو سره مل تېر شوی دی.کله چې يې پلار له زندانه خوشې شو او د مغلو په خلاف يې د پښتنو د يووالي او اتحاد خوا ته هڅې شروع کړې او په خپلو حکيمانه لارښوونو يې د خپل قوم (پښتنو) د بېدارۍ له پاره کار پيل کړ، نو مغلو د دوی په کورنۍ کې د بې اتفاقۍ د پيدا کولو په منظور د اشرف خان ورور بهرام په غېږ کې ونيوه او د دوی په سردارۍ کې د نفاق او کورنيوجنګونو سبب شو اشرف خان هم په دغو کورنيو جنګونو کې ښکېل و او لکه چې په تاريخ مرصع کې راغلي دي. خپل ورور (بهرام) يې د ده په نيولو کې مصلحتي و، د اشرف خان د بندي کېدو په باب ډول ډول نظريات وړاندې شوي دي، خو د يادونې وړ خبرې پکې دادي چې:

۱/ امير خان مغلي صوبه دار د بنګښو پښتنو د ټکولو لپاره د ترين خان مرستې ته اشرف خان هم استولی و. اشرف خان په ابتدا کې له بنګښو سره څه جنګونه وکړل، خو بيايې له دې جګړې لاس وکېښ او په خپله سيمه کې يې آباد کړل. د اشرف خان دغه عمل د امير خان د ناراضۍ سبب شو.

۲/ آزاد خان ګکياني له اميرخان څخه مخ اړولی و، اشرف خان آزاد خان او دده کورنۍ ته پناه ورکره، چې دې کار هم د هجري او امير خان روابط خراب کړل.

۳/ امیرخان چې کله کابل ته روان و، نو یې له اشرف خان څخه وغوښتل، چې دی هم ورسره کابل ته لاړ شي؛ خو اشرف د خپلو مشکلاتو له امله کابل ته ولاړ نه شو.

دهمدغو عواملو له امله صوبه دار امیرخان باچا (اورنګزیب) ته له اشرف خان نه ډېر شکایتونه ولیکل او د تاریخ مرصع د بیان له مخې پاچا صوبه دار ته اختیار ورکړ او هماغه و چې دی یې ونیو.

د اشرف څورلس کاله ژوند په زندان کې تېر شو او دې څورلسو کالو بند، اشرف خان ته د پښتو ادبیاتو په آسمان کې د یوه ځلانده ستوري حیثیت ورکړ.ده د هند په زندانونو کې یوازې د قلم سره سروکار درلود او په دې موده کې یې دومره سوځوونکي اوخوندور اشعار وویل چې د خپلو خاصو ځانګړنو له امله ښایي په پښتو ادب کې ډېر لږ ساری ولري.

ادبپوهان عقیده لري، چې د اشرف خان د دیوان زیاته څه چې توله برخه د هند په زندانو کې بشپړه شوې ده او د زندان وضعې اوپه دې زندان کې د ده روحي حالاتو د ده شعرونو ته خاص او متمایز رنګ ورکړی دی او په پښتو ادب کې تر خپل پلار وروسته اشرف خان یوازینی سړی دی چې حبسیه اشعار یې ویلي دي. ده په خپلو اشعارو کې هجري، روهي ختك او په بې نقطه غزلو کې «اکرم» تخلص راوړی دی او د پښتو ادبیاتو په څېړنو کې دی د اشرف خان هجري په نامه مشهور دی.

له اشرف خان هجري څخه موږ ته یو غټ پښتو دیوان راپاتې دی، چې په دوو دفترونو کې یې تنظیم کړی دی او په دې دیوان کې قصیدې، غزلې، رباعي، قطعې او مخمس پیدا کېږي. د ده پارسي اشعار هم د یو دیوان حیثیت لري، ځینو څېړونکو د ده په آثارو کې د (مکتوباتو) یادونه هم کړې ده.

د موضوع له حیثه ډېر غني دی. بېلابېل اجتماعي، سیاسي، فلسفي، دیني، عشقي او نور مسایل د ده په دیوان کې بیان شوي دي. د خپل پلار په مړینه یې چې کومه قصیده ویلې ده، د پروفیسور محمد نواز خان طایر د وینا له مخې د خپل هنري قوت، د احساساتو د زور او فني ښکلاوو له پلوه د پښتو په ډېرو لوړومرثیو کې حسابېږي.

د کاندید اکادیمیسن محمد صدیق روهي د څېړنو له مخې که څه هم هجري یو غزل سرا شاعر دی، خو د دې ترڅنګه حساس ماغزه هم لري او د ژوند ناخوالو د ده په مغزو کې ځینې پوښتنې پیدا کړې دي او بیا یې دغو پوښتنو ته د ځواب ورکولو له امله ځانته یوه فلسفي تکیه ګاه جوړه کړې ده، چې موږ د دغو ځوابونو مجموعې ته د اشرف خان جهان بیني ویلای شو. له دغو بیاناتو ښکاري چې د هجري شاعري

د یو فکري سیستم تابع ده. د ده شعر د فکري او فني ارزښتونو تر څنګه لوړ هنري معیار هم لري. د استاد الهام د وینا مطابق د ده په شعر کې تکلف او تصنع نشته روانه طبع لري او د ده په شعرونو کې د تخیل او تصویر تول ډولونه شته.

د ده په دیوان کې په نورو ډېرو موضوعاتو سربېره له خپل وطن او خپلې سیمې سره مینه هم خورا متبارزه ده او دده شاعري ته یې خاص رنګ ورنخښلی دی. د ده له لاندې بیتونو څخه له وطن سره د ده مینه او دده مجبوریت ډېر ښه څرګندېږي:

ما هاله ماتم د خان وکړ په وینو
چې اټک وته مې شا کړه په ژړا شوم
اوس به څه د وطن کاڼي بوټي ژاړم
د رخصت سلام مې کړی ترې جلا شوم

یا دا بیتونه:

که نصیب بنده بند کړي په دکن دی
دا منکیر یې همیشه عشق د وطن دی
د زړه باز یې تل دروه په زمکه ګرځي
که هجري په دکن ناست خالي بدن دی

څورلس کلن پرله پسې بند، له وطنه، خپلو خلکو او وطني یارانو بېلتون د ده لوړ همت نه وتیټ کړی او د زندان له پنجرو نه به یې دا چیغې وهلې:

ستا له ستمونو جوړه چاوته فریاد کړم
وله مې په غشو ما همت درته نیولی

د خوشحال په دانشمند و زامنو کې عبدالقادر خان خټک د خورا لوړ نوم او شهرت خاوند سړی دی. د پښتنو په فرهنګي حلقو کې د ده شهرت د خوشحال تر بل هر زوی خورا ډېر دی.

عبدالقادر خان په ۱۰۶۳ هـ ق کال د ذوالحجې د میاشتې په ۲۵مه نېټه زوکړی دی. د مړګ یقیني نېټه یې نه ده څرګنده، خو ژوند یې تر ۱۲۲۶هـ ق کال پورې یقیني دی.

عبدالقادر خټک له خپل پلار خوشحال خان خټک سره په ۱۰۸٤هـ ق کال د نوښار او په ۱۰۸۵هـ ق کال د ګنبت په جنګونو کې شامل و. خوشحال به له مینې (د بابا دل) باله، لکه چې یې ویلي دي:

ښه زوی د بابا دل دی      تل دې ژوي په جهان

عبدالقادر خان خټک دانشمند او عالم سړی و، له عرفان سره یې مینه وه او له تصوفي طریقو څخه یې له نقشبندیه طریقې سره نسبت درلوداو د شیخ سعدي

لاهوري مريد اوخليفه و.

د محمد هوتك د پټې خزانې د روايت له مخې عبدالقادر خان په کابل کې هم ليدل شوی دی. عبدالقادر خان د ژوند په اواخرو کې په نوښار کې اوسېده او دا خکه چې له افضل خان سره يې روابط ښه نه وو. ده په پښتو نظم او نثر آثار ليکلي دي. په منظومو آثارو کې يې د يادونې وړ اثر داشعارو ديوان دی، چې لومړی خل په ۱۳۱۸هـ ق کال مرحوم استاد حبيبي په کندهار کې چاپ کړی دی. په دې ديوان کې غزلې، قصيدې، مثنوي، رباعي، ترکيب بند، ترجيع بند، مخمس او نور شعري انواع پيدا کېږي؛ د ده په ديوان کې اخلاقي، عرفاني، ديني، عشقي، اجتماعي او تاريخي مسايل بيان شويدي. د عبدالقادر خټك په ديوان سربېره د سعدي شيرازي (رح) د مشهور ګلستان ځينې برخې نظم په نظم اونثر په نثر د ګلدستې په نامه په پښتو ترجمه کړيدي او د دې کتاب له ترجمې د ۱۱۲٤هـ ق د روژې په ۲٤مه نېټه فارغ شوی‌دی او د عبدالقادر خان خټك د نثر ليکنې شېوه او د ترجمې قوت ځنې ښکاري. د ده دنثر دا يوه بېلګه د کتو ده: «سلطان سکندر رومي چا وپوښتېد، چې د مشرق او غرب ملکونه دې په څه ونيول؟ تر تا پخوا بادشاهان تېر شوي دي، لښکر، خزانې، عمرونه يې ترتا زيات وو، دا رنګه فتح ورته ميسرنه شوه. سکندر وفرمايل: په مدد د الله تعالی‌هر ملك چې به مې ونيو رعيت مې نه آزاراوه او نوم د پادشاهانو مې يې له نيکی په بدی نه ياداوه...» د عبدالقادر خټك ګلدسته دوه ځله په پېښور کې چاپ شوې ده. دغه راز عبدالقادر خان د جامي (رح) د يوسف زليخا کيسه په ډېره خوږه او زړه وړونکې مثنوي په پښتو ترجمه کړې ده. د ده د يوسف زليخا شهرت په پښتنو کې خورا ډېر دی، حتی په جوماتونو کې په محلي نصاب کې شامله ده او د کليو زده کوونکو ته تدريس کېږي؛ د عبدالقادر يوسف زليخا څو ځله د هند په مطبعو کې چاپ شوې ده.

د حضرت پيغمبر محمد(ص) څلوېښت حديثونه يې په پښتو نظم ترجمه کړي دي. د عبدالقادر څلوېښت حديثو نه تراوسه مستقل نه دي چاپ شوي؛ خطي نسخه يې شته.

(قصيده برده) هم عبدالقادر خان په پښتو نظم ترجمه کړې ده.

عبدالقادر خان يوه نصيحت نامه هم لري، چې د ده له ديوان سره چاپ شوې ده. له دغو آثارو پرته دده نور آثار موږ ته نه دي ښکاره. حال دا چې هانري جارج راورتي د ده د آثارو شمېره شپېته ښوولې ده.

عبدالقادر خان خټك د پښتو د ډېرو ښو او اوچتو شاعرانو په ډله کې ولاړ سړی دی. د ده په اشعارو کې د موضوعي تنوع ترڅنګه هنري ښکلا هم په اعلی حد کې شته، دده اشعار د تصويرونو او عالي تخيلاتو له پلوه ډېر لوړ ارزښتونه لري. دا لاندې

رباعي يې زمونږ د ادعا ښه مثال کېداى شي:

باران وريږي ځخواکـي ځاځي — نسيم راوالووت سنبل پرې ناځي

اسباب د عيش واړه موجود دي — ساقي ته کوروچې دی راپاځي

په يوه روانه مثنوي کې يې د باچاهانو او مشرانو په باب ځپله نظريه داسې وړاندې کړې ده:

په قيامت به وي د عرش تـر سيـوري لانـدې
بادشاهـان چې عـادلان شـي عـدل کانـدې
په هـر قـوم چـې کـرم د کردکـار شـي
سـرداران بـه يـې ديـنداره نيکوکـار شـي
ښه حـاکم رحمـت پـه خلقـو د سبحـان دی
بـد صـورت کـه د انسـان لـري شيطـان دی
ښانـه د خـداى د قهـر بـد حـاکم دی
چې هېڅ عـدل انصـاف نـه لـري ظـالم دی
پـه هـر لـوري کـاد ظلـم لمبـې بلـې
پکـې زړونـه د عـالم کـا جلـې بلـې
که هـر څـو وطـن شيـرين وي خـو يـې پرېږدي
چـې يـې چېرتـه آرام شـي هورتـه لېږدي
ظالمـان خـان و جهـان لـره بلا دي
هغـه خـوار شـول چـې پـه ظلـم مبتلا دي

د عبدالقادرخان معاصرو او تر ده وروستيو شاعرانو هم د ده د عالي وينا او لوړ شعري استعداد ستاينه کړې ده، لکه اشرف خان هجري چې ويلي دي:

قادر خان که بحر بولم دروغ نه دی
چې يې فکر د اصلي دروممصدر دی

عبدالقادر خان د ګلستان په ترجمې سربېره د خپل ديوان مقدمه هم په پښتو نثر ليکلې ده: مقصد دا چې عبدالقادر خان په پښتو نظم او نثر دواړو کې د استادۍ درجه لري.

سکندر خان خټک د خوشحال بل عالم شاعر زوى دی، چې د شعر په ديوان سربېره نور ډېر آثار په پښتو نظم ځنې راپاتې دي.

د سکندر په آثارو کې له ځينو يادونو دا راوزي چې دی به په ۱۰۶۸هـ ق کال کې زېږېدلی وي؛ ژوند يې تر ۱۱۱٦هـ ق کال پورې يقيني دی. ځکه ددغه کال د شعبان په مياشت کې دده دوه زامن انورخان او منور خان مړه شوي دي او سکندر د

دوی په فراق کې ډېرې سوې ساندې ویلې دي، د یوې ساندې دوه بیتونه یې دا دي:

انور چې یاد کړم ژاړم په کوکې
منګل مې داغ کښېښود د زړه په څوکې
اجل شاهين و، په سکندر راغی
د زړه یې وویستی د فراق نوکې

د تاریخ مرجع له ځینو یادونو او دده په دیوان کې له ځینو شهادتونو ښکاري، چې سکندر د خپلې کورنۍ د سردارۍ په سیاستونو کې شامل و. د خوشحال د زوی بهرام او لمسي افضل خان تر منځ چې کومې جګړې واقع شوې دي، دی د افضل خان طرفدار پاتې شوی دی.

د سکندر خټک د لاس ته راغلو آثارو له مطالعې څرګندېږي، چې سکندر عالم او دانشمند سړی و. پښتو یې مورنۍ ژبه وه؛ په پارسي او عربي او نورو ژبو ښه پوهېده او د خپلې کورنۍ له علمي او فرهنګي محیطه یې ښه استفاده کړېوه او د خپل لوړ شعري استعداد په مرسته یې ډېر اوچت او د هنر په کانه سمبال اشعار وویل او دده د همدغه عالي شعري قریحې اغېزه به وه چې اشرف خان هجري غوندې بلند پرواز شاعر د ده په باب ویلي وو:

د سکندر شعر له څه سره مخی کړم طبیعت یې ډېر تر درو منور دی
داشعار ملك یې همه په ژبه خپل کړ
په سریر د نظم شاه بل سکندر دی

د سکندر خان په آثارو کې موږ ته دده دغه لاندې کتابونه معلوم دي:

د اشعارو دیوان، چې د مرحوم استاد دوست محمد خان کامل مومند په زیار دوه خله په پېښور کې چاپ شوی دی. دده په دیوان کې غزلې، قصیدې، رباعي، قطعه، مثنوي، ترجیع بند او نور شعري انواع پیدا کېږي. دده شعر د موضع رنګارنګي او ورسره د هنر ډېره لوړه مایه لري.

د سکندر په آثارو کې په دیوان سربېره دده د لیلی و مجنون کیسه هم ډېره خوندوره نظم شوې ده. ده دا کیسه د پښتو مثنوي په قالب کې په ۱۰۹۰هـ ق کال نظم کړې ده. دا کیسه هم دوه خله چاپ شوې ده.

شمایلنامه، پند نامه، ختم احزاب او یوسف زلیخا د ده ځینې کوچنۍ مثنوي ګانې دي. د ځینو نامکمل متنونه یې په چاپي دیوان کې هم راغلي دي. خو د شمایلنامې او پندنامې د مثنویاتو بشپړ متنونه یې یو ځای په کابل کې چاپ شوي دي.

هانري جارج راورټي لیکلي دي، چې سکندر خان خټك د مهرو مشتري کیسه هم نظم کړې ده، خو د سکندر دغه منظومه کیسه تراوسه نه ده لیدل شوې.

سکندر خان ختټك په ۱۰۹۳هـ ق کال خپل ورور اشرف خان ختټك ته چې دا وخت په هندوستان کې بندي و، یو خوندور منظوم لیك لیکلی دی چې د ترجیع بند په قالب کې یې کښلی دی. دا لیك د ادبي ستوري مولف ښاغیل رفیع چاپ کړی دی؛ دا خط په هنري او شعري ارزښتونو سربېره په هغه وخت کې د خوشحال د کورنۍ د احوالو یوه هینداره ده. د دې ترجیع بند وروستی بند دا دی:

حقیقت که د وګړو مو به مو کښم
قلم تاب نه شي راوړلی که یې څوکښم
دارنده به زباني واړه عرضه کا
ورې غټې کیسې څه د کومکو کښم
طومارونه، دفترونه راته بویه
که خوبونه د بهرام له دېرویو کښم
په ژړا ژړاکې لوند واړه کاغذ کړم
ستاد کډې محنت هسې په نارو کښم
لوی هلك یې چې په کډه کې ناړې کا
زه سکندر ددې خبرې صفت څو کښم
که خورشید غوندې ښکاره خان په اټك شي
مدعیان به، لکه ستوري هسې ورك شي

صدر خوشحال یا صدر خان ختټك د خوشحال بل زوی دی، چې د خپلو داستانونو له پلوه د پښتو په ادبي تاریخ کې د لوړ نوم خاونددی.

د صدر خان ختټك مور د ملوخان یوسفزي لور وه. د زوکړې تاریخ یې په تاریخ مرصع کې نه دی راغلی. د سرفراز خان عقاب ختټك د یو تحقیق له مخې د ده د زوکړې کال ۱۰۶۵هـ ق کال شاوخوا اټکل کېږي. صدر خان ختټك له خپل نامه سره د خپل پلار نوم هم نښلوي او د اشعارو په مقطع کې خپل نوم (صدر خوشحال) راوړي.

صدر خان په ۱۰۹۱هـ ق کال د ډوډې په جنګ کې د خپل پلار ملګری و. په خینو نورو جنګونو کې یې هم برخه درلودلې ده. په خپلو کورنیو شخړو کې یې ثابت دریځ نه درلود. کله به د افضل خان ملګری و او کله به یې د بهرام طرفداري کوله. په ۱۱۲۰هـ ق کال د تیرې فوجدار و.

په تاریخ مرصع کې د ۱۱۲٤هـ ق کال تر واقعاتو وروسته د ده نوم نه دی راغلی، نو څکه یې ژوند تر همدې ۱۱۲٤هـ ق پورې یقیني دی.

صدر خان د خپل اجتماعي شخصیت تر څنګه د فرهنګي شخصیت خاوند هم دی. ده د پښتنو دوه مشهور ملي رمانونه آدم خان درخانۍ او دلی شهو په پښتو

خواړه نظم کې اوډلي دي. په دغو دوو منظمو رمانونو برسېره ده د حضرت پیغمبر(ص) معجزات هم په پښتو نظم کړي دي او د حضرت علي جنګنامه یې په پښتو نظم کړې ده. له دغو څلورو منظمو کتابونو څخه یې د دلی او شهو کیسه او آدم خان درخانی چاپ شوي دي. او دوه نور یاد شوي کتابونه یې خطي دي.

د ده بشپړ دیوان تراوسه نه دی لیدل شوی، خو متفرقې غزلې، قصیدې او مخمسونه یې موجود دي. د دغو متفرقو شعرونو موجودیت موږ په دې باورې کوي چې ده به د اشعارو دیوان درلود.

هانري جارج راورټي بیا لیکلي دي، چې صدر خان د خسرو شیرین کیسه هم په پښتو نظم کړې ده؛ د ده دا کیسه تراوسه نه ده لیدل شوې.

د صدر خان په لاس ته راغلو آثارو کې چې څه د ډېر ارزښت وړ ګڼل کېږي. هغه د ده دوه منظوم رمانونه دي، ددلي شهو رمان یې په ۱۱۱۰ هـ ق کال او د آدم خان درخانی رمان یې په ۱۱۱۸ هـ ق کال نظم کړي دي. ده دا دواړه رمانونه د پښتو مثنوي په قالب کې په خورا هنري انداز کې بیان کړي دي. په دې مثنویاتو کې د ده د هنري قوت د څرګندولو په منظور د دلي او شهودرمان لاندې بیتونه دلوستو دي:

چې بــه دا پــه لارې شــوه سمــه روانــه
شــوه بــه ســروه سرنګــون زرکــه غلتانــه
پــه ښـایست بــه یــې د زمکــې مــخ زیبـا شــو
پــه ښــه بــوی بــه یــې نسیــم واړه بویــا شــو
پــه چشمانــو پــه لبانــو هســې شــان وه
چــې هــم درد وه د وګړي هــم درمــان وه
دواړې سترکې یــې استــادې د جــادو وې
پــه وحشــت یــې شاګــردانې کــل آهــو وې
هــم یــې سترکې جادوګــرې هــم بلاوې
هــم فتنــې وې غمــزه ګــرې، هــم بلاوې

او هغه د استاد حبیبي خبره چې صدرخان د ادبي تصویر په فن کې استاد ښکاري او دا یو سحر کار شاعر دی، چې خپل هنر یې د رمان لیکنې په برخه کې په اعلی درجه کې ښکاره کړی دی.

صدرخان په خپلو مثنوي ګانو سربېره د غزلو، قصاید و او مخمسونو په ویلو کې هم غښتلی دی. دده دا اشعار هم هنري قوت او شاعرانه ښېګڼې لري. د خپل پلار خوشحال خان مرثیه یې په یوه قصیده کې ډېره سوخوونکې ویلې ده او د خپل پلار

ځینې غزلې یې ډېرې ښکلې مخمس کړې دي.
د خوشحال د مرثیې د پای څو بیته یې دا دي:

نور دې واړو فرزندانو درته شا کړه
مګر ستا په خدمت ما تړلې ملا ده
که دې نور اولاد دولت وګاټه مور ته
لویه ګټه د دولت د تا رضا ده
که ته ولاړې زه دې وسپارلم غم ته
دا دې لویه غمخواري کړې زما ده
چې ستا غم په سر لرم زما څه غم دی
ستا د غم سایه زما په سر هما ده
ستا لړ غم به هرګز پرې بدل نه کړم
په دنیا چې څه هوس، خوښي، هوا ده
ته مړ حوت کې سنه زرسل دویمه خور وه
ورځ جمعه د ځاښت په وخت دې بېله سا ده
لابه کله شي سبا «صدرخوشحاله»
د اشنا د دیدن ژمنه په سبا ده

ګوهر خان ختک د خوشحال خان زوی د پښتو او پارسي ژبو ناظم او شاعر او د پښتو ښه نثر لیکونکی او مترجم دی.

د ګوهر خان د زوکړې تاریخ صریح نه دی ذکر شوی. خو په تاریخ مرصع کې د خوشحال له یو بل زوی نصرت خان سره د ده نوم یوځای راغلی دی. څنګه چې د نصرت خان د زوکړې تاریخ استاد کامل مومند ۱۰۶۹هـ ق کال استخراج کړی دی، نو کېدای شي، چې مور دغه وخت د ده د زوکړې کال هم وګڼو. د مړک تاریخ یې په باوري توګه نه دی معلوم، خو ژوند یې تر ۱۱۲۰هـ ق کال پورې یقیني دی. ده په دغه کال د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمد(ص) سیرت په پښتو نثر ترجمه کړی دی او یوه مقدمه یې په خپله هم پرې لیکلې ده. د ده د مقدمې له لیکنو ښکاري، چې ده دې دا کتاب د افضل خان ختک په غوښتنه ترجمه کړی وي، لکه چې په خپله یې لیکلي دي: «نور بل سبب د کتاب دا و، چې افضل خان زوی د اشرف خان مرحوم لمسی د خوشحال کرلاني غفرالله له چې سن زر سل شل دی، د پلار نیکه په ځای قایم مقام دی، ښه سرداري لري. نظر یې په نیکنامی په آبادی دی، په دا قحط الرجال کې غنیمت دي، حق تعالی دې شرم وساتي. نور مساعي کا چې د پښتو کتابونه له هره قسمه، لکه فارسیانو کړي دي مرتب کا...» د دغه ترجمه کړي

پنه کتاب نوم «قلب السیر» دی، او د پښتو نثر یوه غنیمت ذخیره. خو نثر یې، لکه چې استاد حبیبي ویلي دي، د تاریخ مرصع د نثر په نسبت یو څه دروند والی لري. د ګوهر خان قلب السیر تراوسه نه دی چاپ شوی، یوه نسخه یې د پېښور په موزیم کې شته.

په همدې قلب السیر کې د ده ځینې نظمونه هم شته، چې رباعي، قصیده او غزل پکې لیدل کېږي. دده د دغو نظمونو ارزښت هم لوړ نه دی. دا ځکه چې هنري ښکلا پکې نشته او نثر یې هم ادبي او هنري ارزښتونه نه لري او په ادبي تاریخ کې یې مطالعه هم تر سوال لاندې واقع کېږي.

د ده په یوه رباعي کې له پښتو سره مینه څرګنده شوې او خلک یې هڅولي چې که پارسیانو ته خپله ژبه ګرانه ده، نو پښتنو ته هم باید خپله پښتو ګرانه وي، هغه رباعي دا ده:

دوه یـاران چـې راز د زړه تـر بلـه نمایـي
بایـده دي چـې پـه خپلـه ژبـه وایـي
د فارسیانـو کـن مکـن ویـل چـې سـود کـا
پښتنـو تـه کړه مـه کړه ویـل ښـه ښایـي

ده په پارسي ژبه هم ځینې نظمونه ویلي دي. د خپل پلار د مرګ تاریخي قطعه یې په پارسي نظم ویلې ده. ګوهر خان د خپلې سردارۍ په شخړو کې د خوشحال او افضل خان پلوی و او له لوی خان خوشحال خټک سره د تیرا د سفر ملګری و.

تر دې ځایه د خوشحال پر هغو زامنو او آثارو یې بحث وشو، چې منظم آثار ترې پاتې دي.

اوس به د خوشحال پر هغو زامنو خبرې وکړو، چې متفرق اشعار یې تر موږ رسېدلي دي، یا دا چې آثار یې نه دي لیدل شوي، خو خوشحال او هجري یې د شاعرۍ یادونه کړې ده او ورپسې به بیا د خوشحال د کورنۍ پر هغو لیکوالو او شاعرانوخبرې وکړو، چې په نظم و نثر کې یې د خوشحال د آثارو سبك تعقیب کړی دی.

د خان خوشحال خان خټك په هغو زامنو کې، چې د شاعرۍ خبرې یې شوې دي، خو کلام یې تر موږه نه دی رارسېدلی، یو بهرام خان دی.

بهرام په ۱۰۵۳ هـ ق کال زوکړی‌دی او پـه ۱۱۲٤هـ ق کـال مړ دی. بهرام د خوشحال نا خلف زوی و. د خوشحال اودده د خانۍ پر ګدۍ له ناستو کسانو سره یې مخالفتونه او جنګونه کړي دي او د هنـد د مغلي امپراتـورۍ طرفـدار سړی و؛ خوشحال بابا د ده د شاعرۍ په باب ویلي دي:

عطار د دې نور قلم له لاسه کښېږدي
چې پـه دا خوبۍ بهرام املا انشا کا

عابد خان خټک د خوشحال خټک بل زوی دی، چې دیوان یې تراوسه نه دی موندل شوی، یوازې دوې قصیدې او یوه غزله یې تر موږه رارسېدلي دي.

دا درې واړه شعرونه شاعر د خپل زوی شاهد خان پر مړینه (۱۱۰۸ هـ ق) ویلي دي. د عابد خان دواړه رثائیه قصیدې، د مرثیو سوز او ګداز لري اود مرثیه ویلو آداب پکې مراعات شوي دي، دا شعرونه د یو خاص درد تر څنګه هنري ښېګڼې هم لري، د یوې قصیدې دوه درې بیتونه یې دا دي:

د جبین دې بدر ماه نه وه همتا
کښلی مخ د تا تر نمر و روښان لا
نوې میاشت چې په شفق کې راښکاره شي
ستا د وروځیو مثال څه خوکا پیدا
که بانه دې تور تور غشي نه وو، ولې
تا پرې زړونه زخمي جوړ کړه د هرچا
سپینه پوزه دې ښه ګل د نسترن و
ستا عذار تر چنبې ګل ولا پیدا

عابد خان خټک په ۱۰۵۸ هـ ق کال کې زېږېدلي دي؛ د مرګ تاریخ یې نه دی معلوم، عابد خان دخپلې خانۍ په کورنیو شخړو کې ټاکلی دریځ نه دی لرلی، کله یې د خپل پلار ملګري کړې ده او کله هم د بهرام په طرف درېدلی دی. په تاریخ مرصع او د خوشحال په کلیاتو کې د عابد خان د دغسې موقفونو په باب یادونې او اشارې موندلې کېږي.

عبدالرحمن خان خټک د خوشحال په شاعرانو زامنو کې یاد شوی دی اوهجري د شاعر په نامه ښوولی دی خوکلام یې موږ ته نه دی رسېدلی. عجب خان د خوشحال بل زوی دی، چې اشرف خانه هجري او افضل خان خټک یې د شاعرۍ یادونې کړې دي. د تیراه په سفر کې له خوشحال سره ملګری و او له خپل پلار اوافضل خان سره یې ملګري کوله. افضل خان خټک په تاریخ مرصع کې ویلي دي، چې عجب خان د طبع خاوند او خوشحال روزلی و، د ده دا لاندې بیت په تاریخ مرصع کې راغلی دی:

چې یې په پچو پسې ګمراه نه شوې
شکر وکاږه د دجال وخت دی

آزاد خان هم د خوشحال زوی دی، چې د زېږېدو تاریخ یې ۱۰۶۵ هـ ق راوزي؛ دی د پښتو ژبې شاعر و. نور کلام یې په لاس کې نشته په تاریخ مرصع کې یې یوازې دوه بیته خوندي دي، چې د خپل ورور اشرف خان د مرګ تاریخ یې

يکې ښوولې دی، هغه دوه بيته دا دي:

د هجــــرت يـــې زر ســـــل شپـــږ و
اشــرف خـــان چــې فــوت شـــه يـــاره
غـــــم انــــدوه د ده تـــــاريخ دی
کـــــه حســــاب کړې ويــــې شمــــاره

بي بي حليمه د خوشحال ختك فاضله او شاعره لوروه، چې د علميت تر څنګه يې په پښتو د شعر ويلو استعداد هم درلود. د محمد هوتك د وينا له مخې حليمه د عبدالقادر خان خوروه اودده په ذريعه د شيخ سعدي لاهوري مريده وه او د قرآن حافظه او د تصوف د نقشبنديه طريقې ته پابنده وه. په پټه خزانه کې ددې يوه غزله خوندي ده، چې عرفاني رنګ لري؛ د دې غزلې دوه بيته دا دي:

و هرچـــا وتــه چـــې کـــورم واړه دی دی
د جمـــال پـــه ننـــدارو يـــې شادمـــان شــوم
غيـــر فکـــر مـــې لـــه زړه نـــه رابهـــر شـــو
په خليل او پـه عـدو بانـدې يکسـان شـوم

د همښ خليل د ځېږنو له مخې بابا سعيد ختك د خوشحال د کورنۍ يو فرد و؛ ژوند يې تر ١١٢٤هـ ق کال پورې يقيني دی. ده په پښتو او پارسي ژبو کې د اشعارو ديوانونه پرېښي دي. د پښتو اشعارو ديوان يې دوه ځله په پېښور کې چاپ شوی دی. د دې ديوان پر غزلو او ځينو قصيدو د خوشحال د سبك اغېزې او اثرات ليدل کېږي؛ دا سړی هم د دې کورنۍ په غړو او د خوشحال د سبك په پيروانو کې درولای شو، د شهباز خان يادونه يې په دې ډول کړې ده:

يو خان شهباز بل د ننګ پګړی يې
چې يې پښتون کـا په نام فخرونه

د خان خوشحال خان د شاعرۍ په باب يې ويلي دي:

خـــان کـــه اطلـــس د شعر وودلی دی
د ديو دريووروڼو ټوکې هم ښکلی دی

د خوشحال د کورنۍ په غړو کې بل د تورې او قلم خاوند، او د پښتو ژبې خدمتګار او د خوشحال د آثارو ټولوونکی افضل خان ختك دی، چې له فرهنګي جهت نه يې ډېره د ده شخصيت نورې ډېرې خواوې لري.

افضل خان ختك د اشرف خان هجري زوی او د خوشحال ختك لمسی دی. د زېږېدو نېټه يې ١٠٧٥هـ ق کال يقيني ګڼل کېږي.
افضل خان د زوکړې له وخته بيا تر ځوانۍ پورې د خپل نيکه خوشحال د

توجه وړ و افضل خان لا د شپاړسو، اووه لسو کالو ځوان و، چې د خوشحال او هجري تر منځ څه مخالفتونه پیدا شول خوشحال په نظام پور کې د خانۍ پګړۍ د افضل خان پر سر وتړله. افضل خان د ځوانۍ له ابتدا څخه د پلار او نیکه پر ژوند د خټکو خانۍ او سردارۍ په کاروبار کې داخل سړی و او سرداري یې په رسمي ډول له ۱۱۰۴هـ ق کال څخه پیل کیږي او تر ۱۱۵۳هـ ق کال پورې دی د خټکو قبیلې مشر و. د افضل خان خټك د مرګ کال هم په ادبي څیړنو کې مختلف ښوولی شوی دی؛ اما د استاد رشاد یوې وروستۍ څیړنې له مخې ۱۱۵۳هـ ق کال د ده د مړینې کال منل شوی‌دی. افضل خان یو مدبر مشر او د ګوهر خان خټك په قول نظر یې په نیکۍ او آبادۍ و. افضل خان د خپل سیاسي او اجتماعي شخصیت ترڅنګه په دوولسمه پېړۍ کې د پښتنو لوی فرهنګي شخصیت تېر شوی دی، د پښتو مترجم، لیکوال، ناظم او د پښتني فرهنګ د بډایتوب لیوال سړی و. د افضل خان خټك په مهمو تالیفاتو کې یو هم تاریخ مرصع دی، چې د ۱۱۲۰هـ ق یا ۱۱۲۳هـ ق نه تر ۱۱۳۶هـ ق کلونو پورې یې په تالیف بوخت و. د تاریخ مرصع یوه برخه د نعمت الله هروی د مخزن افغانی پښتو ترجمه ده، د خوشحال د کورنۍ احوال یې د خوشحال خان له بیاض څخه راوړی دی،د روښانیانو احوال یې د اخوند درویزه له آثارو څخه اخیستی او د کتاب یوه برخه ده خپله لیکلې ده.

تاریخ مرصع په پښتو نثر لیکل شوی دی، نثر یې د هندي پارسي خاص اصطلاحات او کلمات ډېر لري، نثر یې ښکلا ډېره نه لري، ادبي ارزښتونه یې لږ دي؛ یوازې د پښتو په تاریخي نثرونو کې دمطالعې وړ نثر دی او د خوشحال د نثر لیکنې سبك پکې تعقیب شوی دی. له ټولو مهمه خبره دا ده، چې د خوشحال بابا د بیاض نثرونه یې کټ مټ په کتاب کې نقل کړي دي او سړی کولای شي د خوشحال خان بیاض له دغه کتابه استخراج کړي. د افضل خان خټك تاریخ مرصع په پېښور کې چاپ شوی دی.

د افضل خان خټك بل معلوم اثر، د کلیله و دمنه پښتو ترجمه ده، افضل خان د ابوالفضل پارسي عیار دانش (کلیله و دمنه) په پښتو ترجمه کړی دی او دا ترجمه یې په ۱۱۲۹هـ ق کال بشپړه کړې ده. د افضل خان دغه پښتو ترجمه خوندوره ده، د دوولسمې پېړۍ د نثر لیکنې خصوصیات او د خوشحال د کورنۍ د نثر لیکنې اغېزې پکې لیدل کیږي. ځینې درانه پارسي کلمات یې هم په پښتو نثر کې راوړي دي:

د افضل خان ځینې منظومې ټوټې هم د ده په یاد وشو یو دوو آثارو کې شته، خو ډېر اشعار یې نه دي لیدل شوي.

په تاریخ مرصع کې یې د شعر راغلې یوه نمونه دا ده:

کار و بار مو همکي راته عیان دی
و عیان ته څه حاجت د بل بیان دی
سېلابونه د خلاف شول وبله جمع
بیالنۍ د آب سیند غونډې روان دی
آئینه چې له زنګاره مصفی وي
که زنګي مخ په کافورو نمایان دی

د ده یوه بله ټوټه چې د کلیله و دمنې له پښتو ترجمې څخه اخیستل شوې ده، هنري ارزښتونه لري، ټوټه دا ده

صورت مې هرڅو که ډېر زبون دی
که مې د مزکې دلانډې یون دی
زه به په لوري د اشنا خوځم
که یون مې هرڅو په شواخون دی

د پښتو ځینو ادبي څېړونکو د پښتو د عرفاني تفسیر نسبت هم افضل خان ته کړی دی، مګر ځینې نور څېړونکي بیا په دې نسبت کې شك لري. د پښتو عرفاني تفسیر د پښتو په پخوانیو تفسیرونو کې خورا معتبر تفسیر دی، چې نثر یې خوږ او په تفسیر کې راغلي پښتو اشعار او د دري شعرونو پښتو منظومې ترجمې د پښتو په ادبي څېړنو کې د استفادې وړ مواد دي.

افضل خان سربېره پر دې چې خپله د پښتو شاعر او لیکوال و د ده په غوښتنه ځینې نور آثار هم په پښتو ترجمه شوي دي. لکه: ګوهر خان ختټك، چې قلب السیر په ۱۱۲۰ هـ ق کال د ده په غوښتنه په پښتو ترجمه کړی دی. محمد مظفر د اسمعیل زوی په ۱۱۲٦ هـ ق کال تاریخ اعثم کوفي د افضل خان په غوښتنه په پښتو ترجمه کړی دی. عبدالحلیم د اختیارات بدیعي پښتو ترجمه دهمدغه افضل خان ختټك په غوښتنه تر سره کړې ده، د ګوهر خان پر احوالو او آثارو موږ د مخه خبرې وکړې، اعثم کوفي او اختیارات بدیعي په ادبي آثارو کې نه شي حسابېدلی، نو ځکه بحث پرې نه کوو.

افضل خان د فرهنګي زېرمو دغني کولو لپاره په دغسې تشویقونو سربېره د خپل نیکه (خوشحال خان) آثار هم راټول کړي دي، د ده د کلیات او نورو آثارو څو څو نسخې یې ترتیب کړې دي.

د افضل خان د سیاسي، اجتماعي او فرهنګي ژوند او کارنامو له مطالعې څرګندېږي، چې دی یو مدبر سردار او فرهنګیال پښتون و، چې د خپلې ژبې د ترقۍ او بډایتوب هیله یې درلوده د خانۍ او سردارۍ له کارو بار سره سره یې قلم په لاس

کې و، په پښتو یې آثار لیکل او ترجمه کول او نور یې هم هڅول، چې د پښتو د بډایتوب په کار کې ونډه واخلي.

تر افضل خان وروسته مور ته د ده د یو لمسي او یو کړوسي آثار مخې ته راخي، چې دواړه د پښتو په مقتدرو غزلسرایانو کې حسابېږي، او په غزلسرائي کې یې د خوشحال د سبك اغېزې منلې دي.

په دغو دوو تنو کې یو هم خوشحال خان شهید دی، چې د سعدالله خان زوی او د افضل خان لمسی و، دی دخپل پلار سعدالله خان د سرداری په زمانه کې د تیري حاکم و. خوشحال خان شهید دلوی احمد شاه بابا په لښکري کارروایو کې شامل سړی و او د همدغه شاهنشاه د فوجي فعالیتونو په لړ کې په ۱۱۷۲ هـ ق کال ووژل شو. پښتانه شاعر علي اکبر ورکزي یې مرثیه ډېره خوند ناکه ویلې ده.

خوشحال خان شهید هم، لکه د خپلې کورنۍ زیاتره غړي د توري او قلم خاوند و. د ده دوې ښکلې غزلې، چې پر یوې یې د خوشحال د رندانه غزلو اثرات ښکاره دي، زمونږ په واك کې دي، دا غزلې د پښتانه شعراء لومړي ټوك چاپ کړې دي، د یوې ښکلې غزلې دوه بیته یې دا دي:

زه چې مست په لب د یار یم هېڅ حاجت د شراب نشته
اور د عشق مې زړه کباب کړو هېڅ حاجت د کباب نشته
تمام تن مې وچ لرګی شو، رګ مې تارور بافړکېږبووت
زیرو بم آواز تې خېژي، هېڅ حاجت د رباب نشته

بل شاعر چې د خوشحال د کورنۍ په شاعرانو کې د هېرولو نه دی، هغه نواز خان خټك دی، په ورکه خزانه کې د ښاغلي همېش خلیل د تحقیق مطابق د سعد الله لمسی او د افضل کړوسی دی. د پلار نوم یې ښکاره نه معلومېږي، خو پروفیسور افضل رضا په د(پښتو غزل) نومي اثر کې نواز خان د خوشحال شهید زوی بللی دی، او خپل سند یې هم نه دی ښوولی. د ده ځیني متفرق اشعار د پښتو ادب د محققینو په واك کې دي، د ورکې خزانې په اول ټوك کې یې ځیني اشعار چاپ دي. نواز خان تر ۱۱۹۳ هـ ق کال پورې ژوندی ښکاري، د ده له لاس ته راغلو غزلو څخه ښکاري، چې دی یورنګین بیان شاعر و او په شعر کې یې د شعریت قوت شته، د ده د یوې غزلې دوه بیته دا دي:

شهی چې ټیك اوربل د سپین جبین په سر ګرځوي
عجب څه رنګ په یو ځای کې شپه او نمر ګرځوي
د چا طاقت دی، چې مهره یې د سرو شونډو واخلي
دواړه طرفه تړې د شونډو تور اژدر ګرځوي

# د خوشحال معاصران او د ده د سبک نور پیروان

د خوشحال خان خټک او د ده د ځینو زامنو د ادبي فعالیت دوران یوولسمه پېړۍ ده؛ په دې پېړۍ کې پښتو ادبیات له هراته نیولي ان تر دکنه او د شرقي هندوستان تر اوړیسې پورې خواره واره را زېږېدلي، لوی شوي او تر بېلابېلو فکري اغېزو لاندې یې د خپلې ودې مراحل تر شا کړي دي. د دې پېړۍ شاعران او لیکوال زیاتره د خوشحال معاصران او ځینې ترې مشران دي. دا شاعران او لیکوال زیاتره خانته خپلې فکري لارې لري او د خپلو سر لارو تر اغېزو لاندې یې د خپلې وینا او افکارو سبکونه تنظیم کړي دي. مګر د همدې یوولسمې پېړۍ په شاعرانو کې ځینې داسې کسان شته چې د شعر سبک یې د خوشحال له سبک سره نږدې والی لري او شاعرانه انداز یې له خوشحال بابا نه متاثر دی. د شعر د کلماتو په انتخاب، د انځورونو په استعمال او د خیالونو په وده کې د خوشحال له سبک سره یو شانوالی او نږد یوالی ښیي، نو ځکه زموږ مشرانو چې د پښتو اشعارو له پاره کوم سبکونه ټاکلي دي؛ ډېر شاعران یې دخوشحال د سبک په پیروانو کې شامل بللي دي، خو د یادونې وړ خبره یکې دا ده، چې په وروستیو تحقیقاتو کې ځینې نوي پیدا شوي شاعران چې د خوشحال د سبک پیروان وو، په دې ډله کې را ننوتل او ځینې چې نه وو، هغه ځنې وایستل شول.

د مثال په ډول عیسی اخونزاده او خواجه محمد بنګښ هم ادیبوهانو د خوشحال د سبک په پیروانو کې درولي دي، ما دغه کسان له دې ډلې وایستل او د دغه کتاب په دریم فصل کې مې د صوفیانو او مبلغو شاعرانو په ډله کې حساب کړل؛ دا ځکه چې خواجه محمد بنګښ او عیسی اخونزا ده د خاصو فکري او عرفاني لارو پیروان دي، چې د خوشحال د افکارو له عمومي ساحې څخه لرې والی لري. د سبکونو په نږدېوالي کې یوازې د شکلي جوړښتونو نزدیکت شرط نه دی. فکرونه او نظریات یې هم باید څه نږدېوالی سره ولري. حال دا چې خواجه محمد بنګښ د چشتیه طریقې یو صوفي دی او د عیسی اخونزاده زړه هم د عرفان په پلوشو روڼ دی؛ موږ دوی دواړه د دې ادبي تاریخ د تاءلیف له شرایطو سره سم د ډې سبک په پیروانو کې نه راولو.

دغه راز ادبپوهانو مهین او معزالله مومند هم د خوشحال په پیروانو کې یاد کړي دي؛ دا هغه وخت و، چې د دوی دیوانونه نه ووکتل شوي؛ اوس چې یې دیوانونه کتل شوي دي، مهین خپل ځان د خوشحال مخې نه بولي او رحمان بابا ته معتقد دی او معزالله مومندهم د خوشحال د لارې پیرو نه دی.

هغه شاعران چې یې په ځینو مواردو کې د خوشحال بابا او بیا د ده د زامنو پیروي کړې ده او کلام یې د خوشحال د کورنۍ له کلام سره هنري او فکري نژدېوالی لري مو لاندې ښیو:

(۱) قلندر: دا قلندر د پښتنو دمومندو قبیلې ته منسوب و او د جنوبي هندوستان په دکن کې اوسېده. د مرګ کال یې د ۱۱۰۰-۱۱۰۶ هـ ق کلونو تر منځ ګڼل شوی دی. دا شاعر خوشحال، هجري او سکندر خټک یاد کړی دی او په یوولسمه پېړۍ کې د پښتو له ډېرو ښو شاعرانو څخه ګڼل کېږي. کله چې اشرف هجري په بیجاپور کې بندي و، له دغه شاعر سره یې رابطه درلوده، د هجري په دیوان کې د دغه قلندر یوه اوږده غزله موجوده ده، چې اشرف خان هجري ته یې استولې وه او هجري یې ځواب ویلی دی؟ د هجري ځواب هم د هجري په دیوان کې موجود دی. قلندر یو متصلف شاعر دی، دوه لاس ته راغلې غزلې یې له شاعرانه باتو ډکې دي، خو ورسره پوخوالی، صلابت او د شعر خوند لري. د ده دیوان ورک دی، د ده دا لاندې بیت هم په دې دلالت کوي، چې ده به ډېر اشعار ویلي وي:

د پښتو ژبې مې آب ورکـه پـه شعـر

د فارسي شعر چې نه وایم افغان یم

دغه قلندر د خوشحال معاصر و، د شعر په شکلي رغښتونو او مضامینو کې یې د خوشحال له سبك سره ورته والی لیدل کېږي، دلته باید دا خبره هېره نه کړو، چې دا شاعر خپل ځان ته په ډېر لوړ ارزښت قایل دی، لکه چې وایي:

نوی طرز مې په پښتو ژبـه کې وکړ

د افغــان په شاعرانو کې سلطان یم

په همدې دلیل مو قلندر د خوشحال پیرو نه، بلکې داسې معاصر بولو، چې د خوشحال اوهجري له اشعارو او افکارو سره یې شعر او فکر نژدېوالی لري.

(۲) اشرف خلیل: دا شاعر هم د دوولسمې پېړۍ شاعر دی، مکمل دیوان یې نشته ځینې غزلې او رباعي یې په کلید افغاني، ورکه خزانه، ګلزار روه او نورو آثارو کې چاپ شوي دي. ده د پښتو په تاریخي مشاعره کې برخه اخیستې ده؛ د دوولسمې پېړۍ ځینو شاعرانو د عبدالقادر خان خټك د یوې غزلې په جواب کې غزلې وویلې، چې له هغو غزلو نه یوه مشاعره جوړه شوه او د پښتو په ادبي څېړنو کې دا مشاعره د پښتو دتاریخي مشاعرې په نامه یادېږي. اشرف خلیل د عبدالقادر جواب

داسې کړی دی:

چې تا وې عبدالقادره کوم پښتون به بې خوشحاله
داشان وایې اشرف ووې خدای پیدا کړ پښتون هسې

د اشرف په شاعرۍ کې ځینې داسې نخښې نښانې شته، چې سړی کولای شي، دی د خوشحال د سبك پیرو وبولي. د وروستیو تحقیقاتو له مخې اشرف خلیل د شمالي هندوستان په رامپور کې اوسېده.

ده یوه په ځانته شکل الفنامه هم ویلې او په خپلو ځینو رباعیاتو کې یې هم د الفبا د تورو د استعمال سبك تعقیب کړی دی او شعر یې هنري ارزښتونه لري؛ دا یې یوه رباعي ده:

لکه تل ستا دهجرانه پـه مـا غـم دی
کوم پیدا بل په داشان بنـــی آدم دی
دواړه لاس د اشرف یو ځله چاپېر شوی
اې چې قد یې تر الف ساکنه سم دی

(۳) فیض محمد: دا شاعر هم د دوولسمې پېړۍ د حدودو شاعر معلومېږي. د شمالي هندوستان په روهیلکهنډ کې یې ژوند کړی دی، یوه غزله یې د روهیلکهنډ د شاعرانو د اشعارو په یوه خطي مجموعه کې خوندي ده. دا غزله یې د خوشحال د سبك خصوصیات لري، د دې غزلې یو بیت دادی:

نن په ما د هجر وقت دی ګوره څه شي
ناقرار مې خوار صورت دی ګوره څه شي

(٤) فاضل: دا شاعر د یوولسمې پېړۍ د اواخرو شاعر ښکاري، په غالب ګمان یې سړی د خوشحال په معاصرانو کې یادولای شي او دا ځکه چې د بیانات افغاني په خطي مجموعه (۱۱٤۲هـ ق لیك) کې د ده اشعار خوندي دي. د ده دیـوان ورك دی، متفرق اشعار یې په ادبي ستوري، ګلزار روه اوکلید افغاني کې چاپ شـوي دي. ادبپوهانو فاضل هم د خوشحال د سبك په ملګرو کې حساب کړی دی، غزل یې شعریت لري، د یوې غزلې مطلع یې دا ده:

څه که څوك شراب چې سره لبان وي هغه ځای
څه که څوك چراغ چې ماهتابان وي هغـه ځای

د ده غزلې د خوشحال له ځینو غزلو سره ځینې لفظي نژدې والی لري.

(٥) حسین: داحسین د پښتو غـزل ویونکـی شاعـر دی، د یـوولسمې پېړۍ په اواخرو او د دوولسمې په اوایلو کې یې د ژوند زمانه تعیین کېدلای شي. د ده دیوان ورك دی،غزلې یې په کلید افغاني کې چاپ دي او ادبپوهانو یې غزلې د خوشحـال

د سبک تر اغېزې لاندې ويلې بللې دي.

(٦) عليم: دا هم ديوان ورکی شاعر دی؛ د يوولسمې پېړۍ پای او د دوولسمې هجري اواخر يې د ژوند زمانه اټکل کېږي، څو غزلې يې په ګلزار روه اوکليد افغاني کې چاپ دي؛ ادبپوهانو دی هم د خوشحال دسبک تابع سړی بللی دی.

(٧) موسی (٨) افضل (٩) عبدل (١٠) عثمان (١١) ابراهيم (١٢) فضيل (١٣) احسن د پښتو داسې شاعران دي چې د پښتو د ادبي تاريخ څېړونکو د خوشحال د سبک په پيروانو کې شمار کړي دي.

د دغو شاعرانو ديوانونه ورک دي؛ متفرقې غزلې يې په څينو آثارو کې چاپ شوې دي، لکه د موسی او احسن په ورکه خزانه کې؛ د نورو ټولو په کليد افغاني او ګلزار روه کې چاپ شوي دي. دغه شاعران زياتره په يوولسمې او دوولسمې پېړيو کې اوسېدلي ښکاري، لاس ته راغلې غزلې يې د همدې پېړۍ د غزلو کره وره لري.

د دغو شاعرانو په غزلو کې د خوشحال له سبک سره څينې مشابهتونه او مشترکات شته نو د همدې مشترکاتو له مخې ادبپوهانو د دوی لاس ته راغلې غزلې د خوشحال د سبک تابع بللې دي.

د خوشحال د سبک په معلومو پيروانو کې بل سړی چې د جذاب غزل ويونکی دی، قاسم نومېږي چې ديوان يې په لاس کې نشته، څو غزلې يې ورکې خزانې چاپ کړې دي.

قاسم د خوشحال بابا زامن سکندر او عبدالقادر خټک هم ياد کړي دي او ښکلې هنري غزلې يې د خوشحال دسبک اثرات مني په خپله يوه غزله کې يې ويلې دي:

دا غزل که د قاسم هاله ښکاره وی
خليفه به وو پرې خوښ سکندر هم لا

په پورتني بيت کې له خليفه څخه مراد عبدالقادر خټک دی او سکندر د خوشحال دانشمند او شاعر زوی دی.

د قاسم د يوې مستې غزلې درې بيته :

اوښکې چې له سترګو څي بې واره خير دی وي
هيڅ څه خبر نه راځي له ياره خير دې وي
کومه قضيه بيګا سبا زما د سر شوه
بيا له غريوه ډک راغلي ربياره خير دې وي
درسته ورځ خفه د زړه په غولي مې تياره وه
ووتم د روغو له روزګاره خير دې وي

د خوشحال د سبک په پيروانو کې (دپښتو غزل) مولف پروفيسور رضا د معاذ

الدین ختک یادونه هم کړې ده، چې د دوولسمې پېړۍ شاعر و. د ده هم خو غزلې په ورکه خزانه کې چاپ شوېدي. د معاذ الدین ختک ځینې غزلې هنري خوا لري، اما تله یې درنه نه ده، یو بیت یې دادی:

د زلفو په حلقو لکه مضراب مه وهه ګوتې
ګوره د یار مخ ته په کتاب مه وهه ګوتې

دا و، د خوشحال، دده د کورنۍ او د سبک د پیروانو په باب یو اجمالي بحث،اوس به په دغه جریان کې د ایجاد شوو پښتو ادبیاتو یو عمومي جاج واخلو:

(۱) د پښتو ادبیاتو د عمومی مطالعې په جریان کې سړي ته څرګندېږي، چې د خوشحال د ادبي فعالیتونو په پیلېدو سره پښتو ادب یوې نوې پرمختیایي مرحلې ته داخلېږي.

د پښتو د ادبي تاریخ په دوهمه دوره کې د خوشحال ختک، دده د کورنۍ هنونې او دده د سبک د پیروانو آثار موږ ته د یو نوي پړاو څرک په لاس راکوي؛ دغه انکشاف موږ په لاندې ساحو کې لیدلای شو:

(۲) پښتو شعر دغه مهال د شرقي شاعرۍ زیاتره او حتی ټول شعري انواع خپل کړل؛ له غزل، قصیدې، رباعي، مثنوي، مربع، ټوټې او په مخمس سربېره، چې تر دې پړاو دمخه یې موږ نمونې لرو مسدس، مثمن، معشر، ترکیب بند، ترجیع بند، ترکیب بند ذوالقافیتین او نور په پښتو شعر کې پیدا شول.

(۳) پښتو شعر د مضمون له پلوه بشپړ شو؛ له پخوانیو عشقي، عرفاني، تبلیغي او په وعظیه اخلاقي موضوعاتو سربېره، د اجتماعي ژوند بېلابېل موضوعات په شعر کې بیان شول.تاریخي وقایع، رویدادونه د معاشرې او حکومتي سیستم انتقاد، له وطن سره د مینې احساسات، د پښتو او پښتونولۍ د موضوعاتو بیان او نورې ځینې داسې خبرې دي چې یا خو د پښتو ادب په تېرو پړاوونو کې یې موږ نمونه نه لرو، که د یوې نیمې یادونه هم شوې وي، ډېره ابتدایي بڼه لري. د دې پړاو په اشعارو کې دغه موضوعات په خاص شعري قوت بیان شوي دي.

په دې پړاو کې د نویو اجتماعي او ملي موضوعاتو د بیان تر څنګه په پښتو ادب کې پخواني بیان شوي موضوعات، لکه عرفان، اخلاق، نصایح او عشق هم بیان شوي دي؛ خو د دې پړاو په ادبیاتو کې د دې ډول موضوعاتو بیانونه هم تازه ګي لري، هم نوښوالی او هم ځینې ابتکاري خواوې. د دې پړاو شاعرانو دغه موضوعات هم په نوي رنګ او نوې قیافه کې بیان کړي دي.

(٤) د دې پړاو د ادبیاتو یوه متبارزه ممیزه دا ده، چې د پښتو ادب ځینې څنګونه د پښتنو له اجتماعي ژوند څخه رنګ اخلي، د دوی د روحیې او اړتیاوو منعکسوونکي دي.

(٥) هنر د دې پړاو په ادبیاتو کې له خپلو ټولو ممیزاتو سره ځان ښکاروي، که

څه هم تر دې پړاو دمخه د پښتو ادب په لومړي ادبي دوره او د دوهمې دورې په لومړي پړاو کې هم ځينې اشعار ښکلا لري او هنري تومنه پکې تينګه ده؛ خو په دې پړاو کې کابو ټول شعرونه ډېر ياګړ هنري ارزښتونه لري، وچ او بې مالګې اشعار پکې لږ دي.

په دې مهال کې پښتو غزل د شرقي غزل له تعريف سره سم ټولې هنري ښېګڼې خپلې کړې او پښتو قصيدې هم د غورې دوران د قصايدو خوند او رنګ پيدا کړ.

د پښتو خپل شاهکار ملي تکلونه، لکه: د آدم درخانۍ حماسه او د دلي شهو دولسي رواياتو پر بنسټ په هنر مندانه ډول نظم شول.

(٦) د شرقي ادب ځينو داستانونو هم پښتو ادب ته لاره پيدا کړه او په دې سربېره د پارسي او عربي ژبو ځينې نور آثار هم په پښتو ترجمه شول، په پارسي او عربي سربېره له هندي ژبو سره هم دا مهال د پښتو شاعرانو روابط موجود وو.

(٧) د دې پړاو ځينې شاعران په خپلې مورنۍ ژبې سربېره په پارسي کې هم شعر وايي د ځينو، لکه خوشحال پارسي اشعار د پارسي ژبو لويو شاعرانو له اشعارو سره اوږه په اوږه روان دي. د لفظ او مانا او هنر له مخې کمبوتې نه لري او د پارسي ادب په لوړو اشعارو کې حسابېږي. په خوشحال خان خټک سربېره په دې پړاو پورې مربوطو نورو شاعرانو هم د هنر په ګانه پسوللي پارسي اشعار ويلي دي، لکه هجري بابا سعيد او نور...

(٨) په دې پړاو کې زموږ شاعرانو او ليکوالو په پښتو ژبه د هر ډول کتابونو د تاليف او ترجمې ضرورت احساس کړی و.

ځينې مهم تاريخي کتابونه، لکه د خوشحال بياض، تاريخ مرصع، د تاريخ اعثم کوفي پښتو ترجمه، اختيارات بديعي، قلب السير او نور وليکل شول يا ترجمه شول. د دستار نامې غوندې د يوه تعليمي هدف لرونکی جهاني اثر هم دغه مهال تأليف شو کليله ودمنه او نور ډېر کتابونه په پښتو ترجمه شول.

(٩) د دې پړاو ادبيـات د خپلـو خصوصياتـو، موضوعـي رنګـارنګۍ او هنـري ارزښتونو له پلوه د منطقې له ادبياتو سره ځنګونه وهي او په يقيني ډول په دې پړاو کې پښتو ادب د پرمختيا په لور اوچت ګامونه واخيستل او دا پړاو په واقعي ډول د پښتو ادبياتو پرمختيايي پړاو بلل کېداى شي.

ښوونکي دې شاګردانو ته وظيفه وسپاري، چې د خوشحـال بابـا او د دمخالـ[illegible] و [illegible] بې چې څه له دې کتابه زده کړي وي هغه وليکي.

ښوونکـ[illegible] د [illegible]جري له ديوان څخ[illegible] د خوشحال بابا پر مړينه ويلې مرثيه [illegible] کې ولولي.

[illegible]جري ولې بندي شو، ښوونکی دې پر دې موضوع له شاګردانو

((۵))

# د پښتو شعر نوی خوند او نوی رنګ
# رحمان بابا او دده عالمګیر سبک

یوولسمه هجري پېړۍ د پښتو ادبیاتو د رشد او پرمختیا لپاره یوه مناسبه پېړۍ وه. د پښتو ډېر لوی شاعران په دې پېړۍ کې راوزېږېدل لوی شول او په پښتو یې آثار ولیکل او اشعار یې وویل. په دغه پېړۍ کې د پارسي، عربي او ځینو هندي ژبو له ادبیاتو سره د پښتو او پښتنو شاعرانو روابط په لوړه سطحه کې موجود شوي وو. دپښتنو په فرهنګي چاپېریال کې هم ځینې داسې شاعران را پیدا شوي وو، چې د شعري عالي استعدادونو تر څنګه یې پراخه مطالعه هم درلوده. پارسي، عربي او ځینې هندي ژبې یې هم زده وې؛ ددغو ژبو په خاص ډول د پارسي آثارو مطالعه زموږ په فرهنګي کړیو کې دودوه او د پارسي د لویو شاعرانو، لکه: فردوسي، سنایي، نظامي، مولانا، امیر خسرو، سعدي حافظ او نورو د آثارو مطالعې د پښتو شاعرانو تر منځ رواج درلود.

د دغې پېړۍ ادبي تر لاسه شوي آثار دا رانښیي، چې پښتو شاعرانو هم دغه وخت په شعوري ډول د خپلو ادبیاتو دغني کولو او صیقلولو زیار یوست او د داسې آثارو د ایجاد خواته یې هڅه کوله، چې په سیمه کې د موجودو ژبو له روان ادبي پر مختللي بهیر سره همګامه وي او د پښتو خپل ملي اوزان او د پښتو ولسي اشعار، یاد خوشحال بابا په قول هغه اشعار چې ده یې جوړښت داسې تعبیر کړي دي: ((دوه مصراع یې د خفیف بحر دوه طال)) په غرو او د روکې ولسي بېسوادو شاعرانو ته پرېښوول شول، چې د خپل ولس دعامو پړګنو هنري ذوق پرتسکین کړي. خو په هغو سیمو کې چې د هغه عصر له شرایطو سره سم څه مدني او ښاري روابط موجود شوي وو سواد لږ څه عام شوی و نو د فرهنګي آثارو او شعري تجربو د تبادلې زمینې هم راپیدا شوې وې. په دغو ځایونو کې نو بیا دا زیار ایستل شوی ښکاري، چې پښتو شعرو ادب باید د شرقي شاعرۍ او شرقي ادب د یو جز په توګه له دغه ادبي جریان

سره پرېوه لار ېون وکړي.

که موږ د یوولسمې پېړۍ په جریان کې د پښتو ایجاد شوي آثار له نظره تېر کړو بې له شکه به موږ ته څرګنده شي، چې په دې پېړۍ کې ځینې داسې آثار په پښتو کې ایجاد شوي دي، چې د منطقي له ادبي آثارو سره په تله کې د اچولو جوګه دي. په دې پېړۍ کې دغه راتوکېدلې پرمختللې ادبي جریان بیا په دوولسمه پېړۍ کې د پرمختیا نویو پوړیو ته قدمونه کښېښودل. او نوي جریانونه او نوي ادبي او فرهنګي تمایلات یې را وزېږول.

په یوولسمې پېړۍ کې د راپورته شوو شاعرانو په ډله کې یو هم عبدالرحمن مومند دی، چې پښتانه له ډېرې مینې او زیاتې عقیدې ورته (بابا) وایي اود پښتنو په عامو ولسونو او فرهنګیانو کې په رحمان بابا مشهور دی. رحمان بابا د یوه ځانګړي سبك خاوند دی، د ده سبك د خپلو خاصو ځانګړتیاوو له پلوه په ولس او فرهنګي حلقو کې عالمګیر شهرت او محبوبیت وګاټه او د دوولسمې، دیارلسمې او څورلسمې پېړۍ ډېرو شاعرانو په ده پسې اقتدا وکړه. پښتنو شاعرانو د لسان الغیب، سلطان الشعراء او واف (بلبل) لقبونه ورکړل.

عبدالرحمن مومند د پټې خزانې د روایت په مطابق د عبدالستار زوی و. په ۱۰٤۲ هـ ق کال د پېښور د سیمو په بهادر کلي کې زېږېدلی دی؛ عبدالرحمن بابا مومند و په مومندو کې ابراهیم خېل او په ابراهیم خېلو کې د ویزی و.

عبدالرحمن مومند د راورتې په قول له خپل کلي څخه هزار خانې ته راغی او دلته اوسېده. پټه خزانه وایي چې رحمان بابا له ملا محمد یوسف یوسفزي څخه درس ووایه او د زده کړو لپاره یې کوهاټ او هندوستان ته هم سفرونه وکړل عبدالحلیم اثر د (رحمان بابا شاعر انسانیت) په مقدمه کې لیکلي دي، چې په ۱۰٦۱ هـ ق کال ملا محمد یوسف یوسفزي د کوهاټ شېرکوټ ته راغی او په ۱۰٦۲ هـ ق کال عبدالرحمن بابا مومند شېرکوټ ته ورغی او تر ۱۰٦٦ هـ ق کال پورې له نوموړي ملا محمد یوسف یوسفزي سره و.

اثر له نورو صوفیانو سره هم د رحمان بابا د ملاقات خبرې کړې دي.

رحمان بابا د خپل وخت رواجي علوم لوستي وو؛ په پارسي او عربي ادب کې یې مطالعه درلوده. رحمان بابا د تصوف له رموزو هم آګاه و.

که څه هم عبدالحلیم اثر رحمان بابا د کبرویه تصوفي طریقې پیرو بللی دی، خو د رحمان بابا تصوف سرې له خدای او د خدای له مخلوق سره د ناپایې مینې په اظهار کې خلاصه کولای شي. د استاد کامل په وینا: «له خدای د هغه له مخلوق سره مګبت د تصوف داسې اصول دي، چې له مذهب سره د بشپړ مطابقت، پاکی او عظمت له پلوه ډېر منل شوي دي»

د رحمان بابا د شاعرۍ پیغام همدا محبت دی. استاد روهي په خپله یوه لیکنه کې دا نظریه داسې تفسیر کړې ده، چې «رحمان بابا د یوه فقر ځپلي اولس زړه ته د خپل پیغام په وسیله لار پیدا کوي او د دغه پیغام اصلي جوهر مینه او محبت دی.

عشق او محبت نه یوازې د انسان د نجات وسیله ده، بلکې د جهان د تکوین لومړنی محرك هم دی، لکه رحمان بابا چې ویلي و:

دا جهان دی خدای له عشقه پیدا کړی

د جملـه وو مخلـوقاتو پـلار دی دا»

د پښتو دغه عظیم انسان دوست شاعر په ۱۱۲۸ هـ ق کال له دنیا څخه سترګې پټې کړې او د پېښور د هزار خانې په هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

له ده څخه په پښتو ژبه د شعر یو ښکلی دیوان را پاتې دی، چې په دوو دفترونو کې تنظیم شوی دی. دا دیوان په ګردو پښتنو کې مشهور او د احترام وړ دی او خلك فالونه پر باسي او خپل مرادونه ځنې غواړي. د همدغه مقبولیت نتیجه ده، چې د ده دیوان د پښتو تر هر بل اثر خورا زیات چاپ شوی دی او لا چاپېږي. د ده د دیوان له لوست څخه د هر ذوق خاوند خوند اخلي. په دې دیوان کې ښکلې غزلې، قصیده ډوله اوږدې غزلې، مخمس او مسبع پیدا کېږي.

د ده روان ساده او عام فهمه شعر د هرچا او هرې سویې د خاوند پر مذاق برابر دی. د ده شعر که آسان دی، خو ژور انساني مفاهیم یې پکې رانغښتي دي.

رحمان بابا د خپل شعر داډانې د جوړولو لپاره د ډېرو ښکلو او مناسبو کلماتو په انتخاب کې خورا لوړ استعداد لري. ده د خپل شعر لپاره داسې کلمات انتخاب کړي دي، چې پر هر لوستونکي او اورېدونکي ساحرانه اغیزه ښندي.

د رحمان بابا شعر که څه هم ساده دی، خو په ځینو کې په عین سادګۍ کې د هنر او ښکلا ټول معیارونه په پام کې نیول شوي دي او هغه داستاد الهام خبره: چې د رحمان بابا په زیاترو بیتونو او حتی: دیوه غزل په ډېرو بیتونو کې خیالونه او انځورونه په بېلابېلو ښو خو ډېر خونده وړ، ساده او په طبیعي ژبه کې څرګند شوي دي.

د رحمان بابا شعر د خپل ځانګړي هنري او ښکلاییز جوړښت او انساني محتوی له امله خپل خاص خصوصیات لري او دی په پښتو ادب کې د یوه نوي شعري سبك خاوند شاعر دی. ادبپوهانو د ده د سبك خصوصیات داسې شمېرلي دي.

(۱) د رحمان بابا شعري سبك، ابهام او پېچیده ګۍ نه لري. دبیان ډول او د انځور جوړونې شکلونه یې ډېر طبیعي او ساده دي.

(۲) په دې سبك کې د شعر د الفاظو په انتخاب کې زیار ایستل شوی دی؛ د شعر د خوند او رنګ لپاره یې ډېر ښکلي خو ساده او عام فهمه الفاظ انتخاب کړي دي.

(۳) د رحمان بابا سبك د واقعیتونو بیان ته زیاته توجه لري. له انسان سره مینه د

دې سبك په اشعارو کې په ښکلي انداز کې بيان شوې ده. اخلاقي، عرفاني او نور اجتماعي مسايل هم دمې او معشوق له خبرو سره يو ځای د ده د سبك په مربوطو اشعارو کې بيان شوي دي.

د رحمان بابا سبك په ټولو پښتنو کې دومره ومنل شو، چې د ده د زمانې او بيا په را وروسته دوو دريو پېړيو کې له افغانستان، پښتونخوا، بلوچستان او په هندوستان سربېره، حتی په بخارا او ماوراءالنهر کې ځينو اوسېدونکو پښتنو شاعرانو دغه سبك ومانه او د رحمان بابا د نوي خوند او نوي رنګ لرونکي شعري سبك عالمګير خاصيت په عمل کې ځان څرګند کړ او هغه د انګرېز ختيځ پوه پادري هيوز خبره چې يې ويلي و:

«چېرې چې پښتو ژبه ويونکي لري، هلته د محبوب شاعر رحمان بابا اشعار هم رواج لري او اورېدل کېږي».

د رحمان بابا ساحرانه شاعري همدومره قوت لري او د دې قوت يو علت دا دی چې رحمان بابا عاشق دی، رښتينی عاشق او همدې عشق د ده وينا ته خاصه پياوړتيا وربښلې ده. دا بيتونه د ده دعاشقانه مشرب څه څرګندونه کولای شي:

که په ګنج د شاهي فخر شهريار کا
عاشقان يې د دلبرو په رخسار کا
خرقه پوشو په خرقه کې دی موندلی
هغه حظ چې په دنيا يې دنيا دار کا
پتنګانو لره خدای په اور کې ورکړ
هغه عيش چې يې بلبله په ګلزار کا

د پښتو ژبې کومو شاعرانو چې د رحمان بابا د خوږې او زړه وړونکې شاعرۍ پيروي کړې ده، د جغرافي سيمو پر اساس داسې ښوول کېږي:

د پښتونخوا په سيمو کې د رحمان بابا د ژوند په مهال کې د ده د خوږه وينا مشهوره وه او شاعرانو د ده په پرانېستلې لاره قدمونه ايښوول.

په دې سيمه کې د رحمان بابا د ادبي سبك په پيروانو کې پخوانی سړی يونس خيبري دی، چې د پټې خزانې د روايت له مخې يې پلار نورمحمد خان نومېده او موسی خيل و. پلار يې د کسي له غره څخه راغلی و او په خيبر کې اوسېده.

د زوکړې نېټه يې ۱۱۰۰هـ ق يا ۱۰۹۹هـ ق کال راوزي، زموږ اديبوهانو يونس د رحمان بابا په مستقيمو شاګردانو کې حساب کړی دی. خو اديبوهان عقيده لري، چې يونس د رحمان بابا داسې شاګرد دی، چې په خپلو رنګينو اشعارو سره يې هنري معيار کله تر استاد اوړي.

د یونس په شعر کې د رحمان بابا د شعر د روانی او عام فهمی اثرات هم شته. خو د دې تر څنګه د یونس اشعار ډېر نازک خیالونه هم پالي. د ده شعر د هنر او ښکلا په ټولو ښېګڼو سمبال دی.

یونس په پښتو ژبه د شعر یو ښکلی دیوان لري، چې زیاتره غزلې پکې راغلې دي. خو مخمس، معشر او د پښتو د ولسي شعر پر اوزانو برابر اشعار هم پکې شته. دا دیوان په کابل کې چاپ شوی دی.

د ده په دیوان کې عشقي، اخلاقي، تربیه یي، اجتماعي، دیني اشعار شته. خو یو نیم له پښتني احساساتو ډک شعر هم پکې موندل کېږي، لکه:

د میدان په ورځ چې تېښته کا له جنګه
پاتې هېڅ نه شي باقي له نام و ننګه
له میدانه تېښته کار دی د زنانو
مرد به نه تښتي له غشي له تفنګه

د خپل استاد رحمان بابا مرثیه یې هم ډېره سوزناکه ویلې ده. چې څو بیته یې دا دي:

چې پیدا له اشنایی سره هجران شه
خکه داغ مې په خاطر باندې ارمان شه
انجمن د ښو یارانو نوبهار دی
جدایي وربانـدې پیر و که خزان شه

د همدې مرثیې په پای کې یې ویلي دي:

په پښتو شعر یې هسې نامه یووره
چې خبر یې په اشعار ایران، توران شه
پر لذت شعر به څوک کاندي یونسه
چې په مرګ څنې خاموش عبدالرحمان شه

استاد رشاد د همدې مرثیې له مخې د رحمان بابا د مرګ کال استخراج کړی دی. د یونس د هنر یو بل کمال دا دی. چې دی په شعر کې د معماوو په ویلو کې خاص مهارت او د استادی درجه لري. دده په دیوان کې ډېرې زیاتې معماوې راغلې دي. چې حل او څېړل یې د یوه خانته اثرد لیکلو ایجاب کوي.

مهین خلیل هم د رحمان بابا د سبک پیرو شاعر دی. د بابا د شاعرۍ په باب یې نظر دا دی:

د رحمان سره بني په څېر به نه شي
که ختک له څرمه واړه شاعران شي

مهين د ديوان خاوند شاعر دی؛ خو ديوان يې تراوسه نه دی چاپ شوی. خطي نسخې يې په هند کې شته. ده پر ديوان سربېره په ۱۱۲۷ هـ ق کال د تذکرة الابرار په نامه يو بل کتاب هم نظم کړی دی، چې دا کتاب هم تراوسه نه دی چاپ شوی او خطي متنونه يې په کابل، پېښور او هند کې موندل کېږي.

په دې کتاب کې مهين د شرقي فرهنګ ځينې کيسې او حکايات په پښتو نظم بيان کړي دي. په تذکره کې راغلي حکايات د شيخ فريد الدين عطار له آثارو، د نخشبي له طوطي نامې او نورو مشهورو کتابونو څخه اخيستل شوي دي. مهين د پېښور د سيمو د خليلو د قبيلې يو عالم شاعر و او د تصوف په لارو يې هم پوهېده. د کبرويه تصوفي لارې پيرو و او په دې لاره کې يې له شيخ ابراهيم خليل څخه لاس نيوی کړی و.

مهين خليل په ديوان او تذکرة ابرار سربېره دوې الفنامې هم ويلې دي، چې يوه يې د قصيدې په چوکاټ کې ده او په ۱۱۲۸ هـ ق کال کې يې نظم کړې ده. بله يې هم په ۱۱۴۰ هـ ق کال د رباعياتو په چوکاټ کې بشپړه کړې ده. د ده ژوند هم تر همدې وخته يقيني ښکاري.

د مهين په تذکرة ابرار کې د بلخ د مشهورې شاعرې رابعه بلخي د مينې داستان هم په پښتو نظم اړول شوی دی. په پښتو کې د رابعې او بکتاش کيسه همدغه مهين نظم کړې ده. د مهين په اشعارو کې غزل، قصيده، مثنوي، رباعي او نور ليدل کېږي: د ده په آثارو کې په حکاياتو سربېره عشقي، ديني او اجتماعي مسايل خان ښکاروي او عرفان هم د ده په شعر خپلې وزرې غوړولې دي، په خپله يوه قصيده کې يې خپله ټولنه هم نقد کړې ده، ده ويلي دي:

پښتانه چې خوانده شي ملکان شي
چې په شرم په ننګ ورشي هلکان شي
که په درست کلي کې يو سړی ښه غوند که
له غصې نور کچړی لره روان شي
اربابان تر ملکانو بې انصاف دي
تر حاکمه پوري وارد ظالمان شي
په دربند کې چې غله وي واره واخلي
باقي پاتو په دهقان وستکاران شي
خوک له ويرې ورته غږ کولای نه شي
پرې تاوېږي خو خبر پرې قرضداران شي

مهین، لکه چې خپله یې ویلي دي:

«شاعران دغوري دخښي ډېردي
په ساده ژبه ویل مهین خلیل کړه»

ساده اشعار وایې او په ساده ګی کې د رحمان بابا د سبك په پیروانو کې خان دروي. د ده اشعار د هنر څه مالکه خولري، مګر دده خپله ادعا ډېره لوړه ده، مهین ویلي دي:

مرده کان به آفرین وربانډې وکړه
د مهین غزل که ووايي خوشحال ته

د پښتونخوا په سیمو کې د رحمان بابا د سبك پیروانو په ډله کې معزالله خان مومند داسې شاعر دی، چې په پښتو ژبه ترې د اشعارو دیوان پاتې دی او په پارسي او اردو ژبو د شعر دفترونه لري. ارباب معزالله خان مومند د عبدالله زوی د محمود خان لمسی د دوولسمې هجري پېړۍ په حدودو کې یې د پېښور د سیمو په کوټله محسن خان نومې خای کې ژوند کاوه.

د ده پښتو دیوان درې ځله چاپ شوی دی او په دیوان کې یې د غزلو برخه درنه ده. نور شعري ډولونه یې هم په دیوان کې شته؛ دی رحمان بابا او د ده شعر ته ډېر معتقد سړی ښکاري، لکه چې ویلي یې دي:

که د شعر کرامت له چا نه غواړې — معزالله د رحمان شعر کرامت دی
د تمامې پښتونخوا له شاعرانو — معزالله عبدالرحمن دی منتخب

د ده شعر د هنر په لحاظ هم ښکلې لري او کلام یې پوخ دی. په موضوعي لحاظ هم د ده په شعر کې رنګارنګي لیدای شو.

د یوې غزلې څو بیته یې دا دي:

خاموش یم، هم ګویا یم، لکه خط چې د کتاب
هم ناست یم، هم په تله یم لکه خس په سر د آب
هم خاندم هم ژړا کړم، د وریځ په دود مې کار شه
هم سم یمه هم کوږ یم، لکه زلفې د احباب
هم ډېر یم کمیاب یم، لکه قول د معشوقانو
سیراب یم هم تشنه یم، لکه وصل څوك په خواب
هم سوځم هم غږ نه کړم معزالله چې، لکه شمع
پښې بندې په رفتار یم، لکه زروې په حساب

اخوند ګداد دوولسمې پېړۍ شاعر و او ژوند یې تر ۱۱۷۲ هـ ق کال پورې یقیني ښکاري. ده په پښتو مثنوي دنافع المسلمین په نامه یو کتاب لیکلی دی، چې فقهي

شرعي او عقیدتي مسایل یې د آیاتو او احادیثو او نورو شرعي احکامو په رڼا کې پکې څېړلي دي. دا کتاب په وارو وارو چاپ شوی دی چې د ادبي تاریخ لپاره د استفادې ډېر ورنه کټل کېږي، خو په همدې کتاب کې د شاعر ځینې ښکلې غزلې، رباعي، قصیده دوله اشعار، ترجیع بند او نور پیدا کېږي. موږ ار کېږو چې د همدغو اشعارو له مخې پرده بحث وکړو لکه ادب پوهانو دده ددغه لاندې بیت:

"زه ګدایي په خېل خای قایم مقام کړم
له جهانه چې شاعر عبدالرحمن لاړ"

له مخې دی د رحمان بابا د سبک په پیروانو کې دروليی دی. د ده شعر ځینې ښکلاوې او خاص ادبي نزاکتونه لري: دا لاندې رباعي یې د ښکلا او هنر له پلوه ډېره لوړه ارزیابي کېدای شي.

| | |
|---|---|
| د سحر چرګه خور شي په کومـي | چې تا نارې کړې دلبر مې د رومي |
| یو مې دلبر خې بل رانـه زره وري | زره مې په داورې چې دلبر نومي |

حافظ الپوری هم ادبي څېړونکود رحمان بابا د سبک په پیروانو شاعرانو کې ګڼلی دی. د حافظ اصلي نوم معظم و او د سوات د کانا غوربند په الپوري کې اوسېده. د ژوند زمانه یې مورخینو احمدشاهي عصر (۱۱۶۰ ـ ۱۱۸۶هـ ق) ښوولې ده او دا یې هم ویلي دي چې د تیمور شاه دراني (۱۱۸۶ ـ ۱۲۰۷هـ ق) په زمانه کې هم ژوندی و.

دی د شعر یو دیوان لري، چې څو څله چاپ شوی دی. د ده په دیوان کې د وعظونو او نصایحو پله درنه ده. د عشقي او عرفاني موضوعاتو د بیان خوا ته یې هم توجه کړې ده. د ده دیوان هنري او ژبني ارزښتونه ډېر لري، چې رواني او په ځینو برخو کې ساده ګي هم ورسره مله ده د دیوان دوه بیته دا دي:

برګ مېوه مې توی شـول د پیرۍ خزان لغړ کړم
تیـر، لکـه برېښنا شــوې د خوانی اردي بهشته
سود ســودا هغـــه کـا چې بازار له بها یوسي
تـه چې دست خالي خې په بازار کې وریا خه شته

نجیب سربندی د دوولسمې پېړۍ شاعر دی. د شعر دیوان یې تر موره رارسېدلی دی چې په ۱۱۷۳ع کال د پېښور د پښتو اکاډمۍ له خوا چاپ شوی دی.

دادیوان غزلې او رباعیات لري او موضوعي خصوصیات یې هم د دوولسمې پېړۍ دنورو شاعرانو له دیوانو سره یو شی دي. د رحمان بابا د سبک په پیروانو کې شمار شاعر دی او خپل خان په دې دول د بابا دامنګیر بولي:

| | |
|---|---|
| د شعر او وسر حلقه عبدالرحمــن | زه نجیب د ده د شعر دامنګیر یم |

نجیب د پېښور د سیمو په سربند نومي خای کې اوسېده او ژوند یې تر ۱۱۷۷هـ

ق کال پورې يقيني ښکاري. د ده شعر رنګين، ښکلی او د نازکو تشبيهاتو او ښکلو استعارو له پلوه ډېر لوړمعيار لري.

دا يې هم د رحمان بابا د شعر په خم کې يوه رنګېدلې رباعي:

د ستا بانـه دي، لکـه خـا رونـه — زما پـر زړه ږدي تـل پـرهـارونـه

رخسار دې کنج دی نجيب ورتلی نه شم — چې دې زلفينې پـرې ښامـارونـه

عبدالعظيم سواتي، د ديوان خاوند شاعر د رحمان بابا د شعر د عالمګير سبک يو بل لاروی دی. بابا ته يې خپل عقيدت داسې وړاندې کړی دی:

د مومنـد عبدالـرحمن صـاحب پـه مثـل
هـې خـوږ زبـان زمـا واى دريغـه دريغـه
زه عظيـم بـه خـاص غلام د دې مومنـد وم
اوس ژونـدى کـه پـه دنيـا واى دريغـه دريغـه

عبدالعظيم د سوات د سيمو اوسېدونکی و او د زېږېدو نېټه يې له ديوانه ۱۱۶۷هـ ق کال راوزي، تر ۱۲۵۳هـ ق کال پورې ژوندی و. د شعر ديوان ځنې پاته دی، چې څو ځله په هند او پاکستان کې چاپ شوی دی. عبدالعظيم د پېښور په تهکال کې درس ويلی و او څپله يې هم د تدريس شغل درلود. شعري طبع يې بې تکلفه ده. روان، ساده او په ساده ګۍ کې يې ښکلي اشعار ويلي دي. په ديوان کې يې غزلې، مخمس او نور اشعار پيدا کېږي، دا يې دوه بيته دي:

په جهان چې ستا د حسن کاروان پرېووت
د هيبتـه پـه ګلونـو خـزان پرېـووت
چې دا ستا ښکلی ګلشن يې په نظر شو
عنـدليـب لـه محبته حيران پرېووت

ميا نعيم متی زی د محمد شعيب زوی او د محمد سعيد لمسی دی چې د شاه زمان په دوران (۱۲۰۷ ـ ۱۲۱۶هـ ق) کې يې د شاعرۍ هنګامه توده وه. ميا نعيم د پېښور د سيمو د خليلو د سيمې اوسېدونکی و. د پښتو د شعر ديوان ځنې پاته دی. ده خپل ديوان په ۱۲۳۰هـ ق کال کې بشپړ کړی دی. په دې ديوان کې غزلې، قصيدې، مخمس او رباعي موجودې دي. اشعار يې عشقي، عرفاني او اخلاقي رنګ لري، د هنر له پلوه هم دا اشعار پاته نه دي او ميانعيم د پښتو په ډېرو ښو شاعرانو کې د درېدو ځای لري. ميا نعيم د رحمان بابا د سبک په پيروانو کې ولاړ سړی دی.

شعر يې خوند او رنګ دواړه لري، دا يې يو ښکلی بيت دی:

زانګي پکـې زړونـه د عاشقوسره پـه وينـو
ته چې چېرې کښېږدې سره ګلونه په اوربل

میا نعیم پارسي اشعار هم لري او په پارسي اشعارو کې یې هم قوت شته.

د کوهاټ په خنکل خیلو کې ښخ مطیع الله پیره خیل د رحمان بابا د سبک بل د دیوان خاوند شاعردی. چې د دوولسمې پېړۍ په اواخرو اود دیارلسمې په لومړۍ نیمايي کې یې ژوند کړی دی. دی د تیمورشاه او شاه شجاع یادونه کوي، او ادبي مورخان یې ژوند تر ۱۲۵۰ هـ ق کال پورې یقیني ګڼي.

مطیع الله په پښتو، پارسي او هندکو ژبو اشعار ویلي دي. په پښتو ترې یو دیوان پاتې دی، چې غزلې، رباعي، مخمس او نور یکې شته. موضوعات یې اخلاقي، تاریخي، عشقي اجتماعي او دیني دي. د مطیع الله دیوان په ۱۹۸۶ کال په پېښور کې چاپ شوی دی. له دې دیوانه سربېره د ده یو مناجات ډېر مشهور دي، چې په لسکونو چاپونه یې لیدل شوي دي، مطیع الله یوه نورنامه هم لري. د مطیع الله دشعر د هنري ارزښتو په خصوص کې باید دومره ووایو، چې زمونږ ادیبوهانو، لکه استاد رښتین ده ته د خوشنوا بلبل لقب ورکړی دی. دی د رحمان بابا د سبک په پیروانو کې د ښې وینا خاوند دی، دا یوه سوزناکه رباعي یې دلته راوړل کېږي:

| | |
|---|---|
| هېر به دې نه کړم شیرینــه یاره | ته ما هېر مه کړه د خدای د پاره |
| زه مسافـر شوم د هند د لوري | تــه خــوشحالېږې د نــورو یاره |

ثاني رحمان، یا عبدالرحمن اوکاله رحمان بابا سره د زیاتې مینې له امله ځان ته ثاني رحمان ویلی دی. د ادبي ستوري ښاغلي مؤلف یې د ژوند زمانه دوولسمه پېړۍ بللې ده. له دغه شاعر څخه د شعر دوه پنډ دیوانونه مونږ ته راپاتې دي چې تراوسه نه دي چاپ شوي او خطي نسخې یې د پېښور د پښتو اکاډمۍ په کتابخانه کې ساتلې کېږي.

ثاني رحمان شیخ رحمکار کاکا صاحب ته ډېر عقیدتمند دی، کېدای شي دی هم کاکا خېل او د نوښار د کاکا صاحب د زیارت د کلي اوسېدونکی وي.

ده په خپلو اشعارو کې د رحمان بابا پیروي کړې ده او د رحمان بابا دلې په دیوان لرونکو شاعرانو کې مونږ ثاني رحمان هم نه شو هېرولای عشقي غزلو کې یې هنري ښکنې هم لیدل کېږي، د یوې غزلې دوه بیته یې

نـن یـرغل د شاه د حسـن پـه کـوم لـور دی
چې پیزوان یې د سرو شوندو په سر سوور دی
کـه پـه ښکتـه عـالم وینـې یـا پـه پورتـه
پـه دا واړه کـې د شـاه د حسـن شـور دی

د پښتونخوا په سیمو کې اوسېدلي د رحمان بابا ځینې هغه پخواني پیروان مو لور وښوول چې دشعر دیوانونه یې مونږ ته رسېدلي دي. مګر په همدې دوولسمه

پېړۍ کې مور د رحمان بابا پیرو خینې نور شاعران هم پېژنو، چې د پښتونخوا د شپږمو اوسېدونکي دي، خو دیوانونه یې ورک دي او څو محدودې غزلې یې راپاته دي. د بابا د شعر د پیروانو په دغه ډله کې مور ته د غفور نومي شاعر نوم تر نورو دمخه مخې ته راځي. دا شاعرد دوولسمې پېړۍ بلل شوی دی. خینې غزلې یې په کلید افغاني او ګلزار روه کې چاپ شوې دي. د رحمان بابا د سبک ښه پیرو دی: په غزلو کې یې مستي، رواني او خوږلت لیدل کېږي: دایې هم د یوې مستانه غزل دوه بیته:

که تاختونه دارنګ تل د یار چشمان کا
خود به ښهر د زړکي زما ویران کا
هسې رنګ دې د لبانو په مي مست یم
چې مې فخر په خمار تل خماران کا

جمال خان د پښتو بل دیوان ورکی شاعر دی، چې له لاس ته راغلو غزلو څخه یې ادبي مورخانو د رحمان بابا د سبک په پیروانو کې حساب کړی دی. ښاغلي رفیع وېلي دي چې د ده په ترلاسه شوي کلام کې اخلاقي وېناوې او د مینې نغمې په څپو دي. داشاعر د دوولسمې پېړۍ بلل شوی دی. د ادبي ستوري په دوهم توک کې یې غزلې چاپ شوې دي: د یوې غزلې یو بیت یې دا دی:

خراب زړه چې مې بیمار و هغه نه دی چې مدام په انتظار و، هغه نه دی

د ادبي ستوري په لومړي توک کې چې د نیازمحمد، عبید او نصرت نومو شاعرانو کومې غزلې چاپ شوې دي. د دې کتاب ښاغلي مؤلف دا غزلې د رحمان بابا له ساحرانه شعر نه متاثرې بللې دي او دغه درې تنه شاعران یې هم د بابا په پیروانو کې شمارلي دي.

دغه درې تنه شاعران د دوولسمې پېړۍ د حدودو ښکاري. د دوی دیوانونه ورک دي، خینې غزلې یې د ملا ښایسته خان له خطي جونګ څخه تر لاسه شوې دي. د هره یوه د یوې یوې غزلې مقطع لاندې راورل کېږي.

نیاز محمد دې ودیدن ته ورې پروت دی
ته سخي یې پرې کوه کرم تازه
سر لوېي به د عبید حاصل شي هاله
چې په غم د خپل حبیب پرېوزي سر تور
په خندا خندا دې زړه د نصرت یوور
اوس په چېرې له تاخې څو یې ورنه کړې

د رحمان بابا په پیروانو کې شیخ نامدار د پخې وینا خاوند او د ده د قام قبیلې

شاعر و، لکه چې خپله يې ويلي دي:

وکښــو دا غــزل يــو دويــزي پــه دابيــاض کــې
دی چې پيدا شوی د رحمان مومند په قام کې

شيخ نامدار د رحمان بابا معاصر بلل شوی دی يوه غزله يې ښاغلی همېش خليل موندلی ده او د ورکې خزانې په دوهم ټوك کې يې چاپ کړې ده. د دې غزلې مطلع دا ده:

عشق کړم هسې رنګ په محبــت د دلارام کــې
مې څښمه له سوخته چې مدام د زره په جام کې

د پښتونخوا په سيمو کې ان د څورلسمې پېړۍ په دوران کې هم شاعرانو پـه خپلو اشعارو کې د بابا د شعر پيروي کوله او د بابا د ايستلې شعري لارې په پيروۍ يې خپل ديوانونه بشپړول.

د څورلسمې پېړۍ په جريان کې ځينې نور ديوان لرونکي شاعران هم موږ ته معلوم دي. چې د بابا د خواږه شعري سبك پيروان او دده د ادبـي لارې لاروي وو. په دې شاعرانو کې يو تن عمران پېښوری دی، چې د څورلسمې پېړۍ په جريان کې يې د پېښور په بهادر کلي کې ژوند کړی دی او د شعر ديوان يې په ۱۹۰۲ ع کـال کې بشپړ کړی دی. د ده په ديوان کې له ديواني غزلو او نورو شعرونو سربېره ولسي چاربيتې هم شته، د مولانا جلال الدين بلخي د مثنوي معنوي ځينې حکايتونه يـې د ولسي چاربيتو په چوکاټ کې ترجمه کړي دي.

دعمران ديوان تر اوسه نه دی چاپ شوی؛ خطي نسخه يې د پېښـور د پښتو اکاډيمي په خطي مجموعه کې موجوده ده.

عمران رحمان بابا ته خپله اراده داسې څرګنده کړې ده:

ما عمران وته دا نور شاعران څه دي — بې حميد او له بابا عبدالرحمانــــه

د مردان د خانانو د کورنۍ يو فرد، چې د ديارلسمې پېړۍ پـه اواخـرو او د څوارلسمې پېړۍ په اوايلو کې ژوندی و، شاد محمد خان نومېده. د عبدالحليم اثر له تحقيق سره سم د ده د پلار نوم ميرافضل خان و، چې هغه بيا داحمد خان او هغـه د لښکر خان اوهغه بيا د فتح خان زوی و.

شاد محمد خان دپښتو ژبې شاعر او دانشمند سړی و. له شاعرانو عالمانو سره يې مينه وه اود شاعرانو په روزنه کې يې هم برخه اخيسته. د معارج النبوه پښتو منظومه ترجمه يې په ۱۳۱۲ هـ ق کال بشپړه کړې ده او دی هم تر دې نېټې وروسته وفات شوی دی. د انوارسهيلي پښتو منظومه ترجمه د دبير دانش په نامه ترې پاتې ده. لـه دې سربېره شاد محمد خان دپښتو شعر يو ديوان هم لري. چې په دې ديوان کې

دده غزلې راغلې دي او دا ديوان د پېښور پښتو اکاډمې چاپ کړی دی. د دوکتور خيال بخاري د تحقيق له مخې شاد محمد خان په خپله شاعرۍ کې د رحمان بابا لار نيولې وه؛ د شاد محمد خان ديوان هم د رحمان بابا په پيروۍ داسې شروع کېږي.

کوره هسې پاك سبحان دی رب زمــا    چې صاحب دکل جهان دی رب زما

شهنواز د پېښور په لتو کې بل اوسېدلی دخوارلسمې پېړۍ شاعر دی. ده هم د رحمان بابا پيروي کړې ده. ځينې غزلې يې په بهار نوروزي او بهار ګلشن کې چاپ شوې دي. د رحمان بابا په پيروۍ يې ديوې ويلې غزلې يو بيت دا دی:

هر چې زړه يې ناقرار وي ځه به خوب کــا
دوب په غم چې د ديدار وي ځه به خوب کا

فضل شاه د ديوان خاوند د رحمان بابا پيرو شاعر دی، ديوان يې پخوا په هند کې چاپ شوی دی.

(دهشنغر ادب) نومي تذکرې دليکوال وينا مطابق فضل شاه د چارسدې د قاضي خېلو اوسېدونکی و. پلار يې عبدالمنان نومېده او په ۱۹۳٦ ع کال وفات شوی دی. د يوې غزلې مقطع يې داده:

زه فضل شاه په غم کې غمجن پروت يم    خپل وصال که وما راکړي ګل فام بيــا

باز محمد بنګښ د بابا د متاخرو پيروانو بل فرد دی، چې دبنګښو قبيلې ته منسوب و.په ۱۸٤۰ ع کال په تيراه کې وزوکيد او په ۱۹۱۷ ع کال د کوهاټ په هنګو کې مړ شو. پلار يې سردار محمد نومېده؛ د اشعارو ديوان ځنې پاته دی. د رحمان بابا پيرو او تابع شاعر و، ده ويلي دي:

بازخان هيڅ سيالي د شعر له چانه کا    دی تابع له شاعرۍ درحمن راغــي

له پښتونخوا چې ورتېر شو، نو د اوسني افغانستان په سيمو کې هم د رحمان بابا د زړه راکښونکي شعر مينه وال او خوښوونکي تر هر بل خايه ډېر وو او دي.

د رحمان بابا په ژوند لا د ده کلام دافغانستان لويديځو سيمو ته رسېدلی و اود افغانانو ملي مشر ميرويس نيکه يې د ۱۱۱۹ هـ ق شاوخوا پر ديوان فالونه نيول.

د بابا د شعر همدا مقبوليت، شهرت او د ده شعر ته د افغانانو د ژور احترام نتيجه ده، چې نه يوازې د افغانستان پښتانه، بلکه زمونږ نور ورونه هم د بابا له نامه او شعر سره آشنايي لري او د نورو ژبو واعظان هم د بابا پر شعر تکيه کوي او د خپل قـول د پياوړتيا لپاره د ده اشعار د وعظ پر منبرونو خلکوته وايي.

د افغانستان په سيمو کې له دوولسمې پېړۍ نه نيولې ان تر څـورلسمې پېړۍ پورې د دغه هېواد په ډېرو سيمو کې پښتنو شاعرانو د بابا د شاعرۍ دسبك پيروي کړې ده او خپلې وينا ته يې د بابا د خوږې او ښکلې وينا په برکت ښکلا او خوږلت ور بښلی دی. په کندهار، زابل، ننګرهار، کابل او هرات کې اوسېدلو ځينو شاعرانو د

بابا د سبك پيروي كړې ده. چې زه به دغه شاعران دلته پرله پسې وښيم:

عبدالنبي بيتنی دمحمد اسماعيل زوی د كندهار د ذاكر اوسېدونكی و.د ژوند زمانه يې ديارلسمه پېړۍ ښوول شوې ده.د ديوان خاوند شاعر و او ورسره خپله زاهد اوعابد سړی ښكاري. د ده د شعر ديوان تر اوسه نه دی چاپ شوی. خطي نسخه يې د افغانستان په ملي آرشيف كې شته، دی د رحمان بابا پيرو شاعر دی. د بابا افكار يې په خپله ژبه او خپل سبك بيان كړي دي او د بابا د شعر له ښو پيروانو څخه ګڼل كېږي. له دې سربېره عبدالنبی بيتنی د سلوك اوتصوف پر لارو هم يون كړی دی او د پښتانه شعراء د ليكنو له مخې عبدالنبي په متصوفو شاعرانو كې اوله درجه لري او د دغسې مضامينو په بيان كې مقتدر دی.

ده ويلي دي:

ويتنګ وته د اور په مخ جلـوه كـا | د چمن په صورت رازكا لـه بلبلـه
ومجنون ته د ليلی په شكل زېـب كا | ومنصور وته منصور وځلېـد لـــه

ګل محمد كاكړ، دشمس العابدين په نامه يو كتاب په پښتو ليكلی دی، چې عرفاني او اخلاقي مضامين يې پكې بيان كړي دي. خو د دې كتاب په پای كې ده ځينې غزلې هم ويلي دي، چې د دغو غزلو سبك د رحمان بابا له شعري سبك څخه اغېزمن دی؛ نو ځكه اديپوهانو دی د رحمان بابا د سبك پيرو بللی دی، د يوې غزلې مقطع يې داده:

ګل محمد له هغه غمه نه خلاصېږي | ستا لا نور سوي داغونــه دي پرځه

ګل محمد كاكړ د كندهار اوسېدونكی و، او له ۱۲۰۰ هـ ق كال نه وروسته يې ژوند كړی دی.

د ديارلسمې هجري پېړۍ په دوران كې د كندهار پـه سيمـو كـې داوسېدلـو شاعرانو له ډلې څخه حاجي جمعه باركزی د جذابې ويناخاونـد شاعر دی. د اشعارو يو ښكلی ديوان لري، چې د رحمان بابا د ديـوان پـه څېر يـې پـه دوو دفترونـو كـې ترتيب كړی دی. د ده په ديوان كې غزلې، قصيده ډوله نظمونه او متفرقات شته او نور شعري انواع هم پكې راغلي دي.

د حاجي جمعه په ديوان كې تاريخي،اجتماعي، عشقي، ديني، اخلاقي او عرفاني موضوعات بيان شوي دي. د ده ديوان په ۱۳۶۰ هـ ق كال په كابل كې چاپ شوی دی.

دی په تصوف كې د نقشبنديه طريقې پابند ښكاري او د دې طريقې سلسله يې په خپل يو نظم كې بيان كړې ده او شعري سبك يې د رحمان بابا د سبك تابع دی. په شعر كې يې دروانی ترڅنګه ښكلا هم ليدل كېږي شاعرانه خيالونه يې ښه او د انځور كري قوت يې هم بد نه دی.

حاجي جمعه بارکزی د کندهار په ماشور کې اوسېده او په ۱۲۵۹ هـ ق کال په مکه معظمه کې وفات شوی دی؛ د یوې غزلې دوه بیته یې دادي:

نن د باغ په لوري تله کا صنم ورو ورو — په خمار خمار کاته کا صنم ورو ورو
سره کلان به د باغ حسن ځنې پور کا — که یې ولیده د حسن ارم ورو ورو

عبدالوهاب اڅکزی د دراني تیمور شاه په زمانه کې په کندهار کې اوسېده؛ د پښتو شاعر و. دیوان یې درلود، چې ځو پاڼې یې ښاغلي رفیع پیدا کړې دي. د ده له لاس ته راغلیو اشعارو څخه ښکاري، چې دی هم د رحمان بابا د شعري سبك له پیروانو څخه دی او هغه څه چې د دې لارې باني ویلي دي، عبدالوهاب اڅکزي هغه په لږ تغیر سره خپل کړي دي. د رحمان بابا په استقبال یې دیوې ویلې ښکلې غزلې څو بیته:

په غمزو د برندو سترګو دې اسیر یم — چې بندي د تورو زلفو په زنځیر یم
دا چې تا رقیب وغورځوته نږدې کړ — لا هغه زمان مشغول، د ځان په ویر یم
ګدایي دې د دیدن کړم په هجران کې — په وصال کې د تمام جهان امیر یم

عبیدالله الکوزی، دعبدالجلال زوی دی. چې د دیارلسمې پېړۍ په حدودو کې یې په کندهار کې ژوند کاوه او په ۱۲۹۷ هـ ق کال یې د رشید البیان په پیروۍ د محبوب الصالحین په نامه یو کتاب په پښتو مثنوي نظم کړی دی. له دې کتاب سره زمونږ ډېر کار نشته. خو د ویل ور خبره دا ده چې ده ځینې غزلې هم ویلې دي او دا غزلې د خپل جوړښت له پلوه د رحمان بابا د سبك اثرات مني.

خدایداد محمد زی د کندهاریو شاعرانو په ډله کې د رحمان بابا د سبك بل پیرو شاعر دی. د ده ژوند یې تر ۱۳۲٤ هـ ق کال پورې یقیني ګڼلی دی.

خدایداد د سردار عبدالجلیل زوی، د عبدالقادر خان لمسی، د عبدالامین خان کړوسی د سردار رحیمداد خان بن حاجي جمال خان کوسی و. دی صوفي مشرب سړی و چې د دیارلسمې پېړۍ په اواخرو او د څورلسمې پېړۍ په اوایلو کې یې په کندهار کې ژوند کاوه. پښتو غزلې او یو مخمس یې په یوه خطي جونګ کې لیدل شوي دي. د شعر په سبك کې د رحمان بابا د شعري لارې لاروی دی. ده د رحمان بابا پر یوې غزلې مخمس ویلی دی، چې د پیل بند یې دا دی:

ګوره هسې لوی ستار دی رب زما — ګناه کار لره غفار دی رب زما
د عالم پروردګار دی رب زما — ګوره هسې کردګار دی رب زما
چې صاحب د کل اختیار دی رب زما

په هرات کې اوسېدلی افغان شاعر جدید توخی هم د رحمان بابا دلارې پیرو دی او د بابا د وینا په باب د ده خپل نظر دا دی:

دی رحمان شاعر یارانو — سر حلقه د شاعرانو

که خدای ماکاندې حسابه د رحمان له مریدانو

جدید توخی هم د دیوان خاوند شاعر و او یو مردف دیوان ترې پاتې دی، چې یې په هرات کې تدوین کړی دی. په دې دیوان کې غزلې، رباعي، مخمس، مستزاد او ولسي چاربیتې پیدا کېږي. مضامین یې اخلاقي، اجتماعي، انتقادي، تاریخي او عشقي دي. د هنر مالکه یې هم پرځینو غزلو د وربدلې ښکاري؛ دیوې غزلې دوه بیته یې دا دي:

نن چې نه کورې وماته څه بلا سوه
که دې نوې اشنایي له چا پیدا سوه
معلومېږي کم طالع سومه دلبره
چې اول دې راته مخ و، اوس دې شا سوه

جدید دتیمور شاه سدوزي (۱۱۸٦.۱۲۰۷ هـ ق) په دوران کې زوکړی دی او د دیارلسمې پېړۍ شاعر دی.

عبدالغفار هوتك د کلات د سیوري د سیمو اوسېدونکی د سدوزي شاه زمان تر عصره ژوندی، هم د رحمان بابا د سبك پیرو دی. ده خپل خان د بابا نایب بللی دی:

په افغان کې شاعران تر حساب تېر دي
عبدالغفار دی درحمان شاعر نایب

عبدالغفار هوتك د دوولسمې پېړۍ د اواخرو او د دیارلسمې د اوایلو شاعر دی. دشعر دیوان ترې پاتې دی. ده په خپلو غزلو کې درحمان بابا پیروي کړې ده. د عبدالغفار په دیوان کې له غزلو سربېره قصیدې هم لیدل کېږي او د دیوان په پای کې یې درې الفنامې هم شته.

دی سربېره پر دیوان د مثنویاتو څو رسالې هم لري. په دغو مثنوي ګانو کې پنج داستان، د سوداګر بچه قصه او د خپلې کورنۍ حال مثنوي ګانې شاملې دي. عبدالغفار هوتك د میرویس نیکه د کورنۍ له افرادو څخه و. د ده د کورنۍ حالات نومې اثر د افغانستان د تاریخ په څېړنه کې مهم کتاب دی.

عبدالغفار هوتك د عرفان په لاره کې هم قدمونه اېښي دي او د خپل طریقت سلسله یې تر حضرت مجدد الف ثاني شیخ احمد کابلي پورې رسولې ده. د ده په آثارو کې تاریخي موضوعات، واقعاتي رویدادونه، عشقي، عرفاني، اخلاقي مضامین او اجتماعي خبرې پیدا کېږي. کلام یې ساده دی، خوکشش لري. درحمان بابا له فکر او هنره د متاثرې یوې غزلې دوه بیته یې دا دي:

محبوبا چې تورې زلفې کاشانه عاشقان به قاف تر قاف کامستانه
تورې سترګې دې آهو دي که جادو چې یې زه کړم ګربوان څیرې دیوانه

د کابل د یوې ستانه کورنۍ په دانشمندو او شاعرو افرادو کې یو تن میر امام الدین دی، چې درویش یې تخلص و؛ په پارسي او پښتو یې شعر وایه؛ د شعر دیوان یې موجود دی.

په دیوان کې یې ځینې پښتو غزلیات هم شته، د ده پښتو غزلې ټولې د رحمان بابا د غزلو په پیروی جوړې شوې دي اود بابا د سبک په پیروانو کې ولاړ سری دی.

میر امام الدین د رویش د شیخ سعدالدین احمد انصاري زوی و او د دیارلسمې پیړۍ په حدودو کې یې په کابل کې ژوند درلود. دا لاندې بیت یې هم درحمان بابا د شعر خوند لري:

که یاري را سره نه کا یار زما
ترقیامته ورځې پورې زار زما

د ننګرهار او شرقي افغانستان په کردو سیمو کې د رحمان بابا نامه او شعر ته درناوی موجود و او دی. د دې سیمو ولسي شاعران د بابا د لورې وینا له خونده خبر دي او کله چې په خپلو چاربیتو کې د پښتو شاعرانو نوموونه اخلي. نو د رحمان بابا نوم تر هر چا د مخه راوري، لکه بیسواد ولسي شاعر محمد نور چې ویلي و:

«په باب د افغانیه کې سر حلقه تېر شو رحمان»

د ننګرهار او ختیځ افغانستان په سیمو کې پر تېرو شویو زیاترو ولسي او نیمه ولسي شاعرانو باندې د رحمان بابا د فکر او هنر اثرات زیات دي. خو د نمونې لپاره به زه د ځینو یادونه وکړم:

فدا محمد د ننګرهار د سیمو د کترغي نومي سیمې اوسېدونکی و. د احمد شاه بابا د زمانې سړی دی؛ له احمد شاه بابا سربېره د ده زوی تیمور شاه یې هم یاد کړی دی او داسې ښکاري؛ چې فدا محمد د دوولسمې پېړۍ په دوهمه نیمايي کې د ننګرهار په کترغي او بیا د خوګیانو په (توتو) کې اوسېدلی دی.

ده په پښتو روانه مثنوي د حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د وفات قصه نظم کړې ده او ورسره یې غزلې هم ویلې دي. د رحمان بابا د دیوان یوه خطي نسخه چې د ده په خط ده، د هغې نسخې په پای کې د ده غزلې هم شته. چې د غزلو جوړښت یې دی د بابا د سبک د پیروانو په قطار کې دروي، د ده د یوې غزلې دوه بیته:

ولې نه ړدې نن قدم په دا جوس
غړوې مې هر زمان، لکه جرس

په خه کورې پشمینې خرقې زمانه
ته مشغول یې په کمخاب وبه اطلس

په فرهنګ ادبیات پښتو کې راغلي دي چې د ننګرهار د شینوارو په لوی پایین کې اوسېدلی ابن یمین نومی شاعر هم د رحمان بابا د فکر او هنر تابع شاعر و. ده په کلاسیک طرز غزلې جوړولې اود غزلو فکري تعابیر او لفظي جوړښت یې د رحمان بابا د سبک خصوصیات لري. ابن یمین د امیر حبیب الله خان (۱۳۱۹ ـ ۱۳۳۷هـ ق) د زمانې شاعر و.

له افغانستان نه چې ورتېر شو، د پښتنو يوه عمده برخه د هند او کشمير په ځمکو کې خوره وه او ده. په دغو خورو پښتنو کې هم ځينې داسې شاعران تېر شوي دي، چې په خپلو وېناوو کې يې درحمان بابا پيروي کړې او خپل ديوانونه يې د ده په پيروي بشپړ کړي دي.

(په هند کې د پښتو ژبې او ادبياتو د ايجاد او ودې پړاوونه) نومي کتاب کې د هند او کشمير په سيمو کې د اوسېدلو پښتنو شاعرانو په ډله کې دغه لاندې کسان د رحمان بابا د سبك پيروان بلل شوي:

عبدالرسول د کندهار په ماشور کې زوکړی او په زلميتوب کې کشمير ته تللی دی، د هغې سيمې له افغانانو حاکمانو سره يې روابط درلودل. سفر نامه او آزاد نامه ده په کشمير کې ليکلې دي او له دغو دوو کتابو پرته عبدالرسول د شعر ديوان هم لري، چې اشعار يې د رحمان بابا د سبك تابع دي. د ده ديوان او نور کتابونه نه دي چاپ شوي. يوازې په پښتانه شعراء دوهم ټوك کې يې ځينې غزلې راغلې دي؛ عبدالرسول د احمد شاه بابا او تيمور شاه معاصر ښودل شوی دی، د يوې غزلې يو بيت يې دا دی:

بی طلبه بـه هېـڅ نـه مومـې (رسولـه)
که دې دواړه سترګې غرقې شي په نم کې

ملالتاړ شلمانی په هندوستان کې د اوسېدلو پښتنو شاعرانو په ډله کې د ديوان خاوند شاعر دی: ديوان يې په ۱۳۶۷ هـ ق کال په کابل کې چاپ شوی دی. په دې ديوان کې غزلې، رباعي، قصيده ډوله نظمونه او مخمس شته. دا ديوان لتاړ په ۱۱۹۰ هـ ق کال بشپړ کړی دی. دا وخت د ده عمر ۲۹ کاله و، نو ځکه يې د تولد کال ۱۱۶۱ هـ ق ښول کېږي. لتاړ د ديارلسمې پېړۍ تر اوايلو هم ژوندی ښکاري. ده د نواب فيض الله خان په زمانه کې په رامپور کې ژوند کړی دی. دا د پوهانو استناد په دې برخه کې د ده پر دغه رباعي دی:

اور وپښتون ته ټول هندوستان وه — په رامپـور جمـع واړه افغـان وه
د لـويو، وور کيـو واورئ يارانـو — سردار، نواب يې فيض الله خان وه

لتاړ د رحمان بابا د سبك پيرو شاعر دی او په خپله شاعرۍ کې يې د بابا له خوږو اشعارو فيض موندلی دی؛ د يوې خوږې غزلې مطلع يې دا ده:

فکـر د هجـران يار په وصال را ځخه يـوور
غم يې د درست عمر په جمال را ځخه يوور

په هندوستان کې د اوسېدلو پښتنو شاعرانو په ډله کې تنها يو بل شاعر دی، چې د رحمان بابا د سبك په پيروانو کې د درېدو حق لري. تنها د دوولسمې پېړۍ په اواخرو او د ديارلسمې په لومړۍ نيمايي کې د هند په سيمو کې اوسېدلی دی؛ د

ده دیوان ورك دی. خېنی غزلې یې په (ګلزار روه) کې چاپ دی. د بابا په تقلید له ویلو غزلو څخه یې د یوې غزلې دوه بیته دا دي:

بیا مې ستا غم په زړه زور کاندي پوهېږم
مابه کډ په ژړا شور کاندي پوهېږم
تنها نه دی په ګلونو ډېر لوی ګوره
خو ستا غم به یې نسکور کاندي پوهېږم

رحمت داوی، د پښتو ژبې داسې شاعر دی، چې په ځوانی له خپل پلرنی ټاټوبي لیرې شوی او خپله ځواني او پیري دواړه یې د سوات په کوهستان او د کشمیر په شنو دروکې تېر کړي دي. رحمت داوي په اصل کې د کندهار د شهر صفا اوسېدونکی و. د زوکړي نېټه یې ادبي مورخانو ۱۱۵۷ هـ ق یا ۱۱۶۰ هـ ق کال اټکل کړې ده او ژوند یې تر ۱۲۱۰ هـ ق کال پورې یقیني دی.

رحمت داوي د پښتو ژبې یو ښکلی اوپند دیوان لري، چې منتخبات یې په (ورکه خزانه) او (د سره غره ګلونه) نومو تذکرو کې چاپ دي او د دیوان نیمګړی متن یې په ۱۹۸۰ ع کال کې په پېښور کې چاپ شوی دی. د ده په دیوان کې غزلې او قصیدې شته، خو دی په اصل کې یو غزل ویونکی شاعر دی. دی په خپلو غزلو کې د فکر او هنري پرداختونو له پلوه د رحمان بابا پیروي کوي او په خپل دیوان کې یې خو ځایه بابا ته د عقیدت ګلونه وراندې کړي دي، یو ځای وایي:

د رحمت د شاعری قدر به ډېر و
که رحمان مومند ژوندی وای په باکرام کې

رحمت په خپلو قصیدو کې خېنی وقایع او تاریخي مسایل هم بیان کړي دي او په دغه ډول اشعارو کې یې د اجتماعي انتقاد ښلکې هم لیدل کېږي.

رحمت داوي د شعر له دیوانه سربېره د نظامي ګنجوی دلیلی و مجنون قصه په ۱۲۱۰ هـ ق کال په خوږه پښتو مثنوي ترجمه کړې ده. دا مثنوي په ۱۳۶۰ هـ ق کال په کابل کې چاپ شوه؛ د دې رواني مثنوي څو بیته دا دي:

چې مجنون په عشق ابتر شو — کل عالم باندې خبر شو
په هر ځای د ده کلام و — که خواص و، که عوام و
چې مجنون نومی یو ځوان دی — ډېر په عشق کې دی اریان دی
د لیلی په زلفو بند دی — ډېر ډېر زاړي او درد مند دی

په هند کې زوکړی پښتون اپریدی شاعر قاسم علي خان په دې سیمه کې د رحمان بابا د پیروانو د ډلې عالم او پوه شخص و، پوره نوم یې محمد قاسم علي، پلار یې برهان خان نومېده. نیکونه یې په ۱۱۱۸ هـ ق کال له تیرا نه مخ په

هندوستان خوښدلی دی: په شمالي هندوستان کې یې ژوند کړی دی. د قاسم علي خان د آثارو له مطالعې ښکاري چې ده په فرخ آباد او دلکهنو په کولهار کې ژوند کړی دی.

د زیږیدو کال یې ۱۱۸۳ هـ ق دی او په ۱۲٤۱ هـ ق کال مړ شوی دی. قاسم علي په تصوف کې د قادریه طریقې پیرو و او په شعر کې یې دغه ډول عرفاني افکار هم ځیل ځای لري. له دې سربېره په ځپله یوه قصیده کې یې په فرخ آباد کې د انګرېزانو واکمنې هم غندلې ده: نور اخلاقي او دیني مسایل له عاشقانه غزلې سره یو ځای د ده په شعرونو کې پیدا کېږي. ده په پښتو، پارسي او هندي ژبو اشعار ویلي او په پارسي نثري رسالې لیکلې دي. په انګرېزي. کشمیري او عربي ژبو پوهېده (افریدي نامه) یا فرهنګ افریدي ده جوړ کړی د لغاتو یو فرهنګ دی، چې د پارسي، پښتو. هندي، کشمیري او انګرېزي ژبولغات یې پکې ټول کړي دي.

قاسم علي خان اپریدی په پښتو ژبه یوه خوابنامه هم نظم کړې ده، چې د خوبونو تعبیرونه یې پکې بیان کړي دي. د ده په پښتو دیوان کې غزلې، قصیدې، مخمس او چاربیتې پیدا کېږي.

ډېر مدت شو، چې په غم دې مبتلا یم — هسې نه چې نن مهرو په تاشیدا یم
زما ستـــا د مینې ډېر شـــوه مدتونـه — تـه لا اوس وایې وماته یار د چا یم

منصور او ګلمیر دوه غزل ویونکي پښتانه شاعران دي، چې د دیارلسمې پېړۍ په حدودو کې به یې د شمالي هندوستان په روهیلکهنډ کې ژوند کړی وي. د دغـو دوو تنو شاعرانو غزلې په (ګلزار روه) کې چاپ شوې دي. دادواړه شاعران په غزل ویلـو کې د رحمان بابا پیروان بلل شوي دي.

د منصور په دې بیت کې:

«دا دې زلفې دي په مـخ بانـدې خلېږي
کـه ختلـی پـه چنـدړو دی ښامـار کـج

هم د رحمان بابا د فکر او هنر اغېزې لیدل کېږي.

د ګلمیر دیوې غزلې یو بیت دا دی:

ما ویل چـې دا او بـه دي سـراب وخـوت
سـوی زړه مـې لـه کوګلـه خـراب وخـوت

د هند په سیمو کې د رحمان بابا د سبک د پیروانو موجـودیت دا راښیي، چې دا وخت پښتانه په ټول هند کې خواره وو، په جنوب کې ترمدراسه او په شرق کې تر بنګاله او ورسره په منځني شمالي او شمال غربي هندوستان کې له پېریو پېریو پښتنو ژوند کړی و او په دغو پښتنو کې موجود و شاعرانو خپله ژبه هم پالله او په خپله ژبه

یې اشعار ویل او آثار یې لیکل.

دغې چې پښتانه دا وخت د هند د ګنګا او جمنا له سیندونو او ښتې وو، نو ورسره په همدې دوولسمه پېړۍ کې زموږ ځینې پښتانه په شمال کې د آمو له سینده هم پورې شوي وو او د بخارا او ماوراء النهر په سیمو کې میشت وو. په همدې وخت کې او ترې راوروسته موږ په بخارا کې ځینې پښتانه شاعران وینو، چې په دغو پښتنو شاعرانو کې هم ځینو ته د رحمان بابا د ښکلي شعر ازانګې وررسېدلې وې او د بابا په پیروۍ یې اشعار ویل او خپل دیوانونه یې بشپړول.

د بخارا په سیمو کې له اوسېدلو پښتنو شاعرانو څخه یو هم عبدالرحیم هوتک دی، چې د دوولسمې هجري پېړۍ په ترځ کې یې په سمرقند او بخارا او د ترکستان په سیمو کې ژوند کړی دی، لکه چې ده خپله ویلي دي:

| | |
|---|---|
| بخارا او سمر قند مې زړه زخمي کړ | غـوارم پـاخم پـه زیـارت د قندهار |
| پنځوس کاله زیاتی کم وشوه رحیمه | په سراغ د اشنا ناست په ترکستان یم |

عبدالرحیم هوتک په اصل کې د کلات د ښه بولان اوسېدونکی ښوول شوی دی، چې په کوچنیوالي کې له خپل ټاټوبي، ایران او بیا ترکستان ته تللی دی او عمرونه یې هورې تېر دي. د ده د دیوان د یوې خطي نسخې پر سرچاپو یادښت لیکلی دی، چې دهغه یادښت له مخې عبدالرحیم هوتک باید په ۱۱۶۲ هـ ق کال په بخارا کې مړاو هلته ښخ وي. عبدالرحیم هوتک د شعر یو پند دیوان لري. چې د شعر سبک یې د ادیبوهانو د مطالعاتو له مخې د عبدالرحمن بابا تابع بلل شوی دی. له دې خبرې ښکاري چې عبدالرحیم هوتک له پښتونخوا او افغانستان نه ډېر لیرې په بخارا کې هم د بابا د دیوان مطالعه درلوده. د عبدالرحیم په دیوان کې اخلاقي، عشقي، دیني او عرفاني اشعار موندل کېږي، خو د دې موضوعاتو تر څنګه ده چې د وطن او خپلو خلکو په فراق کې کوم اشعار ویلي دي، هغه خاص جذب او شور لري او د شاعر احساسات ښه ځنی ځرګندېږي. د عبدالرحیم دا دول شعرونه د خوشحال، هجري، شیدا او علی اکبر ورکزي له ځینو دغه ډول اشعارو سره ورته والی لري.

د عبدالرحیم هوتک اشعار. لکه رحمان بابا خواږه، ساده او عام فهمه دي. د ده په دیوان کې غټه برخه د غزلو ده، او تر درې نیمو سوو نه زیاتې غزلې ده ویلې دي.

د ده دیوان تر اوسه نه دی چاپ، په افغانستان، پېښور او پترزبورک کې یې د دیوان خطي نسخې شته: د یوې ساده خو ښکلې غزلې ځوبیته دا دي:

| | |
|---|---|
| راسه راسه ستا تر دوارو سترګو جار سم | هم تر مخ دې پروانه غوندې نثار سم |
| د زړه ولـې مې په تا پسې پرې کېږي | راتـه وګـوره قربان دې تر دیدار سم |

ګل محمد افغان هوتک بل پښتون شاعر دی، چې په بخارا او د دغه امارت په توابعو کې یې ژوند کړی دی. ده په پارسي او پښتو ژبو شاعري کړې ده: د پارسي

ژبې د شعر دیوان او د (عادل افغان) پارسي مثنوي یې تر شلو زرو بیتونو اوړي. ده په خپله مورنۍ ژبه پښتو هم شعر ویلی دی او څو پښتو غزلې یې استاد رشاد پیدا کړې دي. د ده پښتو اشعار د رحمان بابا د شعر په دول ساده او ښکلي دي، یوه غزله یې دا ده:

واميې وريبده خانه له ولاته يې راغلی
پس له ډېره عمره بخارا ته يې راغلی
سترګې چې کرم پټې له هغې ورځې را هیسې
وینم دې په خوب چې (نور اتا) ته یې راغلی
ژر راسه طبیبه ما رنځور د پردیسی ته
ته دخدای په حکم زما دواته یې راغلی
وغروه سترګې په تمامه بخارا کې
ته چې (افغان) نه وینې وچاته یې راغلی

په پورتني شعر کې (نور اتا) د بخارا امارت ته مربوط یو ځای دی، چې ګل محمد افغان هلته حاکم و. ګل محمد افغان د بخارا د امارت په ځینو نورو سیمو کې هم حکومت کړی دی. د ګل محمد افغان د زیږېدو نېټه د دوولسمې پېړۍ په اواخرو کې اټکل کېږي: دی تر ۱۲۵۵ هـ ق کال دمخه مړ دی.

محمد نومی دریم شاعر دی، چې په بخارا کې یې ژوند کړی دی. دا سړی د ۱۲۳۰ هـ ق کال په شاوخوا کې زیږېدلی دی او د دیارلسمې هجري پېړۍ په دوهمه نیمایي کې په بخارا کې و.

ده په ۱۲۶۱ هـ ق کال د خزینة القراء په نامه کتاب په ٤٩ بابونو کې نظم کړی دی او د قرآن عظیم د تجوید قواعد یې پکې ښوولي دي. ده دا کتاب په بخارا کې بشپړ کړی همدا رنګه محمد په ۱۲٦۲ هـ ق کال د فرض عین په نامه کتاب هم په بخارا کې نظم کړی دی: دا کتاب شل بابه لري. د محمد بخارایي دا دواړه پښتو کتابونه په ادبي تاریخ کې د مطالعې ځای نه لري، خو د ده کوم آثار چې ده ته په ادبي تاریخ کې ځای ورکوي، هغه د ده ځینې ادبي ترجمې او څو پښتو غزلې دي.

محمد بخارایي د حضرت مولانا جلال الدین محمد بلخي د مثنوي معنوي ځینې حکایات په پښتو مثنوي ترجمه کړي دي او له دې سربېره ده ځینې پښتو غزلې هم ویلې دي، چې جوړښت او بافت یې د عبدالرحمان بابا له سبک سره نزدیکتونه لري. د ده د یوې غزلې دوه بیته دا دي:

چې سوخته ژوند یې د هجر په سخت اوروي
تر داهسې ژوند مړ ښه دی چې په کوروي

بې دلبره که څوك ناست وي په ګلزار کې
دا ګلـــزار ورتــــه دمــــار دلرم کــــور وي

داوو، د رحمان بابا د عالمګیر سبك څو تنه معلوم پیروان شاعران چې په دې بحث کې لږ لږ وښول شول. دلته دیادونې وړ خبره بله دا ده، چې ادیبوهانو صدیق، احمد شاه بابا او شیر محمد هوتك هم د رحمان بابا د سبك په پیروانو کې شامل کنلي دي.

مګر ما صدیق د دې کتاب په دریم فصل کې د متصوفو شاعرانو په بحث کې راوور، دا څکه چې صدیق متصوف د دیوان خاوند شاعر دی او د رحمان بابا له سبك سره یې د شعر نژدېوالی او یا د ده د پیروی مساله یو څه تر سوال لاندې واقع خبره ده.

احمد شاه بابا هم د رحمان د سبك په پیروانو کې د رول ستونزمن کار دی: احمد شاه بابا خانته سبك لري، چې د عبدالرحمن بابا د سبك تابع نه شي ګڼل کېدای.

د شیر محمد هوتك د آثارو له مطالعې سرې ته ښکاري چې دی د دیني آثارو یو مترجم او ناظم دی، چې ترجمه کړي او لیکلي نظمونه یې ټول د مثنوي په چوکاټ کې دي، غزله نه لري، زیاتره آثار یې په ادبي تاریخ کې مطالعه کېږي هم نه، نو د دغسې شرایطو لرونکی سړی موږ څنګه د رحمان بابا د سبك پیرو وبولو؟

ملا شیر محمد هوتك چې په ۱۰۹۲ هـ ق کال د کلات د سیوري په سیمو کې زیږېدلی او په ۱۱۷۵ هـ ق په کندهار کې مړ او ښخ دی، د ده په منظومو پښتو آثارو کې اسرار العارفین، رساله میت، معجزات، شمائل نبوي د قصیده برده پښتو ترجمه د مستخلص د ابیاتو شرح او نور معلوم دي، چې هنري، ادبي ارزښتونه پکې زیاتره نشته. د ده د قصیدهٔ برده ترجمه او څینې نور محدود بیتونه ښایي په ادبي تاریخ کې د شاملولو جوګه وي خو نه د رحمان بابا د سبك په پیروانو کې.

یوه خبره چې دشیر محمد هوتك د آثارو په خصوص کې باید هېره نه شي،دا ده چې د ده نظمونه او مثنویات هم ساده او روان دي، دایې دوه بیته:

| | |
|---|---|
| راشه خوږ تر انګبین شه | کیر مه کوه کمین شه |
| چې په دا هنروالاوي | د هغو رتبه بالا وي |

دلته د یادونې وړ یوه مسئله دا ده، چې په دوولسمه پېړۍ کې موږ ډېر نور دیني ناظمان لرو، چې په خوره مثنوي یې ډېر دیني آثار نظم کړي دي، لکه:

ملا عبدالرشید چې رشید البیان یې په ۱۱۲۹ هـ ق کال نظم کړی دی.

سید حسن چې په ۱۱۲۱ هـ ق کال کې یې دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم سیرت په پښتو نظم ترجمه کړی دی.

میا فقیر الله جلال آبادي، چې د ۱۱۰۰ هـ ق شاوخوا د پنجاب په روتاس کې زیږیدلی او په ۱۱۹۵ هـ ق کال په شکارپور کې مړ دی. په ۱۱۵۱ هـ ق کال کې یې د فواید فقیر الله، اسماء الحسنی او کیمیای سعادت په نامه دری رسالې لیکلې دي، د کیمیاي سعادت له څو منثورو ټوټو پرته نور دری واړه کتابه په روانه او ساده پښتو مثنوي کې بیان شوي دي.

غلام محمد مومند چې په دوولسمه پیړۍ کې یې د پېښور په پندو نومې سیمه کې ژوند کاوه په ۱۱۵۹ هـ ق کې یې د (نوبهار) په نامه یو کتاب نظم کړ، چې اته بابه لري او دیني احکام بیانوي.

عبدالباري ګدا چې په ۱۱۶۰ هـ ق کال کې یې د (مختصر) په نامه یوه رساله نظم کړه او محمد ګل کوهاټي چې په ۱۱۶۷ هـ ق کال کې یې خپلې رسالې، صوفي نامه، وعظ نامه، الف نامه په نظم و نثر لیکلې دي، ټول داسې ناظمان او لیکوال دي چې په پښتو یې د دیني او شرعي احکامو په بیان او نورو علومو او هم د طب او حکمت په باب پښتو آثار لیکلي دي. د ټولو مثنویات که له شیر محمد هوتک نه د مخه نه وي، نو پاتې څو ضرور نه دي، که موږ شیر محمد درحمان بابا د سبک پیرو بولو، نو ضرور دغه نور کسان هم باید پکې شامل کړو.

یقیني خبره دا ده، چې د شیر محمد هوتک او د ده په شرایطو نور ناظمانو احوال او آثار په فرهنګي تاریخ کې د مطالعې ځای لري، نه په ادبي تاریخ کې. بنایي په څینو خاصو مواردو کې څینې څنګړنې اشارې د شیر محمد هوتک او نورو دغسې ناظمانو آثارو ته وشي.

## دغه ادبي جریان ته یوه کتنه:

په هماغه کال چې د پښتو لوی فرهنګیالي شخصیت خوشال خټک په شعر ویلو شروع وکړه، رحمان بابا د نیاته سترګې پرانیستې د رحمان بابا د خوانۍ په مرحله کې د خوشحال د شعر انګازې په پښتونخوا کې خپرې وې، خو رحمان بابا ته خدای جل جلاله داسې یو استعداد او هنري قوت ور په برخه کړی ؤ چې کله شاعر شو نو شعر یې تر هر چا زیات په ټولو پښتو ویونکو کې منښت پیدا کړ. نه یوازې په افغانستان او پښتونخوا کې، بلکه چېرې چې پښتانه وو، هلته د بابا دیوان لوستونکي درلودل او د پښتنوګردوفرهنګي حلقو ته یې لاره درلوده.

له هنده نیولې تر بخارا پورې سیمو کې میشتو پښتنو څینو شاعرانو د بابا سبک ومانه او د ده پرېله یې پلونه کښېښوول.

که څه هم څه چې رحمان بابا او د ده پیروانو ویلي دي، کابو په مشابه دول تر دوی د مخه اویا ورسره همزمان د نورو شاعرانو په دیوانونو کې هم موندل کېږي. خو هر کله چې د دوی او نورو په کلام کې کوم بارز شکلي او موضوعي فرق نه وي موجود،نو نه شایې چې موږ د رحمان بابا او د ده د پیروانو دغه ادبي جریان د پښتو د ادبي تاریخ د دوهمې دورې د یو ځانګړي پړاو په نامه ونوموو او له خوشحال او د ده له پیروانو یې بیل کړو. خو که چېرې دقیق غور وکړو،په فکري لحاظ هم د دواړو سبکونو (خوشحال ـ رحمان) تر منځ څه توپیرونه تر سترګو کېږي، که د شعر د ژانرونو په ارتباط کوم شکلي توپیر په منځ کې نه وي. نو د ژبې د استعمال او د هنري تمایلاتو او خیالونو تر منځ ضرور ځینې توپیرونه شته او دغه توپیرونه موږ اړ کوي، چې د رحمان بابا او د ده د پیروانو ایجادي آثارو ته د پښتو د ادبي تاریخ په دوهمه دوره کې د یوه ځانګړي پړاو نوم ورکړو. داسې پړاو چې خوند هم لري او رنګ هم. دا خوند او رنګ نوي دي. هسې نوي چې د خوشحال اود ده د پیروانو د آثارو له خوندونو جلا او بېل دي.

دغه پړاو ته موږ په عام دول لاندې خصوصیات ټاکلی شو:

(۱) په دغه پړاو کې موږ د پښتو په لسګونو شاعران وینو، چې د اشعارو پند دیوانونه یې حوړ کړي دي. ځینې یې له دیوانه سربېره ځینې نور منظوم رسایل هم لري، چې په دې حساب په دې پړاو کې د پښتو زیات دیوانونه ترتیب شوي او د اشعارو دفترونه تنظیم شوي دي.

(۲) په دې پړاو کې چې څه ادبي ژانرونه ایجاد شوي دي، زیاتره داسې ژانرونه دي، لکه: قصیده. غزل. رباعي. قطعه. مخمس. مسدس. مسبع. معشر. ترکیب، ترجیع او نور چې د خوشحال او دده سلك د پیروانو په آثارو کې هم لیدل کېږي.

(۳) دا پړاو زیاترد د اخلاقو او نصایحو د بیان خواته ډېره توجه کوي: دغه پړاو ته د مربوطو شاعرانو په ځینو دیوانونو کې د عرفان د بېلابېلو طریقو له روښونو سره سم ځیني عرفاني مسایل هم بیان شوي دي. خو د عشق بیان د دې پړاو د اشعارو عمده او متبارزه ځانګړ نه ده. ددې پړاو د ځینو شاعرانو په دیوانونو کې اجتماعي مسایل. د جامعې نقد او ورسره ځینې تاریخي او واقعاتي رویدادونه هم راغلي دي: خو دا باید ووایو چې تر دغو شاعرانو د مخه دا دول موضوعات او مسایل خوشحال او د ده پیروانو تر دوی سه او په ابتکاري دول بیان کړي.

(٤) د دې پړاو په اشعارو کې قصیده یې خوندده او حتی د قصیده ویلو د فن خصوصیات هم نه لري. خو سی چې په دې پړاو کې د شعري ژانرونو د مطالعې له پلوه د ارزښت وړ دی هغه د دې پړاو غزل دی: دا پړاو موږ د پښتو غزل د انکشاف پړاو بللی شو: په دې پړاو کې د پښتو سکلي. عام فهم. ساده او د تغزلي خصوصیاتو

لرونکی غزل را منځ ته کېږي. دا غزل د الفاظو او کلماتو د انتخاب او پو اوږدونکو او لوستونکو د خپلو اثراتو له امله د پښتو په زاړه ادب کې د منني او يادونې وړ غزل دی.

(۵) د دې پړاو د شاعرانو په ځينو اشعارو کې د هنر او شاعرانه خيالونو د نيا هم خانته خپل خصوصيات لري، انځورونه او خيالونه يې زياتره ساده، مګر ښکلي دي او لوړ معيار لري.

(٦) دغه پړاو ته مربوط شاعران زياتره عالمان خلك دي: د خپلې سيمې د ژبو له ادبياتو سره اشنايي لري، له خپلې مورنۍ ژبې سربېره په پارسي او هندي ژبو هم شاعري کوي. مور د دې پړاو د زياترو شاعرانو په ديوانونو کې پارسي اشعار وينو او د ځينو هندي اشعار هم شته. د دغه پړاو په شاعرانو کې د معزالله خان مومند پارسي ديوان او پارسي مثنوي او نور منثور پارسي آثار د کميت او کيفيت له پلوه د محاسبې وړ دي.

(۷) دغه پړاو ته مربوط شاعران که له يوې خوا د رحمان بابا د سبك پيروان دي، خو ورسره د خپلو همعصرو او يا د مخنيو پښتو شاعرانو د آثارو مطالعه هم لري او ځينو دغو شاعرانو د خوشحال خان، عبدالقادر، عبدالحميد او نورو په پيروی هم ځينی اشعار ايجاد کړي دي.

ښوونکي دې له شاګردانوسره پر دې موضوع بحث وکړي. چې رحمان بابا ولې د هر چا خوښ دی؟

ښوونکي دې شاګردانو ته کورنۍ وظيفه ورکړي، چې د رحمان بابا د سبك د پيروانو نومونه پر کاغذ وليکي او په ټولګي کې يې نورو ته ولولي.

# په کندهار کې د ملي دولت تشکیل او په دربار کې د پښتو د پرمختیا زمینې

د لسمې او یوولسمې هجري پېړۍ په جریان کې کندهار د خپل خاص جغرافي موقعیت له امله د صفوي او د هند د مغلي امپراتوریو تر منځ واقع شوی و او دوارو امپراتوریو په دې ستراتیژیك افغاني سیمه کې خپل خاص اهداف درلودل.

د دوولسمې پېړۍ د دوهمې لسیزې په وروستیو وختونو کې کرګین په کندهار کې صفوي حکمران و او ده په دې سیمه کې داسې ظلمونه او ناروا وې کولې، چې د دې سیمې کرده خلك د ده له ظلمه تر پوزې رسېدلي وو.

دغه وخت د کندهار د خلکو مشر میرویس هوتك پر خپل ولس او خپله سیمه د صفوي حکمران کرګین دغه تولې نادودې په سترګو لیدلې نو هماغه و، چې ځلور ځله اصفهان ته ولاړ او د صفوي پاچهي دربار یې د کرګین له ظلمونو خبر کړ: مګر دربار هېڅ هم ونه کړل؛ بالاخره میرویس هوتك حجاز ته ولاړ او د حجاز د علماوو دفتوی تر لاس ته راوړو وروسته بېرته کندهار ته راغی او د کندهار د قومونو مشران یې سره راتول کړل. یوه جرګه یې په کوکران کې او بله یې په مانجه کې وکړه او د دغو ملي جرګو د پرېکړو پر اساس یې د صفوي حاکم ظالم کرګین پر ضد ملي قیام پیل کړ او د ۱۱۱۹ هـ ق کال د ذالقعده په ۲۹مه یې کندهار د کرګین له ظلمه خلاص کړ او په کندهار کې یې د ملي افغاني حکومت اساس کېښود. میرویس نیکه خان ته د پاچهي لقب غوره نه کړ او تر مرینې پورې یې د یو ملي مشر په توګه د افغانانو ملي حکومت اداره کړ. تر میرویس نیکه وروسته یې ورور عبدالعزیز، بیا یې زوی شاه محمود پاچا شو، کله چې شاه محمود اصفهان ته لښکر کشي وکړه، په کندهار کې د میرویس نیکه بل زوی شاه حسین پاچاهي ته ورسېد. دا وخت د هوتکو د پاچهي دوه مرکزه وو، یو په کندهار کې او بل په اصفهان کې. په اصفهان کې دمحمود تر مرینې وروسته شاه اشرف هوتك پاچا شو. مګر په کندهار کې د نادر افشار تر تاراکه پورې شاه حسین پاچا و.

د هوتکو پاچهي او د کندهار افغاني دولت. د نادر افشار ظالمانه تاراکونو او د

کندهار تر محاصرې وروسته د ۱۱۵۰ هـ ق کال د ذی الحجې په میاشت کې سقوط وکړ. د نادر افشار لښکرو د دولت پر اراکینو او د کندهار پر افغانانو هغه ناروا وې وکړې، چې تاریخ به یې لړ بل ساری ولري.

د هوتکو د دولت حدود د ملتان له شاوخوا سیمو څخه پیل کېدل او ددجلې د سیند تر غاړو رسېدل. ډېره جات، اوسنی بلوچستان، غزنی، کندهار، کومل، هرات او فراه او د اوسني ایران په خاوره کې د دجلې تر غاړو زمکې د دوی په ولکه کې وې.

هوتکو افغانانو پاچهانو په ایران کې د هغه هېواد د تمامیت د ساتلو لپاره ډېرې جګړې وکړې. هغه مهال د ایران ګاونډیانو د روسانو په شمول له بېلابېلو خواوو د ایران پرسرحداتو حملې کولې، مګر د افغان پاچهانو په همت دغه حملې په شا وتمبول شوې.

د هوتکـو د پاچاهـی پـه ډېـرش کلنـه دوره کـې د دوی د حربـي، سیاسـي، اجتماعي کارونو د ځېرلو ځای دانه دی. بلکه دلته موږ د دې دورې په فرهنګي کارونو او خدماتو خبرې کوو. د هوتکو د پاچهی په ولکه کې شاملو سیمو کې دغه مهال په سلګونو شاعرانو اولیکوالو آثار لیکلي او اشعار یې ویلي دي. د پښتو او پارسي ژبو ځینې مهم آثار دغه مهال منځ ته راغلي دي. چې د ځینو د ایجاد او تاءلیف په چارو کې د هوتکو د کورنۍ د پاچهانو لاس و او د دوی په حمایت دغـې فرهنګي کارونه سرته رسېدلي دي. کله چې موږ د خپل هېواد فرهنګي تاریخ لیکو. نو د پښتو او پارسي دواړو ژبو د ادب او فرهنګ د ودې په مراتبو کې د دې کورنۍ له کارونو سترګې نه شو پټولای.

له فرهنګ سره د دې کورنۍ د مینې یو علت بنایي دا وي، چې د دې کورنۍ زیاتره غړي نر او ښځې لیکوال او شاعران او لوستي خلک وو، پارسي او پښتو ژبې یې زده وې، د عربي ژبې او دیني علومو مطالعه یې هم درلوده.

اوس موږ دا بحث د دې کورنۍ له خپلو فرهنګي کارونو شروع کوو او بیا چې د دوی په حمایت کوم کارونه شوي دي او یا هغه کارونه چې د دوی په عصر اړه لري، دلته ښیو:

(۱) د هوتکو د شاهي کورنۍ خپل فرهنګي کارونه:

د هوتکو د شاهي کورنۍ دغه لاندې غړي شاعران او لیکوال تېر شوي دي:

د دې کورنۍ مشره نازو انا د میرویس نیکه مور د پښتو ژبې شاعره وه. د پټې خزانې د روایت له مخې نازو انا د شعر دیوان درلود چې دوه زره بیته یې درلودل. د نازو دیوان اوس زموږ په واک کې نشته: یوازې یوه ښکلې رباعي یې پټې خزانې خوندي کړې ده، چې دلته راوړل کېږي:

سحـر کـ... د نرګس لېمـه لانده      ځاځکي ځاځکي یې له سترګو څڅېده

ما وېل څه دي کښلي کله ولې ژاړې         ده وېل ژوند مې دی یوه خوله خندېده

نازو انا د سلطان ملخي توخي لور وه، چې په ۱۰۶۱ هـ ق کال د تازي په سیمه کې زوکړې وه، پلار یې له غزني نه تر جلدکه د خلکو مشر و. نازو د بنالم خان هوتك مابنه وه: عالمه او فاضله ښځه وه، د علم، حلم، سخاوت او شجاعت خاونده وه. خپل زامن یې په ملي او وطني روحیه وروزل.

د نازو انا په زامنو کې یو هم د پښتنو ملي مشر میرویس نیکه دی، چې په کندهار کې یې د ملي دولت بنسټ کېښېښود او خپل خلك یې د پردو له تسلطه وژغورل. میرویس نیکه د سیاسي، ملي او اجتماعي تدبر تر څنګه په پښتو د څه ویلو توان هم درلود. د اوسني سنټ پترزبورک د ختیځ پوهنې د انستیتوت د خطي کتابونو په یو جونګ کې چې (ګلشن) نومېږي، د میرویس نیکه یو بیت خوندي شوی دی. هغه بیت دا دی:

عرض مې نه لګي پر تا تمام پاچا         څو به کومه فریادونه

د میرویس نیکه دا بیت یا ناره د ده د ژوند له واقعاتو سره اړه لري او دده د زړه هغه ناره ده، چې څلور خله د داد خواهۍ لپاره د اصفهان پاچهي دربار ته ورغی، مګر چا یې عرض وانه ورېد او د کندهار خلك یې د ګرګین له ظلمه خلاص نه کړل. تر دې چې په خپله توره یې کندهار او د کندهار خلك د ګرګین له ناروا وو وژغورل. میرویس نیکه، لکه چې تاسې د مخه ولوستل د کندهار له خلاصون وروسته د خلکو د ملي مشر په توګه د خپل ولس لارښوونه کوله او د ملي حکومت د ساتلو لپاره یې د صفویانو د تاړاکونو دفع کوله او په ۱۱۲۷ هـ ق کال د ذیحجه الحرام په ۲۸ مه په کندهار کې مړ شو او په کوکران کې خاورو ته وسپارل شو.

د میرویس نیکه په اولادونو کې د ده یو زوی شاه حسین او یوه لور زینبه هم د پښتو ژبې شاعران وو. شاه حسین د ۱۱۱٤ هـ ق کال د ربیع الاول په ۲۳ مه د کلات په سیوري کې زوکړی دی او د پلار د مړینې په وخت کې څورلس کلن و. کله چې یې ورور شاه محمود هوتك په ۱۱۳۵ هـ ق کال د اصفهان د نیولو لپاره ایران ته ولاړ نو په کندهار کې یې شاه حسین پاچا کړ. د هوتکي دولت سلطه یې تر کومله، ډېرو او شال (کوټې) پورې پراخه کړه. عادل او مدبر پاچا و. دربار ته یې علما وو، شاعرانو او فضلاوو لاره درلوده، کوم کارونه چې د افغانستان د فرهنګ د ودې او په زیاته د پښتني فرهنګ د ودې په خصوص کې د ده د حکومت په دوران کې شوي دي د زیاتې منې او یادونې وړ دي. د ده د پاچهی د دوران پر فرهنګي کارونو په همدې بحث کې خبرې راځي، خو دلته دیادونې وړ خبره دا ده، چې شاه حسین هوتك خپله د پښتو ژبې شاعر و.

د پټې خزانې تر کشف د مخه استاد عبدالحی حبیبی د ده یوه خوندوره ولـې

بدله پیدا کړې وه، چې په لومړي ټوك پښتانه شعراء کې چاپ شوې ده، خو کله چې پټه خزانه پیدا شوه، نو بیا ورسره دا هم ښکاره شوه، چې شاه حسین، د پښتو شعر دیوان درلود. استاد یې ملایارمحمد هوتك و: د پښتو شعر له ولسي اوزانو سربېره د شرقي شاعرۍ په شعري قالبونو کې یې هم اشعار ویلي دي، چې یوه ښکلې غزله یې محمد هوتك په پټه خزانه کې اخیستې ده، چې دوه بیته یې دادي:

| | |
|---|---|
| بېلتانــه دې دغمــو پــه چپاو چور کړم | په تیارو کې د هجران یې له تا دور کړم |
| بېلتانه دې هسې اوښکې را خپرې کړې | ستا دفکر پــه ګرداب کې تل عبور کړم |

شاه حسین هوتك پر کندهار د افشار نادر تر تاراکونو پورې په کندهار کې پاچا و، کله چې د نادر حملې پر کندهار پیل شوې، د کندهار حکومت له ښار نه مېړنی دفاع کوله، اما د افشار قواوو غلبه حاصله کړه او شاه حسین هوتك د دوی پــه لاس اسیر شو او بیا مازندران ته ولېږل شو او همالته په ۱۱۵۱ هـ ق کال مسموم کړل شو او هلته ومړ.

د میرویس نیکه شاعره لور زینبه د هوتکو د شاهي کورنۍ بله نومیالۍ، باتوره او فرهنګیالۍ میرمن ده، چې د محمد هوتك په قول عالمه، فاضله او دینداره ښځه وه او علوم یې له ملا نور محمد غلجي ځخه لوستي وو. د پارسي او پښتــو شعراوو دیوانونه یې لوستل او خپله یې هم د شعر ویلو عالي استعداد درلود.

زینبه له علم او فضل سربېره د تدبیر خاونده مېرمن وه او خپل ورور شاه حسین ته یې د ملك د ادارې په چارو کې مشورې ورکولې او پاچا به هم د ده پر خبرو او مشورو عمل کاوه. کله چې د ۱۱۳۷ هـ ق کال د شعبان پر ۱۲مه شاه محمود هوتك په اصفهان کې له دې نړۍ ځخه سترګې پټې کړې او دمرګ خبر یې کندهار ته راغی، نو یې خور بي بي زینبې پر مرګ یوه داسې له سوزه ډکه ویرنه وویله، چې اوس هم پر لوستونکو خاص اغېزښندي. زینبې د ویر او ماتم ماحول په خورا استادۍ په دې ویرنه کې تمثیل کړی دی.

دا ویرنه د پښتو ولسي شعر د ساده چاربیتې فورم لري، چې سر او یو بند یې دلته راوړم:

| | |
|---|---|
| رغ سو چې ورور تېر له دنیا سونا | قندهــــار واړه پــــه ژړا ســــونـــا |
| زړه مې په ویر کــې مبتـلا سونا | چې شاه محمود له ما جلا سونا |



| | |
|---|---|
| دا رون جهان راتــه تور تم دی نا | زړه د بېلتون په تېغ کړم دی نا |
| هوتك غمجن په دی ماتم دی نا | د پــاچهی تاج مو برهم دی نا |
| چې شاه محمود تېر له دنیا سونا | کنــدهــار واړه پــه ژړا ســونــا |

(۲) د پښتو تحریري حماسو د ایجاد زمینې:

حماسه د ادبیاتو یو موضوعي دول دی، چې په دې دول ادبي آثارو کې رزمي او جنګي مسایل په حکایتي او داستاني دول بیانیږي. په دغـې آثارو کې د رزم د خبرو تر څنګه کله کله د بزم خبرې هم خای خای خان ښکاروي اود هنر مالکه هم ورسره وي.

حماسه کېدای شي نظم وي او هم نثر. هغه اشعار چې جنګي او رزمي تکي پکې راغلي وي او داستاني شکل ونه لري، په حماسو کې نه حسابیږي. هر دول جنګي، رزمي او یا د فخر او ویارنې اشعاروته مور حماسه نشو ویلای. حماسې درې دوله ښوول کیږي تاریخي حماسې، عشقي حماسې او مذهبي حماسې.

په پښتو د تحریري تاریخي حماسو لیکل همدا د هوتکو د پاچهۍ په دوران پورې اړه لري.

کومې حماسې چې په دې دوره کې ایجاد شوې دي. په هغو کې ډېره مهمه او د یادونې وړ حماسه د ریدي خان مومند نظم کړې محمود نامه ده. په دې کتاب کې د حاجي میرویس هوتک او شاه محمود هوتک د جنګونو قصې بیان شوې دي. دا کتاب ریدي خان تر ۱۱۳٦ هـ ق کال وروسته په خواږه پښتو نظم کښلی دی. شاه حسین هوتک پرې ریدي خان ته زر طلا وې انعام ورکری و.

ریدي خان د غیاث خان زوی او دمحمود خان مومند لمسی و اود کندهار د مومندو په کلي کې اوسېده. دریدي خان پلار د میرویس نیکه ملګری و او خپله ریدي خان د شاه حسین هوتک په دربار کې د عزت خاوند و.

د ریدي خان د محمود نامې بشپړ متن په واك کې نشته: بوازې د ګرګین د وژلو داستان یې پتې حرانې رانقل کری دی. د محمود نامې شعر مثنوی دی: اما ډېر خوږ او روان مثنوي چې اغېزمني یې پر لوستونکو تابته ده: د محمـود نـامې دا داستان په دې بیتونو پیل کیږي.

| | |
|---|---|
| اوس بـه نـو تـاتـه حکایـت کړم دښو | خوږ روایت د ګرګین خان د وژلو |
| چې میرخان تلـلـی اصفهـان تـه ونه | مخ یـې ښکي دپاك سبحان ته ونه |
| پاچا تې عرض کر تول اقوال د پښتون | د ګرګین ظلم بداحوال د پښتون |
| پاچا ویل زه نـسـوای کـولای چاره | د ګرګین خان ظلم وستم د پاره |

د دې دوران بله حماسه چې مور ته معلومه ده. هغه (جګړه دمحمود افغان بیول د اصفهان) نومیږي. دا حماسه په پښتو خواږه نثر لیکل شوی ده او په حماسې کې د راغلو پېښو د بیان په ترخ کې یې پښتو رغونه یا نارې هم ورسره ملې کړې دي.

د دې حماسې لیکوال محمد امین سرپربکری نومیږي. چې به ۱۱۳۵ هـ ق کال له شاه محمود افغاني سره د اصفهان د نیولو په جګره کې شامل و ده خپله لیکلې

دي: (( زه په دې غزا کې ۳٦ کلی وم. د جنګ په فنونو او فتورونوکې ګرندی وم.))
محمد امین سرپرېکړی عرانی کوچی و. چې د محقق رفیع د خبرتو له مخې عرانی
په ناسرو پښتنو کې میشت وو او دی د ارسلاحان تا سر تر بیرغ لاندې اصفهان ته تللی
و. د ده د زوکړې کال ۱۰۹۹ هـ ق کال دی او د روځ د لیکنې له مخې یې علا
محمد امین سرپرېکړی په ۱۱۷٤هـ ق کال مړ شوی دی. د ده د دې حماسې په باب
د ده زوی حافظ نور محمد لیکلي دي: (( ده مبارک چې حال د دې جګړې په خپله
لیدلی و. نو یې وروکی کتاب په ژبه جوړه د پښتو کې په حال د دې جګړې لیکلی
وو او نوم ددې کتاب (جګړه دمحمود افغان. نیول د اصفهان) دی. حق دا دی چې
دېر ښه او رښتینی بیان دی او دا کتاب په زړو د پښتو له جهته د بدلو دقومو قیمتي
دی او نرو ښځې او کم ولوی یې حواهشتي دي" . د هوتکي دوران د دې حماسې
خرک ساغلی رفیع را ایستلی دی او د محمد امین سر پرېکړي نور اشعار استاد رشاد
پیدا کړي دي.
دریمه حماسه چې د هوتکو د ادبي غورځنګ په ارتباط په وروسته کې ایجاد
شوې ده. هغه (قصه دبرښنا یا خدی) نومېږي. د دې حماسې لیکوال د یاد شوي
محمد امین سرپرېکري زوی حافظ نور محمد دی.
حافظ نور محمد دا عشقي حماسه په ۱۲۰٤ هـ ق کال لیکلي ده. چې تر اوسه نه
ده چاپ شوې اوخطي نسخه یې له ساغلي رفیع سره شته. حافظ نور محمد دا
حماسه په خواره پښتو نثر لیکلې ده اود لیکلو باعث یې د خیل پلار علا محمدامین
سرپرېکري تاریخي حماسه: جګړه دمحمود افغان.نیول د اصفهان سوولی دی. ده
خیل پلار په تعقیب اودهماغه د کتاب په پیروی دا حماسه لیکلي ده. لکه چې مؤلف
خپله ویلي دي: "ماهم قصد وکاوه چې سربېره په پله د ده زهي سم او په دې باب
کوښښ کرونکی او زیاري سم...."
(۳) د نارنج په ماڼی کې د ادبي دربار ایجاد:
د شاه حسین هوتك د پاچهی زمانه (۱۱۳۵ ـ ۱۱۵۰ هـ ق) په کندهار کې د پښتو
ادب د روزنې پالنې زمانه ده. په دې دوران کې دپښتو آثارو د تالیف له پاره خورا
زیاتې زمینې موجودې شوې دي او جا چې سه کتاب لیکلی دی. نو پاچا جایزې
ورکړې دي.
د کندهار په پاچهي ارګ کې چې یې د (نارنج ماڼی) بلله. د پاچا په توجه
کتابخانه جوړه شوې وه او په دې کتابخانه کې به هفته کې یو حل ادبي محلس
جوړېده او پاچا خپله په دې محلس کې ګډون کاوه محمد هوتك د دې دربار رکن
او منشي و: دده د ... ... ... ... دی: باد شاه عالم پناه په ارګ کې او ...
محلس کې ... هغه قصر ... نارنج ماله ... هفته کې بود ورځ دربار

کاپه کتب خانه او په مجلس کې علماء جمع کېږي او شعراء او فضلا تولوي. زه محمد هوتك کاتب د دې کتاب هم په دې مجلس کې یم او د پادشاه ظل الله اشعار او ابیات په قلم کاږم....

د هوتکو د پاچهي په زمانه کې او په تېره د شاه حسین د پاچهي په دوران کې ډېرو علماوو او شاعرانو له پاچهي دربار سره ارتباط درلود او د دربار له خوا په درنه سترګه ورته کتل کېدل. هغه عالمان، شاعران او لیکوال چې د هوتکو له دربارونو سره مربوط وو. دا دي:

داود هوتك د قادر خان هوتك زوی و. چې کورنۍ یې په مرغه کې اوسېده بیا د کلات سیوري ته راغلل او له سیوري نه د کندهار کوکران ته راوکوچېدل او داود خان په ۱۰۲۹ هـ ق کال همدلته په کوکران کې وزوکېد او چې لوی شو نو مروج علوم یې ولوستل: کله چې حاجي میرویس نیکه کندهار له پردو وژغوره. نو بیا داود خان له ده سره ملګری و. داود خان پښتانه قبایل د میرویس خان مرستې ته راپلل او په یو جنګ کې د خسرو خان په مقابل کې د میرویس لښکرو مشر داود خان هوتك و. داود خان په ۱۱۳٦ هـ ق کال مړ شوی دی. ده د شعر عالي طبع درلوده او ښکلي اشعار یې ویلي دي. دوې رباعۍ یې چې په پټه خزانه کې خوندي شوې دي، د پټې خزانې په قول د فصاحت له پلوه ساری نه لري او د تجنیس په صنعت کې یې نظیره دي، له دې دوو رباعیو څخه یوه داده:

چې د چاپه زړه کې اور دمینې بل سي     په اوربل یې لمبې کدې حال یې بل سي
اور د مینـــې کلـــه مړي د زړه له مېنې     د اوربـــل مینـــه که تـــل د زړه په تل سي

ملا یار محمد هوتك د مسایل ارکان حمه لیکوال په دې زمانه کې د کندهار له لویو علماو څخه و او د شاه حسین هوتك استاد و او د ده اشعار یې اصلاح کول.

ملا محمد یونس توخی د ملا محمد اکبر زوی چې د شاه حسین په دوران کې د کندهار د جامع جومات امام و. د دغه وخت بل ستر عالم دی، چې جامع فرایض نومی کتاب یې په پښتو لیکلی و. ملا زعفران نره کې د شاه حسین د دربار له ډېرو نږدې کسانو څخه و. ده د ګلدستهٔ زعفراني په نامه کتاب په طب او حکمت کې لیکلی دی. دی د پښتو شاعر هم و او د شال اوروب د فتح زېری یې یوه ورځ پاچا شاه حسین ته په دې لاندې بیتونو کې ورکړی و:

د حسین پادشاه د بخت ننداره ګوری     چې یـې فتح په لښکرو روب وشال کا
چې دازېری یې راوړی دی حضور ته     نو زعفران انعام پر سر زعفراني شال کا

بابو جان بابی دکرم خان زوی و. د کلات د سیمو په اتغر کې اوسېده: له میرویس نیکه سره یې د کندهار په آزادۍ کې برخه درلوده او په کندهار کې د افغان حکومت تر تشکیل وروسته د کلات حاکم و او د اصفهان په جنګونو کې د شاه

محمود ملکری و.

دی د پښتو ژبې شاعر و: په ۱۱۳۹ هـ ق کال یې د پښتنو ملي تکل (شها او کلان) په پښتو نظم کړ. چې دوه بیته یې دا دي:

| | |
|---|---|
| عشق یو هسې توریالی دی | چې پر هر ځای یې برې دی |
| د عشق او رهسې سوزان دی | چې سوځلی یې جهان دی |

سیدال خان ناسر د ابدال خان زوی و. سیدال خان ناسر ننګیالی او توریالی سالار او ورسره یې مروج علوم هم لوستي وو. ده له میرویس نیکه سره د کندهار په مهم کې برخه درلوده او په اصفهان او د ایران په نورو برخو کې یې د شاه محمود او شاه اشرف د لښکرو د مشر په توګه تورې ووهلې او بیا له شاه حسین سره د کندهار په دفاع کې په مړانه ودرېد. تر دې چې د نادر افشار په امر ړوند کړای شو. سیدال خان بیا له خپلو خلکو سره د کابل شکر درې ته راغی او دلې مړ شو او د شکر درې د سیاه سنګ په هدیره کې خاورو ته وسپارل شو. د پټې خزانې مؤلف د ده یوه ښکلې بدله خوندي کړې ده، چې سر یې دا دي:

| | |
|---|---|
| یار ماله هسې ګران سو | را تېر تر ټول جهان سو |
| نور نه وینم په سترګو | جهان ټول راته جانان سو |

پیر محمد میاجي د ملا سرور هوتك زوی، د کندهار د هوتکو د دربار له نومیالیو علماوو څخه و. ده له میرویس نیکه سره په جنګونو کې برخه درلوده. کله چې شاه محمود په اصفهان کې و، نو یې دی هلته وغوښت او هلته د پیر افغان په لقب ستایل کېده. ده د افضل الطرایق په نامه د اخلاقو او عقایدو په بیان کې کتاب نظم کړی و، او بل کتاب یې درلود، چې (القرایض فی رد الروافض) نومېده. د افضل الطرایق یو پښتو حکایت یې پټې خزانې راوړی دی، چې دوه بیته یې دا دي:

| | |
|---|---|
| شیخ متي چې خلیلي و | دي له آره لوی ولي و |
| یوه ورځ روان پر لار و | لوی ښتن په استغفار و |

ملا نور محمد غلجي د ملا یار محمد توخي زوی، د هوتکو د پاچهي کورنۍ د ښځو او نجونو استاد او لوی عالم و. په پښتو یې د نافع المسلمین په نامه کتاب د اخوند درویزه (رح) د مخزن پر سبك لیکلی دی. د ده د غه کتاب په ۱۳۶۳ هـ ق کال په کابل کې چاپ شوی دی. دی په پښتو ځینې مخمسونه هم لري، چې یو یې پټې خزانې اخیستي دی او د پیل بند یې دلته راوړل کېږي:

| | |
|---|---|
| ته مومن ژوندي په دین یې زما یاره | ته ژړا فریاد کوه په څو کوکاره |
| استغفار توبه کوه دځان د پاره | ته هم ځان ساته پناه غواړه له ناره |

بیداري کړه په سهار زما دلداره

بهادر خان د شاه حسین د لښکرو لوی سالار و. د شال اوروب کلاوې یې فتح

کړې. دی توریالی سالار او جواد او مدیر سری او شاه حسین یه د ورور خطاب ورنه کاوه. بهادر خان د پښتو شاعر هم و، یوه خوږه بدله یې پټې خزانې راوړې ده، چې سر یې داسې دی:

بېلتون دې زور دی تر لیمو مې سهارنم څاځي
لکه شبنم څاځي
دا سره یاقوت مې په لمن کې ستا په غم څاځي
په غم الم څاځي

نصردین خان اندړ د هوتکو له دربار سره یو بل متسلك شاعر او لیکوال دی، چې د شاه حسین هوتك په زمانه کې له غزني کندهار ته راغی او د خپل شجاعت او بهادرۍ په وجه یې ډېر ژر دربار ته لاره وموندله. ده په پښتو اشعار ویل او د (پلار ویلي) په نامه یې یو کتاب په پښتو نثر لیکلی دی، چې د هوتکي دربار واقعات یې پکې راوړي دي، د ده یوه بدله هم په پټه خزانه کې خوندي ده، چې سر یې دا دی:

د خوار عاشق ژړا مدام وي دا څه کار دی نا
که وي په پټه خوله همدغه یې ګفتار دی نا

محمد هوتك د داود خان زوی او د قادر خان لمسی په ۱۰۸۴ هـ ق کال په کوکران کې زوکړی و. مروج علوم یې ولوستل: د پښتو شاعر او لیکوال شو: د پلار تر مرګه وروسته دربارته راوبلل شو او د شاه حسین د دربار منشي و.

ده یوکتاب د خلاصه الفصاحت په نامه ولیکه او بل یې دخلاصه الطب په نامه لیکلی دی، چې پاچا ورته سل طلاوې بخشش ورکړې دي. ده د پښتو شعر دیوان هم درلود او پټه خزانه د ده ډېر غوره اثر دی، چې د پښتو د ډېرو لرغونوشاعرانو لړ احوال او آثار یې پکې خوندي کړي دي. دا کتاب محمد هوتك د شاه حسین په امر لیکلی دی. دا کتاب یوطبیعي کتاب دی او د تذکره لیکنې له معمولو روشونو سره سم لیکل شوی دی او داسې څه خلا پکې نه لیدل کېږي، چې دپښتنو له تاریخ او د پښتو ژبې او ادب له ارتقایي مراحلو سره دې په منافات کې واقع وي.

محمد هوتك د هوتکو دپاچهۍ تر سقوط وروسته د کلات سیوري ته راغی او هلته یې کاریز وواهه او کلی یې جوړ کړ، چې هغه کلی او کاریز تر اوسه د ده په نامه (مموکلی) او (ممو کاریز) یادېږي او د ده قبر هم د هماغه کلي په هدیره کې دی.

په پټه خزانه کې د ده د اشعارو نمونې شته، نورې متفرقې غزلې یې هم مېندل شوې دي. د ده د غزلو له مطالعې ښکاري چې محمد هوتك له نور فضیلت او علمیت سربېره د پښتو ښه غزل ویونکی شاعر هم و، د یوې غزلې مطلع یې دا ده:

ساقي پاڅه د سرو میو ډك یو جام را ستاله غمه ناآرام یمه آرام را

د کندهار د هوتکو باچهانو او ملي مشرانو له دربارونو سره په ارتباط کې چې کوم آثار ایجاد شوي دي، ځینې یې ادبي آثار نه دي، لکه: افضل الطرایق، پلار ویلي، ګلدستهٔ زعفراني، خلاصه الطب، جامع فرایض، نافع المسلمین او نور...

خو ځنګه چې ښکاره ده د دغو شاهانو په زیاته د شاه حسین مینه له دې سره وه، چې په پښتو آثار ولیکل شي او د هر ډول آثارو لیکوال او ناظمان یې تشویقول. اما د دغو غیر ادبي آثارو تر څنګه په همدې پیر کې ډېر ادبي آثار هم په پښتو لیکل شوي دي، چې ځینې یې زموږ په واک کې دي او ځینې یې لا تر اوسه بشپړ نه دي موندل شوي او یوازې نمونې یې د پټې خزانې په قیمتي پاڼو کې تر موږه رسېدلې دي.

د هوتکو د دورې تر لاسه شوېي ادبي آثار د پښتو د ادبي تاریخ لپاره ارزښتمن دي او د ادبي تحول ځینې ځرکونه موږ ته په لاس راکوي.

(٤) دهوتکو په دوران کې دپښتو ادب دایجاد او ودې نورې زمینې:

د هوتکو د پاچهۍ دوران (١١١٩. ١١٥٠هـ ق) د پښتو ادبیاتو او پښتو آثارو د ایجاد او ودې یوه بختوره دوره ده.

دغه وخت لا د خوشحال ځینې زامن ژوندي وو او آثار یې ایجادول، او د خوشحال د سردارۍ او خانۍ پر ګدۍ د ده فرهنګ دوست لمسی افضل خان خټک ناست و، خپله یې هم فرهنګي کارونه کول، او نور یې هم تشویقول چې پښتو آثار ایجاد کړي.

د رحمان بابا د شاعرۍ انګازې لا د پښتونخوا په ګوټ ګوټ کې خورې وې او عبدالحمید مومند او د ده پیروانو دغه وخت د هندي سبك شاعرۍ ته په پښتو ادب کې پراختیا ورکوله.

موږ پر دغو ټولو جریاناتو یا دمخه خبرې کړې دي او یا به یې وروسته وکړو، خو د هوتکو د پاچهۍ په دوران کې ځینو نورو شاعرانو هم په افغانستان ، پښتونخوا او نورو سیمو کې ژوند کړی دی او آثار یې ایجاد کړي دي. دغه کټیګوري ادبي آثار او ویناوال یې چې په نورو جریانونو اړه نه لري، نو غواړو چې د دې پیر په حاشیه کې پر دغو شاعرانو او د دوی پر آثارو هم لږ خبرې وکړو.

په دغه ډله شاعرانو او لیکوالو کې یوه ډله داسې شاعران دي په عام ډول یې د پښتو د ولسي شاعري په کالبونو کې شاعري کړې ده، په دغو کسانو کې موږ هغه شاعران یادولای شو، چې محمد هوتك په پټه خزانه کې راښوولي دي. د محمد هوتك دغه ضبط موږ ته دا هم راښیي چې تر دې دوران د مخه او وروسته به څومره ولسي شاعران په پښتو کې تېر شوي وي، چې ځینې محدود کسان یې موږ ته معلوم دي. په دې ډله شاعرانو کې دا لاندې کسان یادولای شو: ملا باز توخی چې په اتغر

کې اوسېده او يوه رباعي او يوه ولسي بدله يې په پټه خزانه کې راوړل شوې ده.
محمد ګل مسعود چې ولسي بدله يې د پټې خزانې له لياري موږ ته رسېدلې ده؛
دارغسان اوسېدونکی د يار محمد پوپلزي زوی ملا محمد صديق پوپلزی، چې د ده
ولسي بدله هم محمد هوتك راوړې ده؛ اللهيار افريدی چې د اوسني بلوچستان په
بوري کې اوسېده، ملا محمد عادل برېځ چې د شوراوك اوسېدونکی و، محمد طاهر
جمرياني د محمد علي زوی چې په کندهار کې اوسېده او هزل ويونکی شاعر و؛
محمد عمر لوڼ د کندهار اوسېدونکی چې دا هم ظريف شاعر ياد شوی دی. په
کندهار کې اوسېدلی ملا محمد اياز نيازی؛ د محمد اکبر بارکزي زوی ملا محمد
حافظ بارکزی او د سوی او اوښ د فکاهي قصې ويونکی حافظ عبداللطيف اڅکزی
چې په اصل کې د بوستان دی، پلار يې غلام محمد کندهار ته راغی او عبداللطيف
د کندهار په ماشور کې اوسېده. دا لوړ ياد شوي شاعران چې ټول د هوتکي دورې
معاصران دي او محمد هوتك پر موږ پېژندلي دي، له يو نيم نه پرته نورو ګردو د پښتو
د ولسي شاعرۍ په آهنګونو په خاص ډول د بدلو په قالب کې شاعري کړې ده. بدلې
يې په هنري لحاظ د پښتو د نورو ولسي بدلو په رديف کې درېدلای شي؛ موضوعات
يې هم رنګارنګ دي، دعشق او مينې خبرې، ديني او وعظي مسايل، هزليات او
فکاهي او خندوونکې خبرې او مطالب رانغاړي.

له دغو ولسي شاعرانو سربېره دغه مهال ځينې نور غزلسرا شاعران هم تېر شوي
دي، چې يو نيم يې ښايي له غزلو سر بېره ځينې نور اشعار هم ويلي وي، مګر په عام
ډول دغه شاعران غزل ويونکي شاعران دي، لکه:

د راز خان موسی زی، چې څو بيتونه يې دپښتانه شعراء په لومړي ټوك کې
راغلي دي. محی الدين د دې زمانې يو بل غزل ويونکی شاعر دی، چې د يوې
ښکلې هنري غزلې يو ښه بيت يې دا دی:

نه باران نيساني دی، نه رحمت آسماني دی
ستا د غم په شهيدانو پر ښتې کاندي ورهسی

سعيد خليل د پښتو بل غزل ويونکی شاعر دی چې مخمسونه يې هم ويلي دي،
د يوه مخمس يو بند يې دادی:

لکه ستا دي دلربا په توره سترګې | په دا شان په جهان نشته نورې سترګې
نرګس څه دی راته وايه ګورې سترګې | دل و دين له سرې ورې ستا چورې سترګې
مخ دې زيب کاندي تر ګل زره مې بورا دی

انار، ملنګ، مومين، فيض الله، ګل خان، نصير، بنارس، فضل الحق، عالم ګل
ګرد غزل ويونکي شاعران دي، چې د لوړ ياد شوي محی الدين او سعيد خليل په
شمول د دغو ګردو شاعرانو غزلې په لومړي ټوك ادبي ستوري نومي تذکره کې

راغلي دي. دا شاعران ګرده په غالب ګمان د پښتونخوا د سيمو شاعران دي. تړلاسه شوي غزلې يې د دوولسمې پېړۍ د غزلو کړه وړه لري او د ژوند او ادبي فعاليت دوران يې د هوتکود پاچهۍ له دوران سره مصادف اټکل کېږي.

رشيد نومي غزل ويونکي شاعر هم د همدې وخت شاعر معلومېږي. په ډېرو خطي مجموعو کې يې متفرقې غزلې راغلې دي. دی هم د پښتونخوا د سيمو شاعر دی، د يوې غزلې مطلع يې دا ده:

چې دلبر له ورايه ما ته په خندا شي　　　　په معنی غنچه د ګلو راته وا شي

جمال الدين نومی شاعر چې څو غزلې يې د ادبي ستوري په دوهم ټوک کې چاپ شوې دي، غالباً د هوتکو د پاچهۍ دوران ته ورځېرمه د کلات په سيمو کې اوسېدلی دی. د ده د يوې غزلې مطلع:

سترګې مې ړندې شوې د جانان له اشتياقه
سرې، لکه انار شوې په هجران کې له فراقه

د هوتکو د پاچهۍ دوران ته ورځرمه موږ د کلات او غزني تر منځ پرتو سيمو کې اوسېدلي ځينې نور شاعران هم پېژنو، چې ځينو يې که د غزل ويلو ته هم شوق کړی دی. مګر په غزل کې يې هم د خپلو ولسي عنعنو آهنګونه ورداخل کړي دي، لکه دا غزل:

لـوړې، لــوړې، محبـــوبــې لـــوړې　　　　صرفه دې نه شي په چا ځان مــړې
سپې دي راپسې دي موږ دې پې وخوړو　　　　له خندا شنه شوې په کټ کې رغړې
ځار دې تــر خــولې شم، ترشنو خالونو　　　　زلفـې دې بـاد وړي پر مخ او مړې

دا لوړه غزله د بای خان نومي شاعر ده، چې د کلات او غزني تر منځ زمکوکې اوسېدلی دی. دا لوړه غزله د آهنګ له پلوه د پښتو د ولسي شاعرۍ د نارو خوند لري. د بای خان دا غزله په ګلزار روه نومي کتاب کې چاپ شوې ده او يوه بله غزله يې د پښتو د ادبي تاريخ خطي منابع نومي اثر په تعليقاتو کې راغلې ده.

علم ګل او نبو هم دوه نور شاعران دي، چې همدغه مهال به يې د کندهار او کلات په شاوخوا سيمو کې ژوند کړی وي. د دوی غزلې د پښتو د ادبي تاريخ خطي منابع نومي اثر کې چاپ شوې دي؛ په دې دوو شاعرانو کې د نبود غزلې هنري پرداخت لوړ معيار لري، لکه دا بيت:

ګرځم له عاشقه مدام زه ګوښه کنار　　　　نه کېږي هېڅ رنګه توان د روغ و د بيمار

اما د علم ګل شعري استعداد اوچت نه دی او غزل يې هنري مايه نه لري.

پاينده او فتح علي دوه نور غزل ويونکي شاعران دي، چې خطي او چاپي متفرقې غزلې يې ليدل شوې دي. دا کسان د پښتونخوا د سيمو شاعران معلومېږي او د ژوند او ادبي فعاليت دوران يې هم د دوولسمې هجري پېړۍ له لومړي نيمايي

سره تصادف کوي، د فتح علي د يوې غزلې مطلع دا ده:

ستا غمونه له کوګل زما چاپېر شوه
د کمي شانې ښکاره نه شه لا ډېر شوه

او د پاينده تر لاسه شوي غزل داسې شروع کېږي:

ما چې وليدې ګلرنګې سترګې سرې ستا
نه مړېږي د ديدن په ننداري ستا

مسري خان ګګياڼی د پښتو او پارسي ژبو ديوان لرونکی شاعر ژوند او ادبي دوران هم له هغه وخته سره سمون لري، چې په کندهار کې د هوتکو پاچهي په زور او شور کې روانه وه. دغه مسري خان دغه وخت د پېښور د دواوې په ګانګړه نومي خاى کې اوسېده، د خپل وخت لوی عالم او په مروجو علومو کې رسېدلی او د پښتو او پارسي ژبو ښه شاعر و. کومه نېټه چې د ده له ديوانه لاس ته راځي هغه ۱۱۲۷ه ق کال دی، مګر ادبي مورخينو د ده ژوند تر ۱۱۵۰ هـ ق کال پورې يقيني ګڼلی دی. د مسري خان ديوان په ۱۹۵۹ع کال په پېښور کې چاپ دی، د يوې غزلې مطلع يې دا ده:

تنها نه دی‌له رقيبه زړه زما پوخ د اشنا له استغنا مې دی زړه لا پوخ

د مسري خان په ديوان کې قصيدې، غزلې، رباعي او نور پيدا کېږي او موضوعات يې هم عشقي، اخلاقي اوعرفاني رنګ لري.

نعمت خان د سکندر نصرت خېل زوی او د يوسفزو د سيمو د پنج پير اوسېدونکی او د پښتونخوا په توابعو کې اوسېدلی عزيز نومی دواړه د مسري خان دوستان هم د همدغه وخت وېناوال وو.

## د هوتکو د دوران ادبي جريان ته يوه کتنه:

د هوتکو د پاچهي په دوران کې د افغانستان پښتونخوا، بلوچستان اوان د هند په ځينو سيمو کې د پرتو پښتنو تر منځ د پښتو ادبياتو د ايجاد زمينې موجودې وې او د پښتنو په ځينو خانيو او سرداريو کې د پښتو خدمت ته هم ملاوې تړل شوې وې؛ خو کله چې د هوتکوپاچهي جوړه شوه او په کندهار کې پښتني ملي دولت تشکيل شو، نود پښتو د ودې او د پښتو آثارو د ايجاد او تاليف خوا ته ځينې منسجم ګامونه اوچت کړای شول. دغو کارونو ځينې ابتکاري خواوې هم درلودې. موږ د دې ادبي پړاو خصوصيت داسې ښوولای شو:

۱) د هوتکو په دربار کې د ادبي دربار ايجاد اوپه هغه دربار کې د علماوو راټولول او د آثارو پر ايجاد او تاليف د انعام اوصلې ورکول، د پښتنو د فرهنګ په

((۷))

# پر پښتو ادب د هندي سبک اغېزې او د کندهار په ادبستان کې د دغه سبک روزنه

دلسمې هجري پېړۍ په جريان کې د پارسي ژبې ځينې شاعران د پارسي شاعرۍ له زړو عنعنو څخه ووتل او په خپل شعر کې يې نوې لاره غوره کړه. ديوولسمې هجري پېړۍ په اواخرو او د دوولسمې پېړۍ اوايلو کې دغه نوي شعري لاره خپل اوج ته ورسېدله. په هند کې اوسېدلو ځينو پارسي ژبو شاعرانو هم دغې نوې شعري لارې ته مخه وکړه، نو ځکه دغې ادبي لارې د هندي سبک په نامه شهرت پيدا کړ.

ادبپوهانو ددغه سبک عمده خصوصيات داسې ښوولي دي:

۱) ددغه سبک تابع آثار زياتره ابهام او پيچلتيا لري.

۲) د دغه سبک خاوندانو د خپلو پخوانيو شعري،عنعنو په پرتله نويو مضامينو او د تازه فکرد پيداکولو خوا ته توجه کړې ده.

۳) ايجاز ددې سبک بل خصوصيت دی، د دغه سبک شاعران زياتې خبرې په لږو الفاظو کې بيانولای شي.

٤) دقيقو تشبيهاتو او ځانګړو استعاراتو په دې شعرونوکې ځانګړې وده موندلې ده.

٥) د دې سبک په شعرونو کې متلونه، عامې محاورې او محلي اصطلاحات ډېر استعمال شوي دي.

٦) د هندي سبک پيرو شاعران د خپلو اشعارو دهر شعر په مسريو کې الفت او تناسب ساتي د تقابل او مراعات النظير، مدعا و مثل اوحسن تعليل د ادبي صنايعو په پاللو کې ډېر پياوري دي.

۷) د دې سبک اشعار د يو خاص آهنګ او لحن (غاړې) لرونکي دي.

۸) د دې سبک غزلې زياتره د مينې په محور چورلي، حال دا چې تر دې سبک د مخنيوشاعرانو په غزلو کې متنوع موضوعات بيان شوي دي د دې سبک غزلې ځينې موضوعي تشتت لري او هم آهنګي پکې نه ليدل کېږي.

۹) د هندي سبك پیرو شاعران زیاتره دنکته سنجی او مضمون تراشی په فکر کې وي او د شعر د معمولو قواعدو چندان خیال نه ساتي. د غزلو د بیتونو زیاتوالی او د قافیې د تورو تکرار او نور د هندي سبك په پیروی ایجاد شوو شعرونو کې لیدل کیږي.

۱۰) افراط او تفریط، اغراق او مبالغه دهندي سبك په تابع اشعارو کې زیات لیدل کیږي. د هندي سبك اشعارو د یوولسمې پېړۍ په حدودو کې د پښتونخوا او افغانستان سیموته هم لاره پیدا کړې وه او د پښتنوپه فرهنګي حلقو کې هم دغو آثارو لوستونکي درلودل. دغه وخت په پښتونخوا کې یوه شاعر په خپله شاعرۍ ابتدا کوله، دغه شاعر د خپلو همعصرانو او دمخنیو شاعرانو په سبك پسې اقتدا ونه کړه بلکه د نویو مضامینو او نویو هنري لارو خواته یې خپله توجه راوګرځوله او هماغه و چې د هندي سبك نویو مضامینو، نویو هنري روشونو د ده توجه جلب کړه او په پښتو کې یې د هندي سبك په طریقه اشعار وویل.

دا سړی عبدالحمید مومند و. د پېښور د ماشوګکر په سیمه کې زوکړی و. د زوکړې یقیني نېټه یې نه ده څرګنده، اما داسې ګمان کیږي، چې د یوولسمې هجري پېړۍ په اواخرو کې به زوکړی وي. ده متداول علوم لوستي وو او په خپل وخت کې په ملا عبدالحمید مشهور و. دا خبره، چې دی ملا و،د ده د خینو آثارو د خطي نسخو په پای کې لیدل کیږي. په پارسي ادبیاتو کې د پراخې مطالعې خاوند و او په عربي هم پوهېده.

هانري جارج راورتي وایې چې عبدالحمید مومند په ۱۱۴۵هـ ق کال کې مړ شوی دی.

عبدالحمید د ماشوګکر په هدیره کې ښخ دی،د ده قبر د ماشوګکر په هدیره کې اوس هم څرګند دی او کله کله مشاعرې پرې جوړیږي.

حمید د شعر ویلو عالي استعداد او مبتکر فکر درلود او د تازه مضمون په پیدا کولو کې د مهارت خاوند و. حمید د خپل ادبي فعالیت په دوران کې داسې رنګیزه، ښکلې او د شعر په بدیعي ښکلاوو سمبال شاعري وکړه ، چې وروستیو دی د موشکاف په لقب وستایه.

عبدالحمید مومند د شعر یو رنګین دیوان لري، چې زیاتره غزلې پکې راغلې دي، یو ترکیب بند، مخمس، څو قصیده ډوله غزلې او دوې رباعي هم ورسره ملې دي. د عبدالحمید دیوان څو څله، په کابل، پېښور، بمبیي او نورو ځایونو کې چاپ شوی دی. او آغاز یې په دې ښکلو بیتونو شوی دی:

| | |
|---|---|
| الهي د محبت سوز و ګداز را | په دا اور کې د سهی سمندرساز را |
| تن پرور بلبل دې عیش کاندي په ګلو | پروانه لره په اور زما پرواز را |

عبدالحمید مومند د مولانا غنیمت کنجاهی نیرنګ عشق په روانه او خوږه پښتو مثنوي ترجمه کړې دی. د حمید ترجمه آزاده ترجمه ده او خورا لوړ ادبي قوت لري، ټول بیتونه یې ۱۸۱۸ دي؛ حال دا چې د اصلي پارسي متن بیتونه ۱۵۰۰ دي.

د حمید د دې ترجمې څو ښکلي بیتونه چې تمثیلي اړخ هم لري، دا دي:

هغه شوخ په اوریده د دې نغمې د آرام په سینه کښېنوي تغمې
په خندا له ځایه هسک لکه لمبه شه دم قدم پورې د رقص په پومبه شه
هراندام د ګلندام په نځېده لکه موم د اور له تاوه څځېده
کښېناستو یې کښېنول سل آفتونه پاځېدو یې پاځول سل قیامتونه

د حمید نیرنګ عشق په کابل، پېښور او ډیلي کې چاپ شوی دی.

له نیرنګ عشق سربېره عبدالحمید مومند د هلالي چغتایي د شاه و درویش قصه هم په خوږه او روانه مثنوي ترجمه کړې ده. حمید دا ترجمه د شاه و ګدا په نامه په ۱۱۳۷هـ ق کال بشپړه کړې ده. د حمید ترجمه هم خوږه، خوندوره او هنري ده،دوه بیته یې دا دي:

یو خط ښکلی و په حسن و په جمال کې
د رخسار زیبا یې راوړه په خط خال کې
سفیدي کې یې سیاهي وه لاندې باندې
ګویازلفی په سپین مخ دي اویزاندې

د عبدالحمید مومند د شاه و ګدا قصه هم په پېښور او ډیلي کې چاپ شوې ده.

له دیوان، نیرنګ عشق او شاه و ګدا سربېره ځینو څېړونکو د شرعه الاسلام مثنوی هم عبدالحمید مومند ته منسوبه بللې ده، مګر ځینې نور پوهان په دې نسبت کې شك کوي، نو ځکه موږ دغه اثر سل په سلو کې د ده نه شو ګڼلای.

که څه هم په پښتو شاعرۍ کې حمید د هندي سبك شاعرۍ مؤسس دی، خو د حمید هنر بیا دا دی، چې ده د هندي سبك اساسات په اعتدالي بڼه خپل کړي دي. د ده شاعري د پښتو ژبې لفظي او معنوي خصوصیتونه نه دي بایللي. په پښتو کې حمید د هندي سبك په معتدلو پیروانو کې د مشر او امام درجه لري. لر او بر او حتی د هند په ځمکو کې ډېرو شاعرانو د ده لار نیولې ده او خپل شعري سبکونه یې د حمید د شاعرۍ په پیروۍ عیار کړي دي.

کله چې سړی په پښتو ادبیاتو کې د هندي سبك پر اثراتو بحث کوي، نو ورته ښکاري چې په پښتو کې د دغه سبك په پیروۍ شاعري په پښتونخوا کې پیل شوه او په هند کې اوسېدلو ځینو پښتنو شاعرانو معراج ته ورسوله او په کندهار کې یې وده وکړه او اغېزو یې تر معاصرې دورې پورې پایښت وموند.

عبدالحمید مومند به لا ژوندی و، چې د پښتونخوا په سیمو کې د هندي سبك

خوښوونکي پښتانه شاعران نور ډېر پيدا شول، چې ځينو د حميد او به بهايت کې دهندي سبك پيروي کړې ده. په دوولسمه او ديارلسمه پېړۍ کې د پښتونخوا ډېرو شاعرانو په دې سبك ويناوې وکړې، چې مشهور کسان يې دا دي:

حسين د دوولسمې پېړۍ شاعر دی، چې د پښتونخوا د هزاره ضلعې د بکلي نومې سيمې په ملك پوره کې اوسېده. د پښتو په ډېرو ښو شاعرانو کې حسابېږي، د هندي سبك او عبدالحميد مومند له پيروانو څخه ګڼل شوی دی.

ديوان يې په ۱۹۵۷ ع کال په پېښور کې چاپ دی. د حميد فکر او مضمون د حسين د ديوان پر ډېرو اشعارو خپل خاص اغېز لري، د حميد د فکر تر اغېز لاندې د يوې ښکلې غزلې يو بيت يې دا دی:

آب وتاب يې د مخ کم شو چې يې خط په رخسار راغی
ربا کمه د سپوږمۍ شي چې شي ګيره په هـــاله کـې

قلندرا کوزی يوسفزی د حميد مومند له پيروانـو څخه دی. ده دحميد په بـاب ويلي دي:

فضل د سبحان د قلندر په شعرو شو | دا واړه سبب فصيح بليغ و د ماشو

قلندر د سوات اوسېدونکی و؛ له ميرا سره مينې د ده وينا ته خاص سوز وربښلی دی. دهمدغه سوز علت به وي چې استاد حبيبي دی د ځانګړي سبك موجد بللی دی. مګر اصلي خبره دا ده چې قلنـدر د هنـدي سبـك پيـرو شاعـر دی او مـور د ځانګړي سبك موجد نشو ورته ويلای، سره له دې چې د ده ټوټې (قطعې) ځينـې خاص سبکي ځانګړتياوې لري.

قلندر يـو کوچنـی خو ښکلی ديوان لـري، چـې ښکلـې غزلـې، خونـدورې او سوزناکې قطعې او ځلوريزې پکې شته؛ دغه ديوان په ۱۳۵٦ هـ ق کال پښتو ټولنې په کابل کې چـاپ کړی دی. د قلنـدر ژونـد د ۱۱۵۰ هـ ق تـر حـدودو پـورې يقينـي ښکاري؛ د ده ټول اشعار ډېر ښکلي دي، يوه ښکلې رباعي يې دا ده:

تر زنې تېرې د زلفو ځوکې دي | تـر ګل ختلـې د بـورانـو کې دي
دا قلنـدر دی د ميـرا صفت کا | که په چمن کې د بلبل کوکې دي

خانګل خليل هم د پښتونخوا په سيمو کې اوسېدلی شاعر دی چې ژونـد يـې تر ۱۱۵۰ هـ ق کال پورې يقيني ښکاري. د خانګل خليـل ديـوان ورك دی؛ خـو څـه شعرونه يې په يوه ځانګړې مجموعه کې چې (د خانګل خليل ځو شعرونه) نومې په ۱۳٦۰ هـ ش کال په کابل کې پښتو ټولنې چاپ کړي دي.

دی د هندي سبك پيرو شاعر دی، په شعر کې يې مضمون آفريني او د هنـدي سبك ښکلاوې ليدل کېږي، دا يې يوه ښکلې رباعي:

بلبـل هـر چاتـه دا خبـرو نه کـا | وخت د بهار شو غوټۍ ګلونه کا

پسرلی د هغو چې یار تر څنګ لري    هېواد ببل شوی لا ارمانونه کا

صمد د دولسمې پېړۍ بل شاعر دی، چې د هندي سبك په پیروانو کې ولاړ سړی دی. دیوان یې تر اوسه نه دی موندل شوی، خطي متفرق اشعار یې تر لاسه شوي دي. د ده د غزلو یوه برخه په ګلزار روه نومي مجموعه کې چاپ شوې ده.

کامګار خان خټك د نامدار خان زوی د اشرف خان هجري لمسی د دیوان خاوند شاعر دی. په پښتو او پارسي ژبو یې اشعار ویلي دي. د شعر یو ښکلی دیوان لري او د هندي سبك پیرو شاعر دی. دیوان یې په پېښور او کابل کې چاپ شوی دی. کامګار په ۱۱٦۵ هـ ق کال مړ دی؛ دیوې ښکلې غزلې دوه بیته یې دا دي:

دلربا چې مشکین خال په جبین کښېښو    په خاطر یې زما داغ آتشین کښېښو

چې په زړه مې ستا دمینې آتش بل شه    کناره مې له زړه صبر تسکین کښېښو

دوست محمد هم د دوولسمې پېړۍ شاعر دی؛ په غالب ګمان د پښتونخوا په سیمو کې تېر شوی دی. متفرق پښتو شعرونه یې په ځینو خطي جونګونو کې شته. د ورکې خزانې په دوهم ټوك کې یې هم ځینې غزلې چاپ شوې دي.

چې نږدې مې کړو سینې ته حبیب ورو ورو
پـه خاطر مې غیشی لك کړو مصیب ورو ورو
نه پوهېږم چې وصال د یار زحمـــت دی
خبر نـــه یم چې قریب کړم نصیب ورو ورو

دا لوړ دوه بیته د دوست محمد له یوې غزلې څخه اخیستل شوې دي او د هندي سبك اثرات یې پر کلام ښکاره دي.

فضیل د دې دوران بل شاعر دی، چې ښایي د دولسمې پېړۍ په حدودو کې به یې د پښتونخوا په سیمو کې ژوند کړی وي. د ده پر کلام هم د هندي سبك اغېزې ښکاري: د غزل نمونه یې په کلید افغاني کې چاپ شوې ده، دا یې هم د یوې غزلې دوه بیته:

مینـــې ستا رابانـــدې وکـــړ اثـــر ورو ورو
چې یې وایستم له خواب او لـه خور ورو ورو
دم پـــه دم مې ستا د عشـق جنون زیاتېږي
لېونـــی دیـــوانه اوس شـــوم او تر ورو ورو

علي خان مامنزی د پښتو یو رنګین بیان شاعر تېر شوی دی؛ علي خان د دیوان خاوند او د هندي سبك په پیرو شاعرانو کې ولاړ سړی دی. ده د هشنغر په سیمو کې ژوند کړی دی؛ د ده مزار د هشنغر د چارسدې د پړانګو په هدیره کې پیدا شوی دی. پر دې مزار چې کومه لوحه پیدا شوې ده، د هغې لوحې له مخې علي خان به ۱۱۵۰ هـ ق کال کې زوکړی او په ۱۱۹۵ هـ ق کال مړ دی. د ده دیوان درې خله به

پېښور او لاهور کې چاپ شوی دی. دا یې هم د یوې ښکلې غزلې څو بیته:

اې د زړه سلطانه تــه د زړه سلطان د چا یې
ستا رنځوران ډېر دي یاره ته درمــان د چـا یې؟
اور د اننګو دې څوک پاخه کړه څوک دې وسوه
اې په مخ آتشه سود د چا، نقصان د چـا یــې؟

حمدالله کاکاخېل، چې د ښاغلي محقق رفیع په وینا یې د دوولسمې پېړۍ په دوهمه نیمایي کې ژوند کړی دی او د اوسېدو ځای یې د زیارت کاکا صاحب سیمه ښکاري، د دیوان خاوند شاعر دی. دیوان یې نه دی چاپ شوی؛ یوه خطي نسخه یې د پېښور د پښتو اکېډیمۍ په خطي مجموعه کې موجوده ده. د ده په دیوان کې د علي خان د غزلو په زمکه ویلې شوې غزلې ډېرې پیدا کېږي او د هندي سبک په پیرو شاعرانو کې یې درولای شو، د یوې غزلې یو بیت یې دا دی:

زما د له دیوانه په غم د چا شوې له ولسه بیګانه په فم د چا شوې

سلیم شاعر هم د دوولسمې پېړۍ شاوخوا په پښتونخوا کې ژوند کړی دی. دده ځینې شعرونه د هندي سبک د پیرو دیوان لرونکي شاعر محمد بیاض ګدا نه په دیوان کې خوندي دي. غزل یې شور او مستي لري، د یوې قطعې مقطع یې دا ده:

څکه خوب د بې غمۍ نه کــړې سلیمــه
چې له سترګو دې روان په مخ جیحون دی

شمشېر د دوولسمې پېړۍ د اواخرو شاعر دی، چې د پښتونخوا په سیمو کې به یې ژوند کړی وي. د ده غزلې په ورکه خزانه کې چاپ دي. د پښتو غزل مؤلف دا شاعر د حمید د سبک په پیروانو کې درولی دی، دا یې د یوې غزلې یو بیت:

بیا مې ګډ د زړه په ښهر هاې و هوی شه چې مدام یې ستا له خیاله ګفتګوی شه

میا خان هم له هغه نوموړکو شاعرانو څخه دی چې لږ اشعار یې تراوسه تر لاسه شوي دي. د ده د شعر نمونې په ورکه خزانه کې چاپ شوې دي. د پښتو غزل مؤلف د حمید د سبک پیرو بللی دی، دا یې یو بیت:

اې عالمه چې زما په خاطر اوري نه یې شیخ ویني په خواب ملا په توري

د پښتنو ستر روحاني شخصیت او د پښتـو او عربـي ژبـو لیکـوال او شاعر میا محمدی صاحبزاده د څمکنو، د هندي سبک دیوان لرونکی شاعر دی. د ده دیـوان د ښاغلي قلندر مومند په زیار په پېښور کې چاپ شوی دی.

محمدی صاحبزاده د ډېر مشهور او لوی روحاني د څمکنو د میا عمر زوی دی. دی په پښتو یو ښکلی دیوان او د المستغاث په نامه منظوم پښتو کتاب لري. د برهان الاصول او مقاصد الفقه په نامه عربي دوه کتابونه یې هم لیدل شوي دي.

میا محمدی صاحب زاده سربېره پر دې چې د پښتو ډېر ښه شاعر و. یو بل غټ

فرهنگی کار یې دا کړی دی، چې د پښتو د ډېرو شاعرانو دیوانونه یې په خپل فرمایش پر ډېرو ښو خطاطانو خطاطي کړي دي او د پښتو یوه غټه ادبي ذخیره یې په دې توګه خوندي کړې ده. محمدي صاحبزاده په ۱۲۲۰هـ ق کال مړ شوی دی.

د ده یوه ښکلې رباعي داده:

بېلتــــون جــدا کــړم له کل هوسه    غم زړه له راغی اوس یــو په لسه
د محمدی ساده وروستی په شونډو    پــه دا ضــرور کــې یــاره رارسه

بېدل هشنغری د حمید بل پیرو شاعر دی، چې د شعر دیوان یې په ۱۹۵۸ع کال په پېښور کې چاپ شوی دی. د تیمور شاه درانی (۱۱۸۶ ـ ۱۲۰۷هـ ق) په زمانه کې یې د شاعرۍ هنګامه توده وه. دی د حمید د سبک په پیروانو کې ولاړ شاعر دی. د حمید د مشهور ترکیب بند (نن به شپه زما د یار په کوم مکان وي) پیروي یې ډېره ښه کړې ده. د بیدل د دې پارکي یو بند دا دی:

نن به شپه زما د جــان په کوم منزل وي    جلوه ګر به پــه کوم خای په کوم برجل وي
خبــر نه یــم ورسره به ســاد که غل وي    همراهــان بــه یې شیرین او که حنظل وي
د رقیب غماز پدول به پرې بـــل بل وي    په سپین مخ به یې د غم اوښي ول ول وي
په بې قدرو کې به ناست له شرمه غل وي    لکه څوك په کفرستــان کــې یرغمــل وي
چې مې زړه له دې ماتمه کبــاب نــه دی    له ټولــي د عاشقانــو حســاب نــه دی

خوږدل د پښتو یو بل خوږ ژبی شاعر دی، چې څو متفرقې غزلې یې په واك کې دي. وايې چې پښتو دیوان هم لري، خطي نسخه یې په پښتو اکاډمۍ کې شته. د ده د غزلو سوز دی د هندي سبك شاعرانو په قطار کې دروي. دی د څمکنو د میا عمر (رح) مرید اود دوولسمې پېړۍ د دوهمې نیمایی شاعر بلل شوی دی. د ده څه غزلې د ورکې خزانې په دوهم ټوك کې چاپ دي؛ یو بیت یې دا دی:

ور یې کړ د سوز قلم خوږدل لره په لاس کې
ســرخوشحــال، حمیــد، رحمــان په ګور ولګاوه

خادم شاه کاکاخیل، د میا منیب کاکاخیل زوی و. د دوولسمې پېړۍ په اواخرو او د دیارلسمې په اوایلو کې د نوښار په زیارت کاکاصاحب کې اوسېدلی دی. د پښتو غزل مؤلف دی د حمید د سبك پیرو بللی دی. د ده دیوان نه دی چاپ شوی؛ د دیوان خطي نسخه یې د پېښور د پښتو اکیډیمۍ په کتابخانه کې موجوده ده؛ دایې د یوې غزلې یو بیت:

خکه سور آتش د عاشقی په خادم بل و    سرې لمبې سکروټې چې یې اوري له دیوانه

د پښتونخوا په سیمو کې د هندي سبك پیرو شاعران همدا وو، چې لوړ وښوول شول. دا کسان کابو ټول د هندي سبك په معتدلو پیروانو کې ولاړ خلك دي. دوی د هندې سبك اساسات منلي دي او په خپلو اشعارو کې یې د هغو پیروي کړې ده.

مګر نه په ډېر پرمختللي شکل، بلکه د اعتدال په حد کې.

خو کله چې موږ د پښتو ادبي آثارو مطالعه کوو. نو موږ ته ښکاري چې هندي سبک په پښتو ادب کې د خپلې بشپړتیا پړاوونه هم وهلي دي.

د هندي سبک د بشپړتیا پړاوونه موږ د کاظم خان شیدا خټک په اشعارو کې کورو. ده په خپلو ډېرو ښکلیو او عالي اشعارو کې د دغه سبک ټول اساسات او شرایط ومنل او د دغه سبک ټول خصوصیات یې په پښتو شاعرۍ کې بشپړ کړل.

لوی استاد مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبي ویلي وو: چې که موږ د هندي سبک له پارسي ژبو شاعرانو سره د حمید او شیدا مقایسه وکړو نو حمید باید لکه صائب او کلیم وګڼو او شیدا له بیدل او ناصر علي سرهندي سره غاړه کړو.

د استاد دا خبره ډېره تحقیقي او پرځای ده ځکه صائب او کلیم د هندي سبک معتدل پیروان دي. خو ناصر علي او بیدل داسې کسان دي، چې هندي سبک د دوی په کلام کې خپل اوج ته رسېدلی ؤ.

شیدا د افضل خان خټک زوی، د اشرف خان هجري لمسی او د خوشحال کړوسی دی. د شیدا د زوکړې کال په یقیني ډول نه دی معلوم. د هانري جارج راورټي قول چې زیاترو محققانو منلی دا دی چې شیدا به د ۱۱۳۵ ـ ۱۱۴۰هـ ق کلونو تر منځ زېږېدلی وي.

شیدا د تنکۍ ځوانۍ عمر په خپله سیمه کې تېر کړ، د ۱۱۵۳ ـ ۱۱۶۱هـ ق کلونو تر منځ یې خپله سیمه پرېښې او پردیس شوی دی. ددې پر دیسۍ په لړ کې سرهند ته رسېدلی دی او په سرهند کې یې د نقشبندیه طریقې خوا ته تمایل پیدا کړی دی او د ثاني محمد معصوم مجددي مرید شوی دی.

شیدا بیا له دې ځایه د شمالي هندوستان د روهیلکهنډ سیمو ته تللی دی. رامپور د ده د اوسېدو دایمي ځای ګڼل شوی دی. بانسبریلی او د روهیلکهنډ د افغاني ریاست نورو ښارونو ته به هم تللی وی. شیدا په ۱۱۹۴هـ ق کال په رامپور کې مړ شوی دی او هلته ښخ دی.

شیدا د شعر یو ښکلی دیوان لري، چې په ۱۱۸۱هـ ق کال کې یې تدوین کړی دی، د شیدا دیوان څو ځله په کابل او پېښور کې چاپ شوی دی. د دیوان مقدمه خپله شیدا په نثر لیکلې ده. چې نثر یې هم د پښتو نثر په تاریخ کې ځانګړی نثر دی او مرصع نثر ورته ویلای شو. د ده په دیوان کې عمده برخه غزلې دي. قصاید، مخمس، رباعي، مثنوي، قطعه او نور شعري انواع هم پکې لیدل کېږي.

د ده پر دیوان د تصوف د نقشبندیه طریقې ورانګې هم خورې دي، ځینې مهم اجتماعي، تاریخي، نکات هم ځنې ځرګندېږي؛ څه منظوم حکایات یې هم د دیوان په پای کې شته. اما څه چې د ده دیوان او شعر ته یې خاص ارزښت ورکړی دی.

هغه د ده د شعر ښکلا ده. د ده زياتره اشعار ډېر ښکلي او تول فني او ژبني تناسبونه يې د بيتونو او غزلو تر منځ مراعات کړی دی او شعر يې د خپلو هنري ښکنو له پلوه په پښتو ادب کې ممتاز مقام لرلای شي. دا هم د ده يوه ښکلې رباعي، چې په هند کې يې له خپله وطنه سره د مينې اظهار پکې کړی دی اود خپل وطن مناظر يې ډېر ښکلي ترسيم کړي دي:

| | |
|---|---|
| په زړه مې ګرځي د غرونو څوکې | حملې د بازو د زرکو کوکې |
| ووايـــه څه کـــا د روه نسيمـــه | ګيـرامنکولــې زيبا منښوکې |

له شيدا پرته په هندوستان کې اوسېدليو ځينو نورو پښتنو شاعرانو هم د هندي سبك په پيروۍ شاعري کړې ده. په دغو شاعرانو کې مور د محمد بياض ګدون نوم تر ټولو د مخه اخلو. دا سړی د عبدالحميد مومند پيرو دی؛ په پښتو ترې يو رنګين ديوان پاتې دی چې په پېښور کې چاپ شوی هم دی. د ده د ديوان له مطالعې ښکارې چې دی د ځمکنو د ميا عمر(رح) مريد هم و او په خپل ديوان کې يې د حميد د غزلو او نورو اشعارو په پيروۍ شعرونه ويلي دي. بياض په اصل کې د پښتونخوا د (زيده) نومي کلي اوسېدونکی و بيا پېښور ته راغی او له دې ځايه دکن ته ولاړ او د ژوند تر پايه په دکن کې اوسېدلی دی. د ژوند زمانه يې د دوولسمې پېړۍ اواخر اټکل کېږي.

ده هم، لکه بېدل هشنغري غونډې د حميد مشهور ترکيب بند استقبال کړی دي او د دغه ترکيب بند په پيروۍ يې يو ترکيب جوړ کړی دی، چې يو بند يې دلته رااخلو:

| | |
|---|---|
| نن به شپه زمـــا د يار په کوم مقام وي | لکه مياشت به رانښکاره په کوم يو بـام وي |
| تماشګر به يې ومخ ته خاص و عام وي | خوب خندا له ستومانۍ به پرې حرام وي |
| ولــې نه چـــوي زما زړه له ډېر غمه | چـــې لا بېل ګرځي لـــه خپله همدمـه |

په لاهور کې د اوسېدلي مير عبدالله ديوان (جام محبت) د هندي سبك په پيروي ويل شوی دی. دا سړی‌په خپلو اشعارو کې کله کله د حميد اثرات هم مني. د مير عبدالله په ديوان کې پښتو غزلې او يو پارسي مسدس شته؛ دا ديوان تر اوسه نه دی چاپ. يوه خطي نسخه يې د پېښور د پښتو اکيډمۍ په خطي کتابونو کې شته.

ميرعبدالله په اصل کې د کندهـار د جيسـول د کلي اوسېدونکی و. تذکره ليکونکو د ده زوکړه په ۱۱۳۰هـ ق کال په همدې کلي کې ليکلې ده. دی د علومو تحصيل په لړ کې لاهور ته تللی دی. شپاړس کاله يې هلته درس ويلی دی؛ له درسونو تر فراغت وروسته د لاهور په کرشن نګر کې ميشت شوی دی. د ده د ديوان کابوتو له برخه په لاهور کې بشپړه شوې ده. د تذکره نګارانو قول دی چې په وروسته کې بيا دی بېرته جيسول ته راغی او په خپل پلرني کلي کې په ۱۱۹۷هـ ق

کال وفات شو. دا دوه بیته یې د لوړې شعري قریحې نماینده ګې کولای شي:

دا زما د زړه قطره د سیخ په سر شوه | که په دار باندې له سوخته منصور خېژي
رود د وینو مې د زړه په جوش خروش دی | که مستي لره شراب د انګور خېژي

امام خان ترین بل هندوستانی پښتون شاعر دی، چې د هندي سبک تر اغېزو لاندې ویلې یوه پښتو غزله یې په ګلزار روه کې چاپ شوې ده او دا هم د دې غزلې مطلع:

مین یار مې مهربان نه شه هرګز | ناټهاد بخت مې په فرمان نه شه هرګز

نور محمد نوري افغان فاضل او عالم لیکوال او شاعر تېر شوی دی. د ژوند زمانه یې په دیارلسمې هجري پېړۍ کې واقع ده. دی مورخ، ګرامرست او ورسره د پښتو او پارسي ژبو شاعر او نثرلیکونکی و. ده د پښتو ژبې ګرامر (د تحفة الامیر یاغنچه روه) په نامه په پارسي ژبه کښلی دی. ګلشن امارت یې بل تاریخي اثر دی، چې د افغانستان د تاریخ ځینې څنګونه پکې روښانه شوي دي. له دې سربېره دی خطاط هم و؛ د پښتو ډېرې خطي نسخې د ده په خط دي.

د ده له لوړو یادو شویو فرهنګي کارونو که تېر شو نو په ادبي تاریخ کې مطالعه کېدونکي آثار هم لري. ده په پښتو ژبه د هندي سبک تر اغېزو لاندې خوږه شاعري کړې ده. د حمید او شیدا په پیروۍ یې ښکلې غزلې ویلې دي. په (غنچهٔ روه) کې یې ځینې مثنوي بیتونه هم شته. ده په پښتو ډېر ښکلي حکایتي نثرونه هم لیکلي دي. چې د پښتو د هنري نثرونو په پیلامه کې یې مطالعه ضروري ایسي. دا خبره باید وکړو چې نور محمد نوري په اصل کې د کندهار و. د استاد حبیبي په قول کاکړ او د دوکتور میکنزي مستشرق په قول په ختهٔ هوتك و. ده د خپل ژوند زیاته برخه په سند کې تېره کړې ده. کله کله په پنجاب کې هم اوسېدلی دی، د سند د شاعرانو په تذکرو کې د ده نوم راغلی دی.

دا هم د نوري د یوې غزلې دوه بیته:

تورې زلفې یې په مخ شوې خم په خم | که د زنګ لښکر چاپېر شه په حرم
هر زمان مې نوی نوی سرواهه شي | چې تحریر کړم را زد تا ښکلی صنم

## د کندهار ادبستان او هندي سبک:

د اوسني افغانستان په سیمو کې د پښتو د ادبي حلقو تر منځ هم د هندي سبک پیروي په دوولسمه پېړۍ کې باب شوې ده. د سید غلام احمد یا غلام جان پاچا د دیوان له مطالعې ښکاري چې د پاچا شاعري د هندي سبک کره وره لري.

د ده په دیوان کې عمده برخه د غزلو ده. له غزلو سربېره د ساقي نامې،

سرنامې، حال نامې، قسم نامې او خیال نامې مثنوي ګانې هم شته. د غلام جان پاچا
شاعري رنګینه او عشقي ده. خو کله کله د عرفان او تصوف په لور هم قدمونه ږدي. د
ده شاعري د هنري بافت، سوز او د کلماتو د انتخاب او نورو خصوصیاتو له پلوه د
هندي سبک شاعرۍ ځانګړنې رانغاړي، د ده دیوان نه دی چاپ شوی؛ یوه نسخه
یې د افغانستان په ملي آرشیف کې خوندي ده.

غلام جان پاچا د سید فقیر زوی او د سید نظیف لمسی و. د زیږېدو نېټه یې
۱۱۱۶ هـ ش ښوول شوې ده. د شرقي افغانستان د لغمان او کونړ په سیمو کې یې
ژوند کړی دی. د ده دیوان په لاندې بیتونو شروع کیږي:

الهي راته ستا اور د محبت را — ته په دغه اور سره خپل معرفت را
په شکست زه د مجاز په مینه زمول شوم — دې شکست ته ځان حدید دحقیقت را

د افغانستان په نورو برخو کې ماته سملاسي له غلام جان پاچا پرته د هندي
سبک یل پیرو نه دی معلوم او کندهار یوازینی مرکز دی، چې دغه سبک پکې ان د
څوارلسمې پېړۍ تر اواخرو پالل شوی دی.

د کندهار ادبستان د دې سبک د پاللو یوازینۍ مدرسه وه او په کندهار کې یې
د دغه سبک په خپرېدو کې ستره برخه ودرلوده.

د کندهار ادبستان د دیارلسمې هجري پېړۍ په دوهمه نیمایي کې جوړ شوی
و. دغه وخت سره له دې چې کندهار او دافغانستان نورې سیمې دسردارانو
داختلافاتو په وجه ناآرامې وې، خو په کندهار کې د فرهنګي فعالیتونو هڅه هم
موجوده وه او سردار مهردل خان مشرقي او دهغه وخت نورو شاعرانو غونډې سره
درلودې: ادبي مجالس یې دایرول او دکندهار ادبستان یې تاءسیس کړی و.

د دغه ادبي انجمن ځای د سردار مهردل خان مشرقي کور و او له دغه ادبي
انجمن سره مربوط کسان میرزاحنان بارکزی، صدیق اخونزاده هوتک او نور وو...

د دغو کسانو شاعري زیاتره د هندي سبک تابع شاعري ده او دغه سبک دوی
ډېر ښه پاللی دی.

د دې انجمن له غړو څخه سردار مهر دل خان مشرقي د سردار پاینده محمد
خان زوی و. د ۱۲۱۲ هـ ق کال د محرم په میاشت کې زیږېدلی دی او په ۱۲۷۱ هـ
ق کال په کندهار کې مړ او د حضرت جي بابا له مزاره سره نږدې ښخ دی.

سردار مهردل خان مشرقي خپله ادیب او ادب دوست سړی و؛ په پښتو او پارسي
ژبویې اشعار ویلي دي؛ د یوې پښتو غزلې دوه بیته یې دا دي:

ستا بې مخه راته شپې ورځې دي سپینې — پلو واخله له سپوږمۍ مخه مېرمنې
درته ناست یم په دربار پرې مې دي سپینې — ستا له وره تللای نسوای هورې دوري

دکندهار د ادبستان له ډېرو نومیالیو غړو څخه د هندي سبک پیرو میرزاحنان

بارکزی د دیوان خاوند شاعر یاد شوی دی، چې دیوان یې غزلې، مخمس، مثنوي، قطعه او رباعي لري. په دیوان کې یې یوه فالنامه هم شته او د شهزاده سلیم جواهري قصه یې هم په ځانګړي ډول په پښتونظم کړې ده.

د میرزاحنان دیوان په کابل، کراچۍ او کوټه کې چاپ شوی دی. دی په کندهار کې د حمید او په مجموع کې د هندي سبك له هغو پیروانو څخه دی چې وینا یې خوند او رنګ دواړه لري او میرزاحنان بارکزی په دیارلسمه پېړۍ کې د پښتو له ښو شاعرانو څخه شمارل کېږي.

میرزاحنان د محمد حسن زوی و.د زوکړې کال یې ۱۲۱۰ هـ ق شاوخوا ګڼل کېږي او ژوند یې تر ۱۲۹۲ هـ ق کال پورې یقیني دی. میرزا حنان بارکزی ځېل ځان د حمید خوشه چین بولي او وایي:

د حمید د خوش نظمۍ په زراعت کې     دا حنان یې دی د شعر خوشه چین

داهم د میرزا حنان بارکزي یوه سوزناکه رباعي:

فلك ناپسندې چارې راوکـــړې     خاورې ایرې یې زما په خوله کړې
ساقي بې رحم، یار بې پروا دی     پیالې د وصل یې ماته رانه کړې

دکندهار د ادبستان او دسردار مهردل خان مشرقي د ادبي بزم بل ملګری صدیق اخونزاده هوتك دی، چې د ۱۲۵۰هـ ق شاوخوا د کندهار په ښارکې اوسېده او معزز سړی و. د سردار مهر دل په دربار کې په عزت ورته کتل کېدل.

صدیق اخونزاده د پښتو د ولسي شاعرۍ پر اوزانو برابرې ځینې بدلې وېلې دي مګر دی غزلې هم لري، چې غزلې یې د ځپلو خصوصیاتو له پلوه د هندي سبك اثرات مني؛ دا یې هم یو بیت:

پر دکان به د حمیدصراف کوټه سي     ابداري صدیق د سرو ورکوي جس ته

سردار غلام محمد خان طرزي (۱۲۴۵ ـ ۱۳۱۸ هـ ق) او ملا محمد اکرم هوتك د هندي سبك دوه نور پیرو شاعران دي، چې دوی دواړه د کندهار له سیمې سره اړه لري.

د سردار طرزي او ملا محمد اکبر پښتو دیوانونه نه دي لیدل شوي. مګر متفرق پښتو آثار یې شته.

زموږ ادبپوهانو لکه استاد عبدالحی حبیبي چې لیکلي دي، ملا حسن دتلوکان د قلندر پیرو دی او ملاصالح داوی بیاد ملاحسن.

څنګه چې قلندر موږ د هندي سبك په پیروانو کې مطالعه کړ، نو لازمه ایسي چې دا دوه تنه شاعران هم دهندي سبك تابع شاعرانو په ډله کې حساب کړو.

ملا حسن ساکزی دکندهار د تلوکان اوسېدونکی و. زاهد، عالم او بزرګوار سړی و.د زېږېدو نېټه یې ۱۱۷۷ هـ ق کال دی اوپه ۱۲۴۵ هـ ق کال مړ شوی دی او په

خپل کلي کې ښخ دی. ملاحسن د پښتو او پارسي ژبو شاعرو؛ د دواړو ژبو دیوانونه یې شته. پښتو اشعار یې خاص سوز او ساز لري. د قلندر تر اغېز لاندې ویلې یوه ښکلې رباعي یې دا ده:

د سهار باده خوشبو نسیمه احوال مې یوسه دیار تر سیمه
ورته مې عرض که دخدای دپاره په صورت ایرې سوم په زړه دوه نیمه

ملا صالح محمد داوی د ملا حسن دتلوکان معاصر او له ده څخه یې فیض موندلی و. د ده اشعار هم خاص سوز او ګداز لري او ادبپوهانو دملاحسن پیرو بللی دی؛ دا یې یو بیت:

کشکې زه نن د دلبر تر روضه جار سوای دغه پسه یې بیا خاورې د دربار سوای

له دغو کسانو سربېره دکندهار په سیمو کې د غو لاندې نورو شاعرانو هم دهندي سبک په پیروۍ ویناوې کړې دي:

اسلم لوڼ د دیوان خاوند شاعر دی؛ په اشعارو کې یې نازکخیالي او د مینې سوز و ګداز لیدل کېږي؛ د عبدالحمید مومند اثرات یې هم منلي دي. محمداسلم لوڼ د دین محمد زوی د عبدالکریم لمسی په ۱۲۵۴ هـ ق کال په کندهار کې مړ دی او په خپله پلرنۍ هدیره کې ښخ دی.

ده په پښتو اوپارسي ژبو خوږه شاعري کړې ده؛ په دواړو ژبو کې د اشعارو دیوانونه لري، پښتو دیوان یې نه دی چاپ شوی، یوه خطي نسخه یې د پښتو ټولنې په کتابخانه کې شته. د اسلم په دیوان کې ۸۳۷ اوږدبیتیزي غزلې او نور شعري انواع، لکه ترکیب بند، ترجیع بند، مخمس او مربع لیدل کېږي.

د ده د یوې غزلې دوه بیته:

مخ وشوندې دې پیاله پر له شراب
که لاله ده په دسته کې د ګلاب
چې په شپه له خلکو پټ شي معلومېږي
تور والی دې په حسن دی آفتاب

عبید الله هوتك دیوان لرونکی د هندي سبك پیرو شاعر دی، د دیارلسمې پېړۍ د دوهمې نیمایي کلونه یې د ادبي فعالیت له دوران سره برابر دي. د ده خطي دیوان شته؛ غزلې یې د هندي سبك د شاعرۍ خصوصیات لري؛ دحمید په پیروي یې هم شاعري کړې ده. دی د امیر دوست محمدخان په زمانه کې په کندهار کې اوسېده.

عبدالله پوپلزی دکندهار دښار په بلده کې اوسېده. د زېږېدو کال یې ۱۲۶۰ هـ ق او د مړینې هغې یې ۱۳۳۳ هـ ق کال دی. دی د پښتو او پارسي ژبوشاعر و. د دواړو ژبو دیوانونه یې پاتې دي؛ د پښتو دیوان یې دافغانستان په ملي آرشیف کې

خوندي دی. دی له دیوانونو سربېره یوه دعبرت نامي مثنوي او بله هم اخلاقي مثنوي لري.

عبدالله پوپلزی دحمید او په مجموع کې دهندي سبک پیرو دی؛ د حمید پر یوې غزلې د ویلي مخمس یو بند یې دا دی:

ستوري بيا دنباله دار سوه د آسمان په دنباله کې
آهو رم له آهو وخور مشك باران سوېه ناله کې
که لمر مخ په نقاب ونغښت له حیاسو په ناله کې
خط په مخ دصنم راغی که سپوږمی شوه په هاله کې
دا یې غاښ په خوله کې زېب کا که ژاله سوه په لاله کې

د حمید سبك په کندهار کې د معاصرانو تر دورې پورې مقبول و او ډېرو معاصرانو شاعرانو د ده دسبك پیروي کوله او د حمید په غزلو یې مخمسونه لیکلي. ملا رحمت الله ملا قلندر او مولوي عبدالغفار بریالی موږ په معاصره دوره کې د هندي سبك پیروان بللای شو.

د دغه ادبي جریان ځانګړنې: پر پښتو ادبیاتو دهندي سبك اثرات د دوولسمې هجري پېړۍ له اوایلو پیل شوي او د څورلسمې هجري پېړۍ تر پایه یې حتی په معاصره ادبي دوره کې هم دوام موندلی دی.

په پښتو ادبیاتو کې ددې سبك موسس عبدالحمید مومند او بشپړوونکی یې کاظم خان شیدا دی. دوی دواړه ددې سبك په مشرانو کې حسابېږي او کله چې په پښتو ادبیاتو کې موږ د هندي سبك تابع ادبیات مطالعه کوو، نو د عطف او توجه ټکي پکې همدا دوه تنه دي. نورو شاعرانو چې په دې سبك وینا کړې ده، زیاتره د عبدالحمید مومند د سبك پیروان دي یو نیم شاید د شیدا پیروي هم کړې وي. دا ټول شاعران بیا موږ د هندي سبك په تابع او پیرو شاعرانو کې حسابولای او درولای شو.

دلته باید دا خبره هم هېره نه کړو، چې په پښتو کې دهندي سبك ټول پیرو شاعران د حمید او شیدا پیروان نه دي؛ ځینې داسې شاعران هم لرو چې پرته د حمید اوشیدا له مطالعې دهندي سبك پیرو وو. دنورو ژبوادبیات یې لوستي او په خپله پښتو شاعري کې یې د دغه سبك اساسات مراعات کړي دي.

د هندي سبك عمومي خصوصیات موږ د دې څېرکي په پیل کې ولوستل او دا راته ښکاره شوه چې د دغه سبك شاعرۍ غوښتنې کومې دي. اوس به وګورو چې په پښتو کې دهندي سبك شاعري څه خصوصیات لري:

(۱) د دې سبك پیرو شاعران غزل ویونکي شاعران دي. ځینو پکې ډېر ښکلي په هنري ګانه سمبال مثنویات هم ویلي دي، لکه عبدالحمید مومند، شیدا، غلام جان

پاچا، مرزا حنان بارکزی او خینې نور...

خینو یکې مخمسونه، مسدسونه، ترکیب بند، ترجیع بند، قطعه،رباعي او نورو شعري انواعو ته هم توجه کړې ده چې په رباعیاتو کې یې د شیدا او قلندر رباعیات او د قلندر ټوټې د زیاتې منني او یادونې ور دي. ځکه کوم سوز او ساز چې په دغو رباعیاتو اوقطو کې نغښتي، هغو ته یې د لوړو ادبي آثارو ارزښت ورپه برخه کړی دی.

(۲) د دې اشعارو موضوع زیاتره دمینې او عشق بیان ته وقف شوی ده. اما د دې تر څنګه اخلاقي وېناوې، خینې اجتماعي ټکي، تاریخي رویدادونه د سیاسي، علمي، فرهنګي او روحاني شخصیتونو مړینې او د مړینو تاریخي قطعې هم یکې لیدل کېږي. د دې ډلې د خینو شاعرانو پر کلام د عرفاني طریقوتاثیرات هم وینو، لکه د شیدا، غلام جان پاچا، میرزا حنان او نورو پر آثارو.

(۳) حکایتي موضوعي ژانر هم په دې جریان کې متبارز ښکاري. دحمید د نیرنګ عشق او شاه وګدا داستاني آثار، د میرزا حنان د شهزاده سلیم جواهري قصه او د شیدا خینې حکایتي مثنویات په دې جریان کې ایجاد شوي او یا ترجمه شوي داستاني او حکایتي آثار دي.

(٤) د ساقي نامې نمونه د پښتو ادبیاتو په لومړی دوره کې مونږ د زرغون خان نور زی په آثارو کې وکتله.

تر دې پخې او په تول تللې ساقي نامې وروسته په پښتو ادبیاتو کې د هندي سبك په پیروی وېل شویو آثارو کې ځان ښکاروي. د حمید مومند په مثنویاتو کې موږ خینې دغسې اشعار پیدا کوو چې د ساقي نامې تر ردیف لاندې راتلای شي او د غلام جان پاچا په دیوان کې هم د ساقي نامې مثنوي شته.

(۵) ددې سبك دپیرو شاعرانو دآثارو عمده ځانګړنه ددوی دشعر هنري خوا ده. د دې سبك تابع پښتنو شاعرانو زیاترو ښکلي، د هنر او شعري ښکلاوو په کانه پسولل شوي اشعار وېلي دي.د دې سبك د پیرو شاعرانو په دیوانونو او متفرقو آثارو کې شاید ډېر لږ آثار داسې وي چې شعریت دې لږ ولري.

خینې ادبپوهان د دې سبك پر پیروانو باندې څه انتقادونه هم لري، چې د دغو انتقادونو په ارتباط هم باید څو خبرې وکړو:

الف، خینې کسان وایي چې دوی د عشق د بیان او د محبوب د زلفو، رخسار او سرو شونډو د ستاینو په پېچ وخم کې دومره غرق شوي دي، چې د ژوند موضوعاتو ته یې کوږت توجه نه ده کړې. د دغسې استادانو د لوړو انتقادونو په ځواب کې باید ووېل شي چې اول خو د هندي سبك د پیرو پښتنو شاعرانو په اثارو کې د دوی په اصطلاح ژوند ته د مربوطو موضوعاتو بیان ته هم پاملرنه شوې ده یو مخ دوی د عشق موضوعات نه دي بیان کړي، خو په دې ځای کې د توجه ور خبره دا ده، چې

د دې سبك هغو شاعرانو چې يو نيم ځاى د دغسې نقادانو په اصطلاح د ژوند موضوعات راوړي، په همدغو مواردو کې د دوى د شعر د شعريت معيار ټيټ شوى او ښکلاپې له لاسه ورکړې ده. دوى د ښکلي شعر د بيان له پاره د عشق او مينې، مى و معشوق بيانونه ورانديې کړي دي. همدغو موضوعاتو د دوى اشعارو ته ابدي ژوند وربښلى دى. دا اشعار که په هره دوره کې او هر وخت کې ولوستل شي ښکلي دي او د يوه شعر خوښوونکي ادبي تنده ماتولاى شي.

ب، ځينې کسان پر شيدا او د دې سبك پر ځينو نورو پيروانو دا انتقاد کوي، چې دوى د نورو ژبو کلمات په پښتو شعر کې زيات استعمال کړي دي. دغسې کسانوته بايد په احترام عرض شي چې شيدا يو ښکلا خوښوونکى هنرمند دى. ده د خپل شعر او نثر د ښکلي اډانى د جوړولو لپاره ډېر ښکلي الفاظ مرلي دي.دا الفاظ که د هرې ژبې وو، ده اخيستي دي او خپل شعر يې پرې ښکلى کړى دى. دهندي سبك د پيرو شاعرانو په ښکلو اشعارو کې د نورو ژبو لغات او کلمات هم بد نه ايسي، بلکه ښکلاوربښي.

(٦) په دې جريان کې له شيدا او نوري پرته د نورو شاعرانو نثري آثار نه دي ليدل شوي. د شيدا نثر هم دهندي سبك تابع نثرونو خصوصيات لري.مګر دنوري نثر ډېر روان او خوږ نثر دى.

(٧) په دغه جريان کې واقع پښتانه شاعران زياتره د پارسي ژبو شاعرانو، لکه: طالب آملي، کليم کاشانى، مولاناغنيمت کنجاهى، صايب تبريزي، قاسم، غني کشميرى، ناصر علي سرهندي، بېدل، فيضي د کنى او نورو له کلام سره آشنا دي. دپارسي اوپښتو ادبياتو روابط دغه وخت په يوه لوړه سطح کې موجود شوي وو؛ له پارسي نه دپښتوآثارو د ترجمې جريان هم په ښه موقف کې واقع و.

(٨) د دې جريان پيرو شاعران سره له دې چې دهندي سبك پيروان وو. د دې سبك پارسي آثار يې لوستل. د دې تر څنګه يې په پښتو ادب کې هم مطالعه درلوده؛ د هندي سبك دپيرو پښتنو شاعرانو له آثارو سربېره د نورو پښتنو شاعرانو، لکه: خوشحال بابا، رحمان بابا، عبدالقادر او نورو آثار يې هم لوستل. نوځکه د دې جريان ويلې دي؛ مګر په عام ډول يې شاعري د هندي سبك تابع ده.

ښوونکي دې شاګردانو ته د هندي سبك د خصوصياتو ځانګړې تشريح وکړي.

شاګردان دې په ځانګړيو مقالو کې دا وښيي چې حميد او شيدا څومره او په کومه اندازه له هندي سبکه متأثر دي.

((۸))

# په هند کې د پښتو ادبياتو د ايجاد او ودې نوې څپه

که چېرې موږ د فرهنګي حوزو او جغرافي سيمو له مخې پښتو ادبيات مطالعه کړو،نو هندوستان پکې يوه داسې سيمه ده، چې له څلورمې هجري پېړۍ نه تر اوسه پکې پښتو ادبياتو د ايجاد او پښتو آثارو د تاءليف زمينې درلودې او اوس هم پکې دغسې زمينې شته او پښتو ادبيات پکې په سيستماتيك ډول موجود شوي اووده يې موندلې ده.

موږ د پښتوادبياتو دتاريخ په لومړي دوره او په دوهمه دوره کې ځاى ځاى په دې سيمې کې پر اوسېدلو شاعرانو او د دوی پر آثارو خبرې کړې دي.

په دې بحث کې به د هند په سيمو کې دپښتو ادبياتو د ايجاد پر يو ځانګړي جريان خبرې وکړو. دا جريان د شمالي هندوستان په روهيلکهنډ کې د پښتنو د يوه رياست له جوړېدو او بيا په همدې رياست کې دپښتو شعرو ادب اوپښتني فرهنګ د پاللو له موضوعاتو سره اړه پيدا کوي.

هسې خو د افغانانو دتاريخ هر لوستونکي ته دا خبره څرګنده ده، چې افغانانو دهند په زمکو کې د پاچهيو مستقلې سلسلې جوړې کړې دي، مګر د دوولسمې هجري پېړۍ په جريان کې دهند په ډېرو سيمو کې افغانانو سيمه ييز محلي رياستونه جوړ کړل، چې له دغو رياستو څخه ځينو ان د هند تر آزادۍ (۱۹۴۷ع کال) پورې هم دوام ومونډ.

د هند په سيمو کې له افغاني رياستونو څخه يو رياست د روهيلکهنډ د سيمو افغاني رياست و. دروهيلکهنډ سيمه په شمالي هندوستان کې د ګنګا د سيند پر شرقي غاړه واقع ده. ډېر ښارونه يې درلودل؛ په دې سيمه کې دروهيله وو (دروه د اوسېدونکو يا افغانانو) د ميشتيدو او د دوی د حکومت د ټينګښت له امله، دا سيمه د روهيلکهنډ په نامه ياده شوې ده.

د روهيلکهنډ د افغاني رياست تاداو د دوولسمې هجري پېړۍ په دوهمه نيمايي

کې داود خان برېڅي ابنې و. کله چې دی په يوه محلي جګړه کې ووژل شو،نو د داود خان برېڅي مشرانو ملکرو د ده زوی نيو (متبني) علي محمد خان خپل مشر وټاکه.

دغه علي محمد خان د اوو اتو کالو ماشوم و، چې د شمالي هند د بانکولي په سيمه کې د داود خان برېڅي لاس ته ورغی او ده خپل زوی ومانه او په مينه يې دی وروزه. د سپاهي ګری فنون يې ورزده کړل، ليك لوست يې وروښود او د خپل اولاد په څېر يې د ده پالنه وکړه، تر مړينې وروسته يې سرداري هم علي محمد خان ته پاتې شوه.

د علي محمد خان د زوکړې کال د (انتخاب يادګار) په حواله ۱۱۱۸هـ ق منل شوی دی. دغه علي محمد په کوچنيوالي کې له خپلې کورنۍ جلا او سرنوشت يې له يو مهربان او ورسره بهادر افغان سره وتړل شو؛ له افغانانو سره دغه نسبت دی د روهيلکهنډ نوابۍ ته ورساوه.

کله چې په ۱۱۳۹هـ ق کال داود خان برېڅی ووژل شو او علي محمد خان د روهيلکهنډ د افغانانو مشر شو، نو د خپل لياقت او کاردانۍ له امله يې د روهيلکهنډ ښارونه يو په بل پسې ونيول او د روهيلکهنډ هغه افغاني رياست يې جوړ او ټينګ کړ، چې داود خان برېڅي يې اساس اېښی و.

د نواب علي محمد خان نوابي د ډيلي باچهانو هم منلې وه، خو يو وخت داسې هم راغی چې په سيمه کې د ځينو نوابانو او راجګانو د سازشونو له امله د ده او د ډيلي د دربار روابط خړ پړ شول. د ده پر رياست يې شاهي لښکرې وخبږولې او دی يې له روهيلکهنډه وايسته او د سرهند صوبه دار يې مقرر کړ او د ده دوه مشران زامن عبدالله خان او فيض الله خان يې د يرغمل په توګه د هند وزير ممالك ته وسپارل.

کله چې په ۱۱۶۱ هـ ق کال لوی احمد شاه بابا سرهند ته متوجه شو؛ نو د ډيلي دربار له دې وېرې چې د افغانيت د رشتې پر اساس به نواب علي محمد خان سرهند احمد شاه بابا ته تسليم کړي، نو يې دی بېرته راوغوښت او د روهيلکهنډ د زمکو سند يې بېرته ده ته وسپاره. دی هم ژر په يوه هفته کې دوباره روهيلکهنډ ته راغی او خپلې زمکې او سيمې يې بېرته لاندې کړې او خپله نوابي يې پيل کړه. يو کال لا تېر نه و، چې د استسقا ناروغي ورپېښه شوه او د ۱۱۶۲هـ ق کال د شوال په دربيمه په آنوله کې وفات شو او همالته خاورو ته وسپارل شو؛ پر قبر يې ګومبته حافظ الملك نواب حافظ رحمت خان برېڅي ورجوړه کړه.

د نواب علي محمد خان تر مړينې وروسته يې دريم زوی سعدالله خان نواب شو، مګر د نوابۍ او رياست چارې نورو روهيله مشرانو په سر کې حافظ الملك نواب حافظ رحمت خان سرته رسولې. نواب علي محمد خان سربېره پر دې چې د روهيلکهنډ په سيمه کې د افغاني رياست په ټينګښت او په دې سيمه کې د افغانانو د

ميشتوالو او پاللو لپاره کارونه کړي دي، د دې ترڅنګ دی خپله فرهنګي شخصيت او فرهنګ دوست سړی هم و.

د ده پر مړينه په روهيلکهنډ کې ميشتو ډېرو شاعرانو په پښتو او پارسي ژبو مرثيې وويلې او د ده مرګ يې د افغانانو او هنديانو لپاره د شيرشاه سوري له مرګ سره برابر وباله.

نواب علي محمد خان بريځی خپله هم د پښتو ژبې شاعر و، د روهيلکهنډ پښتنو شاعرانو د شعرونو په يوه خطي جونګ کې د ده يو اوږد پښتو نظم هم خوندي دی. دا نظم سره له دې چې واقعاتي رنګ لري او نواب علي محمد خان د خپل ژوند ځينې واقعات پکې راوړي دي، خو کشش او د جذب قوت پکې شته. د پښتنوالي جذبه يې پکې منعکس شوېده. د نواب علي محمد بريځي ددې منظومې څو بيته دادي:

| | |
|---|---|
| افغانـي ننـګ و حيا مې دامنګير شوو | د مغل روتي مې ترک کړه ناروا وه |
| له منصبه استعفــا اعــراض مې وکړو | په مابين کې واقع شوې انزوا وه |
| واپس دواړه راتله بادشاه وروستـي و | په کشتن فتوه د شيخ و د ملا وه |

موږ ته ښکاره شوه، چې نواب علي محمد خان خو خپله هم د پښتو ژبې شاعر و. د دې ترڅنګه د ده په دربار کې نور پښتانه شاعران هم اوسېدل او نواب دوی پالل. هغه شاعران چې له دغه افغاني رياست سره مربوط وو، په هغو کې تر ټولو دمخه د محمود خان نوم مخې ته راځي. د محمود خان هم ځينې واقعاتي شعرونه له موږ سره شته، چې يوه يې هم د الموړې د فتحې مبارکي ده، چې نواب علي محمد خان ته يې په پښتو نظم کې وړاندې کړې وه. الموړه د نواب علي محمد خان لښکرو په ۱۱۵۵هـ ق يا ۱۱۵۶ هـ ق کال فتحه کړې وه.

د محمود خان يوه ښکلې رثائيه قصيده هم زموږ په واک کې ده، چې د نواب علي محمد خان د مړينې وير او ماتم مناظر يې پکې په خورا هنرمندۍ او خاص سوز انځور کړي دي. د دې مرثيې څو بيته:

| | |
|---|---|
| د پرهار غوندې به تل سرې وينې ژاړي | د هغــه زړونو په بخره چې هجران شه |
| مهجـوران دې طمــع نه کا له ژوندونه | تر قيامت به يې معلوم د رنځ درمان شه |
| يا ماتم په پښتـانـه کـې د شيرشـاه ؤ | يا په ده هومـره هـويـدا طـوفان شه |

محمود خان د پښتو ژبې يو مقتدر شاعر و، چې د دوولسمې هجري پېړۍ په حدودو کې يې په روهيلکهنډ کې ژوند کاوه. بل شاعر چې د نواب علي محمد خان له دربار سره منسلک ښکاري، هغه مسکين نومېږي. مسکين هم د دوولسمې هجري پېړۍ په دوران کې په روهيلکهنډ کې اوسېده. ده د نواب علي خان مرثيه ويلې ده. خو هغه شور او جذبه چې د محمود خان په ويلې مرثيه کې شته، دده په مرثيه کې نه ليدل کېږي، د ده د ويلې مرثيې دوه بيته دادي:

| | |
|---|---|
| خپل صاحب په سترګو نه ويني عالمه | د مسکين ژو..ون عبث دی نابکاره |

د مسکيـن ژړا پـه بخـره شوه منم لږ نظـر ورتـه کوه د خدای د پاره

سيد عبدالصمد پيرزاده د پښتو بل شاعر دی، چې د دوولسمې هجري پيړۍ شاوخوا يې په روهيلکهنډ کې وخت تېر کړی دی. ده د نواب علي محمد خان د زوی نواب سعدالله خان په ستاينه کې يو مخمس ويلی دی، چې د پيل بند يې دلته راوړل کېږي:

چې بنا يې په تمام پښتانه ننګ دی درست جهان يې د کرم په ګلو رنګ دی
هر سپاهي يې جانبازي لره پتنګ دی د اقبال د قدم ګرد يې هفت اورنګ دی
نن نواب سعدالله بهادر جنګ دی

له نواب علي محمد خان او دده د دربار له شاعرانو چې ورتېر شو، په دې سيمه کې بله کورنۍ چې زموږ مخې ته راځي، هغه د نواب رحمت خان بړيڅي کورنـۍ ده. نواب حافظ رحمت خان او دده کورنۍ د پښتني، هندي او اسلامي فرهنګ په روزنه کې د قدر وړ کارونه کړي دي.

نواب حافظ رحمت خان د شاه عالم زوی او د محمود خان لمسی و. نيکونه يې له ښوراوک نه لنګر کوټ ته کډه شوي وو. نواب حافظ رحمت خان په ۱۱۲۰هـ ق کال په روه کې زېږېدلی دی. ديني او مروج علوم يې په کوچنيوالي کې لوستي وو او قرآن عظيم يې په دوولس کلنۍ کې حفظ کړی و. دی د آسونو د تجارت په لړ کې هندوستان ته ورسېد او بيا يې له نواب علي محمد خان بړيڅي سره وليدل او څه موده يې هورې تېره کړه. بېرته روه ته راغی او دلته يې واده وکړ. بيا د نواب علي محمد خان بړيڅي په غوښتنه بېرته هندوستان ته ورغی او د نواب علي محمد خان بړيڅي له خوا يې زمکې او جاګيرونه وموندل.

نواب حافظ رحمت خان بړيڅي له نواب علي محمد خان سره د يوه زړور سالار په توګه او له نواب سعدالله خان سره د يوه مدبر مشر په توګه او بيا د نواب سعدالله خان تر مړينې (۱۱۷۵هـ ق) وروسته د روهيلکهنډ د مشر او نواب په حيث د روهيلکهنډ د رياست د آبادۍ او د هند د دې سيمو د خلکو د هوسايۍ لپاره په زړه پورې کارونه وکړل.

بالاخره د انګريزانو او د صوبې د نوابانو د يو سازش په اثر په ۱۱۸۸هـ ق کال د روهيلکهنډ د خلکو د يوه زړه سواند مدافع مشر په توګه د جنګ په ميدان کې ووژل شو او د روهيلکهنډ په بريلي نومي ځای کې خاورو ته وسپارل شو.

نواب حافظ رحمت خان له خپل سياسي او اجتماعي سيرت نه سربېره فرهنګي شخصيت هم و. د پښتو ژبې شاعر او د پارسي ژبې ليکوال و.

پښتو اشعار يې زموږ په واک کې دي او د خلاصه الانساب په نامه يې د پښتنو په انسابو کې يوه پارسي رساله هم ليکلې ده؛ د نواب حافظ رحمت خان د يو نظم يو بند دا دی:

د حق خو پرې شفقت دی		چې لـولاك د ده خلعـت دی
دي سبب د کل خلقت دی		په هرځای یې حق حرمت دی

د نواب حافظ رحمت په پرمایښت پیر معظم شاه د تواریخ افاغنه مسودې لنډې کړې او د تواریخ حافظ رحمت خاني په نامه یې ځانګړی اثر په ۱۱۸۲هـ ق کال بشپړ کړ او پارسي مقدمه یې هم ورسره مله کړې ده.

د نواب حافظ رحمت خان په زامنوکې د نواب محبت خان او نواب الله یار خان پښتو کارونه هم موږ ته معلوم دي، چې دلته باید خبرې پرې وکړو.

نواب محبت خان په ۱۱٦٤هـ ق کال په روهیلکهنډ کې زیږېدلی او د پلار تر شهادته پورې په پیلي بهیت کې اوسېده. کله چې یې پلار شهید شو، دی لکهنو ته بوتلل شو او تر مرګه پورې هلته و. نواب محبت خان په ۱۲۲۳ هـ ق کال په لکهنو کې وفات شو او همالته د لکهنو په ښار کې خاورو ته وسپارل شو.

نواب محبت خان عالم او فاضل سړی و؛ په پارسي او اردو ژبو کې هنرمند شاعر، ګرامرست او لیکوال و. له پښتو، پارسي او اردو سربېره په سنسکریت او عربي ژبو هم پوهېده؛ عربي اشعار یې هم ویلي دي.

د پښتو ژبې ګرامر او لغت یې په پارسي ژبه لیکلي دي او د ریاض المحبت نوم یې پرایښی دی. دا کتاب نواب محبت خان په ۱۲۲۱هـ ق کال بشپړ کړی دی؛ د اردو او پارسي ژبو داشعارو دیوان هم لري. پښتو دیوان یې هم شته چې تراوسه نه دی چاپ شوی؛ یوه خطي نسخه یې د بریتانیا په بودلیان نومې کتابخانه کې شته.

نواب محبت خان د سسي او پنون قصه نظم کړې او آمد نامه یې هم لیکلې ده؛ د ده د پښتو شعر یوه نمونه دا ده:

چـې حـافظ رحمـت شهـید شه په ژړا شه هر سړی
مـرد و زن له ډېره درده په نارو شه په هـی هـی
زه پـه فکـر د تـاریخ کـې مستغـرق وم
ناګهانه هاتف غږ که، چې رحمت و د نبی د امت دی

د نواب حافظ رحمت خان بل زوی نواب الله یارخان د هندي - پښتو ژبو یو فرهنګ د عجایب اللغات په نامه لیکلی دی. دا کارد پښتو ژبې د لغوي ذخیرې د ثبت له پلوه مهم دی، خو ادبي ارزښت نه لري. نو ځکه دلته د نواب الله یار خان او د ده دلغت یوازې یادونه وشوه. دنواب حافظ رحمت له کورنی پرته په روهیلکهنډ کې بله کورنی دنواب نجیب الدوله عمر خیل کورنی ده، چې ددې کورنی دوه تنه غړي هم د پښتو ژبې لیکوال او ناظمان وو.

په دې دوو کسانو کې یو هم نواب افضل خان عمر خیل دی، چې د نواب فاضل خان زوی و او د هندوستان امیر امرا و. ده د قرآن عظیم یو تفسیر په پښتو

ترجمه کړی دی او د تفسیر افضلیه نوم یې پرایښی دی. دا تفسیر په پښتو نثر دی او د نواب خینې منظومات هم ورسره مل دي.
د دې کورنۍ بل سړی نواب ارتضا خان عمر خیل دی. ده په ۱۲۲۵هـ ق کال د فرهنګ ارتضایي په نامه د لغت یو کتاب تهیه کړی دی. دا کتاب د پښتو ژبې د لغت او ګرامر په څېړنو کې خینې ارزښتونه لري، خو ادبي ارزښت یې نشته. څو پښتو بیتونه یې هم پکې راغلي دي او نوموړي نواب ارتضا خان د پښتو خینې لنډۍ او د حمید مومند بیتونه په پارسي او اردو ژبو ترجمه کړي دي. نواب ارتضا خان د نواب امان عمر خیل زوی او په هند کې د عمر خیلو پښتنو نوابانو د کورنۍ یو فرهنګي شخصیت و. له روهیلکهنډ سربېره د هندوستان په نورو افغاني ریاستونو، لکه د میسور، بهوپال، ټونک او نورو کې هم پښتو ته توجه شوې ده.
د دغو افغاني ریاستونو په حمایت خینې پښتو آثار ایجاد شوي او لیکل شوي دي. دغه لیکل شوي، ترجمه شوي آثار زیاتره له ادبیاتو سره ارتباط نه لري، لکه د پښتو ژبې د لغت او ګرامر کتابونه. د پښتو ژبې د زده کړې کتابونه، د قرآن عظیم تفسیر او نور... خو د دغو غیر ادبي آثارو په ترڅ کې مو‌ږ خینې داسې آثار هم مومو چې ادبي ارزښت هم لري. لکه د مولوي دوست محمد ټونکي خینې منثورې ټوټې چې د خپلې ضابطهٔ افغاني په پای کې یې اچولې دي. دا مولوي دوست محمد ټونکي د ملا امیر کابلي زوی و؛ له خورد کابل نه هندوستان ته تللی و. هلته یې د هند په اسلامي مدرسو کې د تعلیم تر حاصلولو وروسته د تدریس چارې پرمخ بیولې. مولوي دوست محمد ټونکي د ټونك په افغاني ریاست کې د شریعت او عدالت ناظم و. دی په ۱۲۲۸هـ ق کال په ټونك کې وفات شوی دی او همالته ښخ دی.
لنډه یې دا چې د دوولسمې او دیارلسمې پېړۍ په جریان کې د هندوستان په زمکه کې خینو جوړو شوو افغاني ریاستونو د پښتو ژبې او ورسره پښتو ادبیاتو په وده کې مسره ونډه اخیستې ده. د دې جریان ادبیات که څه هم ادبي هنري ارزښتونه لري، خو موږ ګورو چې له افغانستان او پښتونخوا نه په سوونو میله لیرې د هند په ځمکو کې له پښتنو لیکوالو، شاعرانو او ادیبانو سره د خپلې ژبې او خپل فرهنګ سره مینه شته او په خپله مورنۍ ژبه آثار لیکي او اشعار وایي.
په دې جریان پورې مربوط آثارو کې موږ وینو، چې شاعران خپلې خان ښیې، د نوابانو سوبې او نور دې ته ورته مسایل په خپلو اشعارو کې بیانوي او یو ډول واقعه نګاري په پښتو نظمونو کې رامنځ ته کېږي.
ښوونکي دې په هند کې د افغاني ریاستونو په اړه له شاګردانو سره مباحثه وکړي او د روهیلکهنډ د افغاني ریاست فرهنګي خدمتونه دې وشمېري او شاګردانو ته دې ځانګړې کورنۍ دنده وسپارل شي.

((۹))

# احمد شاهي ستر واكي او د پښتو ادبياتو د پرمختيا جريان

د دې کتاب په شپږم څپرکي کې راغلل، چې په ۱۱۵۰ هـ ق کال په کندهار کې د هوتکو پاچهي د نادرافشار له خوا ړنګه شوه. د هوتکو د شاهي سلسلې له ختمولو او د افغانانو له قتل و چپاو نه وروسته نوموړي نادر له افغاني مشرانو او د قبايلو له ريسانو سره له ملايمت نه کار واخيست او ځينې افغاني مشران يې په ځينو کارونو وګمارل او ځلوښت زره افغانان يې په خپلو لښکرو کې شامل کړل.

دغه وخت د زمان خان ابدالي دوه زامن ذوالفقار خان او احمد خان هم په کندهار کې وو نادر دا دواړه وروڼه ونازول او په مازندران کې يې جاګير ورکړ (۱۱۵۱ هـ ق) له دغه وخت نه احمد خان له نادر سره پېژندګلوي پيدا کړه.

په ۱۱۵٤ هـ ق کال نادر افشار احمد خان له مازندرانه راوغوښت او د ابدالي لښکرو مشري يې ورکړه او خپل هم رکاب يې مقرر کړ. احمد خان له دغه وخته له دولتي سيستم، لښکري او حربي لاروچارو سره بلد شو. کله چې په ۱۱۶۰ هـ ق کال نادر ووژل شو. نو احمد خان د نادر کورنۍ د شورشي درباريانو له بلوسېدنې وژغورله او د نادر کورنۍ ددغه خدمت په بدل کې احمد خان ته د کوه نور الماس وباخښه.

تر دې وروسته په ايران کې موجودې افغاني لښکرې له افغاني مشرانو سره مخ په هرات وخوځېدې او د ۱۱۶۰ هـ ق کال د رجب په مياشت کې کندهار ته ورسېدې. افغاني مشرانو پرته له ځنډه د کندهار په شيرسرخ کې جرګه جوړه کړه او د دې جرګې په نهمه جلسه کې يې احمد خان په خپله پاچهۍ ومانه او صابرشاه کابلي يې پر پګړۍ جوغه وټومبله.

احمد خان دغه وخت د پنځه وېشتو کالو و؛ د عمر له لړوالي سره سره يې د افغانستان لپاره نه هېرېدونکي خدمتونه وکړل. د افغانانو تېر عظمت يې بېرته احيا کړ او د افغانستان طبيعي حدود يې حفظ کړل او د همدغو خدماتو له امله خلکو د بابا لقب ورکړ او تر اوسه په احمد شاه بابا مشهور دی.

احمد شاه بابا له ظالمانو څخه د خلکو د ژغورنې لپاره لښکرکشۍ هم کړې دي. خو دی د پښتنې دود سره سم تل د مسالمت او اسلامي ورورولۍ او عفوې طرفدار سړی و.

احمد شاه بابا تر ۲۶ کاله پاچهۍ وروسته د ۵۱ کالو په عمر د ۱۱۸۶هـ ق د رجب د میاشتې په شلمه په توبه کې وفات شو او جنازه یې کندهار ته راوړل شوه او د کندهار په احمد شاهي ښار کې خاورو ته وسپارل شوه.

احمد شاه بابا له خپلو سیاسي، اجتماعي او ملي خدماتو سربېره د خپل هېواد د فرهنګ لپاره هم نه هېرېدونکي خدمتونه کړي دي. د پارسي او پښتو ژبو شاعران، لیکوال او عالمان یې نازولي دي، له دې سربېره دی خپله هم د پښتو ژبې شاعر و؛ په پښتوژبه ترې د شعر یو دیوان پاتې دی، چې د بیتونو شمېره یې دوه نیمو زرو ته رسېږي.

په دې دیوان کې غزلې، رباعي، قطعه، مخمس او مربع پیدا کېږي. موضوعات یې هم رنګین دي. یوه الف نامه یې هم په دیوان کې شته، چې دده د عرفاني مشرب نماینده ګي کوي. د ده په دیوان کې تصوفي موضوعات د عشق او مینې خبرې، اجتماعي او وطني مسایل او دیني مطالب پیدا کېږي.

د وطنپرستۍ کومه روحیه چې د احمدشاه بابا په اشعارو کې پالل شوې ده. د خپلو خصوصیاتو له پلوه د خوشحال بابا د دوران او هوتکي دوران له وطني اشعارو څخه په پرمختللې مرحله کې واقع ده.

د احمد شاه بابا پښتو دیوان په کابل او پېښور کې چاپ شوی دی. ده له پښتو سربېره په پارسي ژبه هم اشعار ویلي دي. ځینې نور آثار هم لري. د ده د آثارو مطالعه ښکاروي چې احمد شاه بابا عالم او دانشمند سړی او په پښتو او پارسي ژبو یې د شعر ویلو استعداد هم درلود. لاندې شعر د ده د وطندوستۍ د عالي روحیې ښکارندويي کوي.

ستا د عشق له وینو ډک سوه ځیګرونه — ستا په لاره کې بایلي خلمي سرونه
تاته راسمه زړګی زما فارغ سي — بې له تا مې اندېښنې د زړه مارونه
که هرڅو مې د دنیا ملکونه ډېر سي — زما به هېر نه سي دا ستا ښکلي باغونه
د دهلي تخت هېرومه چې رایاد کړم — زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه
احمد شاه به دغه ستا قدر هېر نه کړي — که ونیسي د تمام جهان ملکونه

د بابا په دیوان کې د ځینو ښو شعرونو ترڅنګه لږ ضعیف شعرونه هم شته، هنري متره یې په منځنې حد کې ده.

## د احمد شاه بابا په کورنۍ کې د پښتو ادبپالنه:

په تېرو مخونو کې تاسې ولوستل چې د احمد شاهي امپراتورۍ مؤسس لوی احمد شاه بابا په خپله عالم او ادیب سړی و. دغسې د ده د کورنۍ ځینې نور غړي هم د پښتو شاعران تېر شویدي.

د ده د کورنۍ له غړو څخه د ده مشر زوی تیمور شاه د پارسي او پښتو ژبو شاعر و؛ تیمور شاه د پلار د مرګ په وخت کې د هرات حکمران و، کله چې د پلار له مړینې خبر شو، ژر مخ په کندهار روان شو، شهزاده سلیمان یې خلع او وزیر شاه ولي خان یې مړ او خپله د افغانستان پاچا شو. څه موده وروسته یې پایتخت له کندهاره کابل ته رانقل کړ؛ هند او د احمد شاهي امپراتورۍ ځینو نورو زمکو ته یې لښکر کشۍ وکړې او بالاخره تر ۲۲ کاله پاچهۍ وروسته د ۱۲۰۷ هـ ق کال د کوچني اختر د میاشتې پر ۷ مه نېټه وفات شو او په کابل کې ښخ کړل شو.

تیمور شاه په پښتو ژبه د شعر ویلو روانه طبع درلوده او په پښتو یې خواږه اشعار ویلي دده په پارسي دیوان کې د ده څو پښتو غزلې هم شته. چې هنري ارزښتونه هم لري، لکه دا غزل:

| | |
|---|---|
| نن مې بیا له تورو سترګو سره جنګ دی | پر لبانـو یـې د زړه د وینـو رنګ دی |
| کـه پـرې کړي سر په لاس ورلره راسم | لا په دایې باور نه سي زړه یې سنګ دی |
| ستا د حسن لښکـر راغی ځان یې بایلو | د عاشق د زړه میدان هر ګوره تنګ دی |
| عشق و مشك پټول نه سي (تیمورشاهه) | چې په خپله ځان رسوا که هغه رنګ دی |

د تیمور شاه اووم زوی شاه شجاع (۱۱۹۸ـ ۱۲۵۸هـ ق) هم د پارسي او پښتو ژبو شاعر و. د پارسي اشعارو دیوان یې چاپ دی؛ ښاغلي عبدالقیوم عسکر یې پښتو شعر هم پیدا کړی دی.

## د احمد شاهي دربار ارکان او پښتو ادب:

د احمد شاهي دربار له ارکانو څخه وکیل الدوله عبدالله خان هم د پښتو ژبې شاعر تېر شوی دی. دا وکیل الدوله عبدالله خان پوپلزی د ۱۱۰۶ هـ ق کال شاوخوا زېږېدلی او په ۱۲۰۱هـ ق کال په غزني کې مړ دی. ده د هرات د ابدالیانو په حکومت کې شمولیت درلود؛ د نادر افشار په لښکرو کې هند ته هم تللی دی او کله چې احمدشاه بابا پاچا شو، د ده د پاچهۍ په ارکانو کې شامل و او د تیمور شاه په دوران کې وکیل الدوله و. د وکیل الدوله عبدالله خان پوپلزي ځینې پښتو اشعار تر موږ رسېدلي چې په هغو کې یې د احمد شاه بابا ستاینې هم کړې دي، دا یې هم درې بیتونه:

| | |
|---|---|
| ربـه ژر مـې مدینـه مکـه مقام کړه | بـې آرامـه زړه مـې څه خو په آرام کړه |
| په حرمت دې د مکـې د مدینې وه | احمـد شـاه د سکنـدر قایم مقام کړه |
| عبدالله د خپل مولا نه د غه سوال که | چې روان یې و خپل بیت ته په احرام کړه |

د وکیل الدوله عبدالله خان مشر زوی وکیل الدوله محمد علم خان هم د پښتو او پارسي ژبو شاعر تېر شوی دی. وکیل الدوله محمد علم خان په ۱۱۵۷ هـ ق کال

زېږېدلی او په ۱۲۴۲ هـ ق کال مړ دی. دی د احمد شاه بابا په زمانه کې په دولتي کارونو ګمارل شوی و او د پلار تر مړينې وروسته وکيل الدوله مقرر شوی دی. دده د يوه نعتيه نظم يو بند دا دی:

ستا نوم شو محمد     ته نازولی د صمد
په قل هو په احد     عالم تېر کړه محمده

دوکيل الدوله محمد علم خان لمسی د سردار محمد کلان امين الوجوهات زوی سردار محمد عمر هم د پښتو ژبې شاعر تېر شوی دی. دغه سردار محمد عمر په ۱۲۱۱هـ ق کال د کابل د ديوان بيګي په کذر کې زوکړی او په ۱۲۹۳ هـ ق کال په بلخ کې مړ او هورې ښخ دی.

سردار محمد عمر خان د امير دوست محمد خان او امير شيرعلي خان په زمانوکي د بلخ، کرمې او ځينو نورو سيمو حکمران او نايب الحکومه و. د ده د يو پښتو شعر يو بيت دا دی:

يو وار سترګې که راپورته صبحدم پير دستګيره
دواړه لاس مې په تندي سرتور ولاړ يمه دلګيره

## پير محمد کاکړ او د ده سبك:

د پښتو په ادبي څېړنو کې دا خبره راغلې ده، چې د لوی احمدشاه بابا تر پاچا کېدو وروسته، د خپل علمي شهرت او فضيلت له امله پير محمد کاکړ کندهار ته رابلل شوی دی. د احمد شاه بابا او د ده د زامنو او حتی لمسيو تر عصره دی په دربار کې مقرب و او مواجب ورمقرر وو.

په ادبي څېړنو کې دا خبره هم راغلې ده، چې پير محمد کاکړ د لوی احمد شاه بابا د زوی شهزاده سليمان او د شاهي کورنۍ د نورو کسانو استاد هم پاتې شوی و.

پير محمد کاکړ په اصل کې د بلوچستان د هند و باغ د يعقوبي نومي کلي اوسېدونکی و؛ په احمد شاهي عصر کې کندهار ته راوستل شو او بيا د احمد شاه بابا، تيمور شاه او د تيمورشاه د زامنو تر عصره هم ژوندی و.

د ده ژوند محققانو تر ۱۲۱۶هـ ق کال پورې يقيني بللی دی، دزوکړې نېټه يې د ۱۱۲۰ هـ ق او ۱۲۳۰هـ ق کلونو تر منځ اټکل کېږي. پير محمد کاکړ په کندهار کې وفات شوی او د کندهار په لويه هديره کې د حضرت جي صاحب زيارت ته نږدې ښخ دی.

پير محمد کاکړ د پښتو د ډېرو ښو شاعرانو او د پښتو د ډېر ولويو عالمانو په قطار کې ولاړ سړی دی.

پير محمد کاکړ په پښتو ژبه د شعر يو ښکلی ديوان لري، چې په ډيلي او کابل کې چاپ شوی دی او په دې ديوان کې غزلې، مربع، رباعيات، ترجيع بند، معشر،

مسدس او مخمس پیدا کېږي، موضوعات یې هم رنګین دي، له دې سربېره پیر محمد کاکړ د پښتو ژبې د زده کړې یو کتاب د معرفة الافغاني په نامه لیکلی دی، چې په خلپه نوع کې د پښتو لومړنی کتاب دی او د پښتو نثر ښې نمونې هم پکې خوندي دي.

د پیر محمد کاکړ دیوان د هنري ارزښتونو له پلوه هم د منلې وړ دی، تصویرونه یې ښکلی بلاغت او فصاحت یې لوړ معیار لري او شاعر د خپلو اشعارو د ښکلي کولو لپاره د کلماتو په انتخاب کې د ښه صلاحیت خاوند دی؛ د ده غزلیات، رباعیات او نور اشعار د ښکلا او هنر ښه تومنه لري، د ده یوه ښکلې رباعي دا ده:

سحر غوربږي غوتی د ګلو — سېځي له شوقه زړه د بلبلو

جدايي وینم، ځکه جاریږم — تـر سـرو قـد و زلفـو سنبلو

پیر محمد کاکړ له پښتو سربېره په پارسي ژبه هم شعر ویلی او د هدایت المبتدي په نامه کتاب یې په پارسي نثر لیکلی دی.

لـوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبي د پیـر محمـد کـاکړ سبـک او وینـا ووتـه خصوصیات ټاکلي دي، چې څو یې دا دي:

(۱) په دې سبک کې د عشق هنري احساسات شته او له هغـو تـودو احساساتو څخه الهام اخلي، چې ارتې او صنعت زېږوي.

(۲) د دې سبـک تشبیهات او استعارات طبیعي رنـګ لـري؛ د ظاهـري ښکلا او مادي جمال بیان کوي.

(۳) عبارات او الفاظ یې پرېولي، روان او ژبه یې حذابه ده.

د پیر محمد سبک ځینو نورو شاعرانو هم تعقیب کړی دی او د پښتـو شاعـرۍ د خورا مقبول سبک په توګه تراوسه هم مقبول دی او خوښوونکي لري.

د پیر محمد کاکړ د سبك په پیروانو کې مشهور سړی شمس الدین کـاکړ دی. دا سړی د پښتو له ښو شاعرانو او د پیر محمد کاکړ د سبك له بریالیو پیروانو څخه ګڼل کېږي.

شمس الدین کاکړ د کندهار د کیلج آباد و، ډېرعمر یې په هند او پنجاب کې تېر دی. ده د شعر عالي طبع او ښه قریحه درلوده، د شعر یو ښکلی دیوان ترې پاتې دی، چې غزل، رباعي، مثنوي، مخمس، مسدس، مثمن، معشر، ترجیع بند او نـور شعري انواع لري. په هنري لحاظ د شمس الدین د اشعارو معیار لوړ دی او یو خاص سوز پکې نغښتی دی، رواني او خوږ لت د شمس الدین د اشعارو یوه خاصه ده. د ده د دیوان د بیتونو شمیر تر پنځو زرو اوړي؛ ده خپل دیوان په ۱۲۳۸هـ ق کال بشپړ کړی دی. د شمس الدین دیوان په کابل کې چاپ شوی دی؛ دا لاندې رباعي د ده د سوزناکې وینا ښکارندویي کولای شي:

د خـدای د پـاره زیبا نګاره — ډېـر یـم د هجر په رنځ بیماره

کله بـه راشـې زما و خواته — لیمه مې سپین سوه له انتظاره

د پیر محمد د سبک په پیروانو کې بل سړی، چې د هېرې نه دی هغه د ګلزار زوی د هلمند په مالګیر کې اوسېدلی شاعر ګل محمد دی. ادبي مورخانو لیکلي دي، چې ګل محمد نورزی هلمندی د احمد شاه بابا په زمانه کې زوکړی دی او د شاه زمان په عصر کې ژوندی و. ده دخپل ژوند یوه موده په هندوستان کې تېره کړې

دوو زرو بیتونو یو دیوان لري، چې تراوسه چاپ نه دی، دده عاشقانه ...سات تاوده او د مینې د حالاتو په تصویر کې پیاوړي دي او د پیر محمد سبک ېې ډېر ښه پاللی دی، یوه ښکلې رباعي يې دا ده:

راسه بلبله په ژړا زاړه بهار د ګلو له خدایه غواړه
زاغان که ډېر سي نصیب يې خار دی غنچه د ګلو ستا ده ولاړه

د پیر محمد په شاګردانو کې د ابراهیم کاکړ نوم هم د پښتو په ادبي تذکرو کې یاد شوی دی. په پښتانه شعراء اول ټوك کې يې محمد ابراهیم کاکړ د ملا پیر محمد کاکړ په شاګردانو کې درولی دی، دی هم د احمد شاهي عصر له فضلاوو څخه شمېرل کېږي. ژوند يې تر ۱۲۳۰ هـ ق کال پورې یقیني دی، د ده څو ښکلې رباعي او د ملا پیر محمد په مدح کې ویل شوې یوه مثنوي په پښتانه شعراء کې محفوظ دي. د ده لاسته راغلي رباعیات د پیر محمد کاکړ د سبک تابع دي،دا يې یوه خوندوره رباعي:

په مخ ښایسته يې ښکلې ملوکې پر شاوخوا دې د حسن کوکې
بلبلان ستايي تا په ګلزار کې طوطي دې ستايي په سرې مښوکې

د پیر محمد کاکړ سبک او د ده دخوږې شاعرۍ پیروي نورو شاعرانو هم ښايي کړې وي، چې سملاسي موږ ته نه دی ښکاره؛ د ده په پیروۍ ویل شوې رباعي او غزلیات او نور شعري ډولونه ښايي په یو نیم بل دیوان کې هم وموندل شي، خو دده د سبک معلوم پیروان همدغه کسان وو چې لوړ وښوول شول. زموږ استادانو څېړونکو مهر دل خان مشرقي، هم د پیر محمد په پیرو شاعرانو کې درولی دی، خو دهغه سبک هندي سبک شاعري ته پاتېږي، نه د پیر محمد سبک شاعري، خکه نو ما مشرقي د هندي سبک په پیروانو کې ودراوه.

د احمد شاه بابا د رزمي کارنامو په ارتباط ادبي پېښې: موږ د دې بحث په لومړیو برخو کې دې خبرې ته اشاره وکړه چې لوی احمد شاه بابا دخپل هېواد د سرحداتو او طبیعي محیط د ساتنې لپاره دخپل مملکت شاوخوا څه لښکرې او حربي کار روایي وکړې، خو هېڅکله د ده مقصد د نورو خلکو د زمکو لاندې کول او د نورو د حقوقو غصب نه و. دی یو مهربان او ادیب پاچا و، چې دغسې کسان فطرتاً خون ریزۍ او چپاول ته نه وي جوړ. د احمد شاه بابا د سلطنت په دوران کې زموږ دهېواد په شرق کې دهندپه پراخو زمکو کې څه ګډوډۍ رواني وې. انګرېزانو لا

ډېر د مخه په شرقي هند کې ځای نیولی و او [illegible] هند یې دخپلې قبضې لپاره کارونه روان کړي وو. دهند مرکزي مغولي حکو[illegible] ضعیف شوی و او د هند د محلي راجاګانو او ریاستونو تر منځ د زمکو د پراخولو مسابقه روانه وه. [illegible] دهند پر زیاترو زمکو یو ناتار ساز کړی و، دهند ټول مسلمین [illegible] افغان مسلمانان د دغو خلکو له جبره او ناتاره ډېر تنګ شوي وو، نو [illegible] و. چې د هند لوی روحاني شخصیت او امام المسلمین حضرت شیخ ولی الله دهلوي له احمد شاه بابا څخه وغوښتل، چې د هند په ملیونونو مسلمانان د مرهټه وو له آزاره وژغوري، ځکه د هند مرکزي حکومت دومره توان نه درلود، چې دا کار وکړي. لوی احمد شاه بابا د هندي مسلمانانو په غوښتنه هندوستان ته څو ځله لښکر کشي وکړه او دهند د پراخو زمکو مسلمانان، هندوان او سکهان یې د مرهټه وو او نورو محلي راجاګانو له جوړه او ظلمه وژغورل او د هندپه مرکزي کمزوري حکومت کې یې نوی سا وروپو کړه.

دپښتو ادب په تاریخ کې ځینې ادبي پېښې له دغو لښکري کارنامو سره اړه لري چې موږ مجبور یو دغه ادبي پېښې دهمدغو کارنامو په ارتباط وڅېړو.

د پښتو بشپړه تاریخي حماسه احمد شاهي شاهنامه هندوستان ته داحمد شاه بابا د لښکري او رزمي کار روایو په ارتباط لیکل شوې ده.

حافظ ګل محمد مرغزی چې له احمد شاه بابا سره په دې لښکرې سفرونو کې ملګری و، په ۱۱۷۶ هـ ق کال احمد شاهي شاهنامه لیکلې ده؛ دا شاهنامه دپېښور دپښتو اکاډیمی له خوا چاپ ده. د شاهنامې ناظم د احمدشاه بابا د سلطنت د لومړیو شپاړسو کلو د ځینو واقعاتو په باب ښه بیانونه په دې شاهنامې کې ځای کړي دي.

د شاهنامې ناظم حافظ ګل محمد دموسی زوی د پښتونخوا په مرغزنومی کلي کې زوکړی و؛ د څمکنو د میاعمر رحمه الله مرید و؛ ځپل وروستی عمر یې په پنجاب او دهندپه زمکو کې تېر کړی دی. ژوند یې د دوولسمې پېړۍ تر پایه یقیني ښکاري؛ د زوکړې نېټه یې د ځپلو لیکنو له مخې ۱۱۲۶ هـ ق کال ده.

احمد شاهي شاهنامه حافظ ګل محمد مرغزی د لوی احمد شاه بابا په غوښتنه بشپړه کړې ده، لکه چې په شاهنامه کې راغلي دي:

| | |
|---|---|
| چې فرمان د شهريار و | په زېبا ښکلي ګفتار و |
| چې حافظ دې شاهنامه که | په جهان دې دانامه که |
| شاهنامه ډېر که رنګین | جور زېبا درثمین |
| پکې حال دې د جهان وي | ښه ګنجونه دې عیان وي |

د احمد شاه بابا له رزمي کارنامو سره مربوط بل شاعر محمد رفیق خان علی زی دی. دا سړی د کندهار له علي زیو پښتنو څخه و. له احمد شاهي لښکرو سره دهند پر لور راغلی، بیا دوباره کندهار ته نه ورغی او د پښتونخوا د صوابی په کونډه کلي

کې دېره شو. دی د دوولسمې پېړۍ په جریان کې د پېڅ د درې په جنګونو کې ووژل شو او په کونړه کې خاورو ته وسپارل شو، ده ویلي دي:

| | |
|---|---|
| محمد رفیق زما نامه ده | اصل ځای زما کونړه ده |
| یــم په اصل درانی | درانـــــو کې علی زی |

دی د دیوان خاوند شاعر و او دیوان يې تر اوسه نه دی چاپ شوی. د پښتو ژبې عروضي شاعر او دعروضو عالم میاشرف الکوزی ننګرهاری هم له هغوشاعرانـو څخه دی. چې د پانی پت په مشهوره جګړه کې يې شرکت درلود. میاشرف الکـوزی په اصل کې دننګرهار د ګردي کڅ و او عمر يې په هند کې تېر دی. دپښتو عروضو کتاب يې هم په هندوستان کې لیکلی دی او د اشعارو دیوان يې هم درلود.چې متفرقې غزلې او قصیدې ترې پاتې دي. ده د بردې قصیده هم په پښتو نظم ترجمه کړې ده؛ په پښتو يې نظم او نثر لیکلی دی، په نظم او نثر کې يې د عربي او پارسي او هندي ژبو لغات زيات دي، اماد ده کمال دا دی چې د عروضو دعلم ډېر درانه اصطلاحات يې پښتو ته اړولي دي. د ده شعر سره له دې چې درانه عربي او پارسي کلمات لري اود خلیل بن احمد فراهیدي پر مستخرج عروضی سیستم برابر ویل شوي، خو بیا هم ښکلا او جذب او کشش يې ملګري کوي، دا يې یو ښکلی بیت:

سور ګل چې سحر وخت په جمال ستا کړ نسیم خور
ښایست ددې ګـــل بـل کـړ د بـلبل پـــه لمـــن اور

د احمد شاه بابا د لښکري کارنامو په ارتباط ویل شوې یوه منظومه برهان ویلې ده، دا منظومه جیمز ډارمستتر د پښتونخوا د شعر هار وبهار نومي مجموعه کې چاپ کړې ده. دا سندره له همدې جنګي کاروایيو سره اړه لري، دابرهان خان د نادر خان زوی و،دهزارې په ضلع کې اوسېده، دده د منظومې څو بیتونه دا دي:

| | |
|---|---|
| احمد شاه بـــاد شاه په جار وویله | د غـــزا په نیت وزمه له کابله |
| پښتنې، مغولې لاندې کړې کفارو | دا خبره مې په زړه وګرځېدله |

د احمد شاهي عصر نور شاعران، ناظمان او عالمان: په احمد شاهي عصر کې د پښتونخوا، افغانستان، بلوچستان او هند په سیمو کې د پښتو ژبې ډېر شاعران، لیکوال او ناظمان تېر شوي دي چې ځینو يې موږ د دې کتاب په بېلابېلو برخو کې خبرې وکړې، خو ځینې کسان داسې دي، چې په نورو برخو کې دمطالعې ځای نه لري او موږ اړیو چې دلې خبرې باندې وکړو. په دې ډله کې مونږ د دغو کسانو نومونه یادولای شو:

حبیب الله د دیوان خاوند شاعردی او په پښتو ترې د شعر دیوان پاتې دی، دا دیوان په ۱۳۶۰ هـ ق کال پښتو ټولنې په کابل کې چاپ کړی دی. د ده په دیوان کې غزلې، ځینې نور شعري انواع شته او یوه الفنامه هم لري، حبیب الله دپښتو خوږ

ژبې شاعر دی، په یوه غزل کې یې کندهار او د کندهار پاچهي ستایلي دي، لکه چې وایي:

| | |
|---|---|
| چې داخل په کندهار شوم | نا آرامه پر قرار شوم |
| په ثنا د کردګار شوم | آه ارمان دی کندهاره |

***

| | |
|---|---|
| چې یې نوم احمد پادشاه دی | شاه ولي یې پشت پناه دی |
| کل عالم د ده نېك خواه دی | آه ارمان دی کندهاره |

د احمدشاهي عصر له شاعرانو څخه بل شاعر ملا علم اپریدی دی، د شعر دیوان ترې پاتې دی چې تراوسه نه دی چاپ شوی، خطي نسخه یې شته، سعدي ته منسوبه کریما رساله یې هم په ۱۱۶۲ هـ ق کال په پښتو نظم ترجمه کړې ده، دده د زوکړې کال ۱۱۳۰ هـ ق شاوخوا ښوول شوی دی. ده په خپلو اشعاروکې احمد شاهي پاچهي ستایلې ده او دده په دیوان کې غزلې او اوږدې قصیده ډوله غزلې او څلوریزي شته؛ اشعار یې رنګین او راز راز مطالب پکې بیان شوي دي.

د یوې غزلې دوه بیته یې دا دي:

| | |
|---|---|
| په ګلزار کې تماشا کړه د سروګلو | د دنیا ساعت به نه وي تل تر تلو |
| د خزان له غمه ژاړي په بهار کې | د فراق نارې چې اوري له بلبلو |

ابوالقاسم د احمد شاهي عصر بل د دیوان خاوند شاعر دی. د ده دیوان په ۱۹۸۶ع کال په پېښور کې ښاغلي قلندر مومند چاپ کړی دی. « ښکلې غزلې یې په دیوان کې موندلې کېږي، لکه دا لاندې غزل چې مطلع او مقطع یې دلته راوړم:

| | |
|---|---|
| چې یې ګډه په ګیسو باندې شانه کړه | د زړه خونه مې یې واړه ویرانه کړه |
| زه ابوالقاسم به هم درسره کښېنم | اې زاهده خپل خلوت دې میخانه کړه |

د ښاغلي قلندر مومند د څېړنې مطابق ابوالقاسم په احمدشاهي عصر کې په باجوړ کې اوسېده.

غزل ویونکی شاعر احمد خان هم د احمد شاهي عصر په شاعرانو کې د یادونې وړ شاعر تېر شوی دی. یوه غزله یې په ادبي څېړنو کې راغلې ده. د دې غزلې مقطع یې داده:

| | |
|---|---|
| احمد خانه هر سړی به هاله پوه شي | چې د عمر تارې پرې شي په مقراض |

له دغو شاعرانو سربېره څینو نورو عالمانو، لیکوالو او ناظمانو هم په دې عصر کې ژوند کړی دی. د دغو کسانو د آثارو زیاتره برخې او حتی ټول یې هنري ارزښتونه نه لري، څینې لږ آثار یې ښایي د ادبي تاریخ په حواشیو کې دِ مطالعې ځای ولري. له دغه ډلې علماوو، لیکوالو او ناظمانو څخه موږ تر ټولو دمخه د ستر روحاني پیشوا د څمکنو د میا عمر یادونه کولای شو. دغه ستر روحاني له احمد شاه بابا سره روابط هم درلودل. دده په مریدانو کې هم ډېر شاعران او لیکوال تېر شوي دي. ډېر علما

او شاعران یې مریدان وو او دده له روحاني مراتبو یې فیض موندلی و.

د څمکنو میا عمر د ابراهیم زوی د کلاخان لمسی و، د زوکړې کال یې ۱۰۸۰ هـ ق کال د پنجاب په فرید آباد کې او د مړینې هغې یې په ۱۱۹۰ هـ ق کال د پېښور په څمکنو کې واقع شوی دی، میا صاحب د پېښور په څمکنو کې ښخ دی.

میا صاحب په پښتو ژبه د نظمولو او په پارسي د شعر ویلو او څه لیکلو توان درلود؛ په عربي یې هم تالیفات شته. دده په پښتو آثارو کې د خلاصهٔ کیداني پښتو منظومه ترجمه او له دې ترجمې سره ډېر زیات منظوم ضمایم موږ ته ښکاره دي. په دې ضمایمو کې میا صاحب ځینې حکایات په پښتو نظم راوړي دي. دغه حکایات څه ادبي ارزښتونه لري؛ د میاصاحب پښتو کړې خلاصه له ضمایمو سره په ۱۳۹۸ هـ ق کال په ډیلي کې چاپ شوې ده. دده بل منظوم اثر د اسلام د ستر پیغمبر د شمایلو رساله ده، چې دا رساله تراوسه نه ده چاپ شوې.

قابل اورکزی د احمدشاهي عصر یو بل ناظم دی، چې ترسنامه یې په پښتو نظم لیکلې ده او د دې کتاب په مقدمه کې یې احمد شاه بابا ستایلی دی.

حافظ رکن الدین ابن منیر د پېښور د هزارخانی اوسېدونکی د احمد شاهي دوران بل لوی ناظم دی، چې د غوث الاعظم د مناقبو غټ منظوم کتاب او د حفظ الاداب او قانون القراء په نامه د قرآن عظیم د تجوید دوه کتابونه ترې پاتې دي. ده په خپلو آثاروکې د احمد شاه بابا ستاینې کړې دي،د دغې ستاینو یو بیت دا دی:

چې احمد پادشاه د دین وي　　　　خود تازه به رکن الدین وي

معزالدین خټک چې طب دلیل العلیل او ربقة الاسلام یې په پښتو نظم کړي دي، د دې دورې له عالمانو او ناظمانو څخه دی.

دادین او مسعود ګل د څمکنو د میا عمر مریدان دي، چې دغو دواړو د خپل پیر د مناقبو کتابونه په پښتو نظم لیکلي دي او د دادین د اشعارو د کلیات د موجودیت یادونه هم په پښتو ادبي څېړنو کې راغلې ده؛ په دغو دواړو کتابونو کې د احمد شاه بابا د عصر د واقعاتو او له میا عمر(رح) سره د احمد شاه بابا د روابطو بیانونه راغلي دي. مسعود ګل او دادین هم د احمد شاهي عصر د علماوو او ناظمانو په لړۍ کې د هېرېدو نه دي.

د احمد شاهي عصر له لیکوالو او عالمانو څخه بل نومیالی شخص عبدالله د احمد شاهي فتاوا لیکوال دی. ده فتاوای احمدشاهي په پښتو نثر لیکلې ده او د پښتو نثر یوه غټه ذخیره یې په دې کتاب کې خوندي کړې ده. دا فتاوی په پیل کې ځینې منظومات هم لري، چې یوه برخه یې د احمد شاه بابا صفتونو ته وقف شوې ده، دغه سرې د احمد شاه بابا د علمیت په باب ویلی دی:

د دې وقت بادشاه سني دی　　　　په مذهب کې حنفي دی

محبت یې د کتاب دی | بې عدد و بې حساب دی
دی پخپله مصنف دی | په دې کار کې ډېر منصف دی
هم عالم دی هم شاعردی | په نکتو کې ډېر ماهر دی

د احمد شاهي عصر بل نثرلیکونکی قاضي محمد غوث خان علوم و؛ د احمد شاه بابا الف نامه یې په پښتو نثر تشریح کړې ده. دا شرح د استاد عبدالشکور رشاد له مقدمې سره په ۱۳۵٦هـ ش کال په کابل کې چاپ شوې ده.

## د احمد شاهي دوران ادبي بهير ته يوه کتنه:

که چېرې موږ د احمد شاهي دوران ایجاد شوي، لیکل شوي او ترجمه شوي آثار له نظره تېر کړو، نو موږ ته رابنکاري چې ددې دوران ادبي او نور منظوم او منثور آثار په شکلي او موضوعي لحاظ له دمخنيو آثارو څخه کوم خاص توپير نه لري.

ټول هغه موضوعات چې ددې پېر په ادبي او نورو منظومو او منثورو آثارو کې بيان شوي دي پخوا يې هم په ادبي او نورو منظومو آثارو کې ځان ښکاره کړی دی.

خو څه چې په دې پېر کې د يادونې وړ دي او له د مخينو آثارو څخه متبارز ښکاري، دا دي:

(۱) د پښتو بشپړه ترلاسه شوې تاريخي حماسه، احمد شاهي شاهنامه، د همدې ادبي پېر محصول ده، که څه هم موږ تر دې پړاو دمخه په هوتکي دوران کې هم ځينې تاريخي حماسې لرو، خو تراوسه بشپړې نه دي ترلاسه شوې او احمد شاهي شاهنامه تراوسه د پښتو بشپړه تاريخي حماسه ده. په پښتو کې شاهنامه ليکل له همدې پړاوه پيل کېږي.

(۲) د تاليف دانو اعوله پلوه د مناقبو ليکل د پښتو د زده کړې د کتابو تاليفول او د فتاو او ترتيب هم موږ په پښتو آثارو کې په همدغه پېر کې ګورو. که څه هم دغه کټيګوري آثار ادبي ارزښتونه نه لري. دغسې آثار د پښتو آثارو په موضوعي وسعت کې بې بدله نه دي.

(۳) که څه هم وطنپرستانه افکار او له وطن او خپلو خلکو سره مينه د پښتو په اکثرو اشعارو کې ليدل کېږي. خو د احمدشاهي پېر په اشعارو کې دا ډول مفکورې په يو څه پرمختللې بڼه ليدای شو.

(٤) يو بل څه چې موږ د دې پېر په آثارو او اشعارو کې مومو، هغه دا دي چې د دې پېر په اکثرو آثارو او اشعارو کې د وخت د پاچا (احمد شاه بابا) ستاينه شوې ده، او پاچا يې په ډېرو ښو الفاظو کې ستايلی دی. دا ستاينې ددې خبرې افاده راکوي، چې افغانان د پرديو حکومتونو ډېر ځپلي وو او د احمد شاه بابا د پاچهۍ په جوړېدو سره يې ډېره خوښي څرګنده کړې ده.

ښوونکي دې د حماسې په باب له شاګردانو سره خبرې وکړي. تر احمد شاهي شاهنامې دمخه د بلې پښتو حماسې په باب دې له شاګردانو پوښتنې وشي.

# پښتو غزل د خپل پیدایښت او پئښت
# په لوړو ځوړو کې

غزل د شرقي شاعرۍ یو ډېر منلی او پېژندلی شعري ډول دی، چې د شرقي شاعرۍ د زیاترو دیوانونو یوه درنه او غوښنه برخه په غزلو اړه لري.

زموږ په ادبیاتو کې هم غزل کابو اووه سوه کلن تاریخ لري. د پښتو لومړنی لاس ته راغلی غزل داتمې هجري پېړۍ دی؛ په لسمه هجري پېړۍ کې هم موږ څه متفرقې غزلې نورې لرو. دا کردې متفرقې غزلې موږ د پښتو د ادبي تاریخ په لومړۍ دوره کې مطالعه کړې؛ د پښتو لومړنۍ غزلې د هنر او فکري ارزښتونو له پلوه پاته غزلې نه دي.

په دوهمه ادبي دوره کې، چې د پښتو ادبیاتو منظم آثار زموږ په واک کې دي او پښتو ادبیات په دې دوره کې، لکه چې مو د مخه خبرې پر وکړې، تر بېلابېلو فکري اوادبي جریانونو لاندې ایجاد شوي او وده یې موندلې ده. په دې ټولو جریانونو کې چې څومره ادبي آثار ایجاد شوي دي، په هغو کې د غزل ونډه او برخه درنه ده. پښتو غزل په دغو جریانونو کې ډېرې لوړې او ځوړې لیدلې دي چې په خپله خپله برخه کې مو لازمې اشارې ورته کړې دي.

دا دي په دې برخه کې موږ د پښتو غزل هغه پالونکي او روزونکي یادوو، چې په دې کتاب کې راغلو جریانونو کې نه دي مطالعه شوي.

موږ دغسې غزل ویونکي زښت زیات لرو، چې یوازې د نومونو فهرست راوړل یې خبره اوږدوي، خو زه به په دې برخه کې د پښتو د دغه کتګوري غزل ویونکو ځینې ډېر عمده کسان دلته یاد کړم:

**(۱) شیخ فرید:** د پښتو یو غزل ویونکی شاعر دی، د ده په باب زیات معلومات نشته؛ یوه غزله یې په تیر هیر شاعران نومي تذکره کې خوندي ده. د ده غزله عرفاني رنګ لري او هنري پرداخت یې هم بد نه دی، د دې غزلې مقطع دا ده:

نور عالم دې حورې جنتونه غواړي — دا شیخ فرید دې طمعدار ستا له دیداره کړځي

د ده غزله په خوند رنګ کې د روښانیانو د معاصرو صوفیانو، ځینو صوفیانه غزلو ته پاتېږي.

(۲) امیر خان هجري: دا سړی د دیوان خاوند شاعر دی، دیوان یې په دوو جلدونو کې ترتیب شوی‌دی؛ دا دیوان تراوسه نه دی چاپ. ده په خپلو اشعارو کې هجري تخلص کړی دی. دی د دوولسمې هجري پېړۍ شاعر معلومېږي؛ دده غزل هنري ښکنې لري او عالي تخیلات روزي، دا یې هم دوه ښکلي بیتونه:

ګل پـه لړه ژړا وخاندي شبنم ته — یار مې ونـه ښوود اوښکو پـه باران مخ

چې زما د زړه آهونه ورته رسي — ځکه هسې رنګ کبود شه د آسمان مخ

(۳) قنبر علي خان اورکزی: قنبر علي خان د سرور خان زوی و. د تیرا په کلایه کې اوسېده صوفي مشربه عالم سړی و؛ د انور شاه مرید و. قنبر علي خان د ۱۲۰۷ هـ ق کال د رجب په میاشت کې په پېښور کې وفات شوی او همدلې ښخ دی. دی د اشعارو دیوان او د اشك قنبر په نامه د نوحو یو ځانګړی اثر لري. په دې دوهم کتاب کې یې د کربلا پېښې ډېرې سوزناکې راوړې دي. د قنبر علي خان اورکزي غزلې او نور اشعارډېر خواږه او سوزناکه دي. د ده غزل او نـور اشعار د هنر لوړه مایه او ځینې اشعار یې فکري ارزښتونه هم لري؛ ده د پښتو د ډېرو شاعرانـو پـه جواب کې غزلې ویلې دي او د پښتو اشعارو د مطالعې خاوند سړی و؛ د رحمان بابا د یوې غزلې په جواب کې د ویلې غزلې یو بیت یې دا دی:

کړی چې رحمان مومند سوال د دې غزل و — دا ښکلی غزل مې په جواب راسره یوور

(٤) انور شاه: انور شاه د یاد شوي قنبر علي خان، مرشـد و. د ده د زوکړې کال ۱۱٤۷هـ ق کال اټکل شـوی دی او تر ۱۲۰۷ هـ ق کال پـورې یې ژوند یقینـي دی. د مړینې دقیق تاریخ یې نه دی معلوم، خو ویل کېږي چې د تیرا پـه کلایـه کې مړ دی او هورې ښخ دی، دی د دیـوان خاونـد شاعر تېر شـوی دی، غزل یې شـور لري، دا یې د یوې غزلې مطلع:

باده راشه د شیرین یار له وطنه — عرض وکړه څه احوال یار له دیدنه

(٥) محتشم: د دوولسمې پېړۍ غزل ویونکی شاعر دی؛ د ده پـه بـاب ډېـر معلومات نه دي ترلاسه شوي. د غزل نمونه یې ترلاسه شوې ده، دومره ښکاري چې د غزل په ویلو کې یې روانه طبع درلوده؛ د ترلاسه شوې غزلې مقطع یې دا ده:

پاڅه وخت د صبحدم شه محتشمه — محبوبا خو ته بللې په چربانګي

(٦) فیض الله کاکړ: فیض الله کـاکړ د ملا بابړ اخونزاده زوی د ژوب له

کاکړانو څخه و. په احمد شاهي عصر کې يې کورنۍ کندهار ته راغله، دی د شاه زمان تر عصره ژوندی و. د پښتو غزل سرا شاعر و، د يوې ترلاسه شوې غزلې مقطع يې دا ده:

فيض الله پــه تــا مين يـم تـا ايستلی لـه وطن يـم
په ګوګل کې مې سور اور دی تا له مينې رابل کړی

**(۷) سرور شاه:** د ده حالات هم معلوم نه دي، د پښتو غزل مؤلف يې يو غزل موندلی دی، غزل يې رنګيني او جذابيت لري. د ده د غزلې مطلع دا ده:

چې مې نوش کړ له پياله د عشق له جامه
خبـــر نــه يمه هـرګـز لـــه صبح و شامه

**(۸) فاروق:** د دوولسمې پېړۍ غزل ويونکی شاعر دی. يوه رباعي او دوې غزلې يې د ورکې خزانې مؤلف ترلاسه کړي دې. په غزل کې يې شور او مستي شته او د پښتو قديم غزل کره وره لري. دا يې د يوې غزلې مطلع:

بيا مې زړه شه ستا په غم کې په موجونه اوښکې وينې ترې بهېږي په رودونه

**(۹) وفا محمد سواتي:** وفا محمد د ملا عبدالکريم اخونزاده سواتي زوی و. مشران يې له سوات نه پکهلۍ ته تللي وو؛ وفا محمد د ۱۱۰۰هـ ق شاوخوا شاعر معلومېږي، څينې غزلې يې پيدا شوې دي. د پښتو غزل مؤلف يې يوه غزله راوړې ده. غزله يې ساده او خوږه ده؛ د هماغې غزلې مطلع يې داده:

ګوره څه به له وفا محمده وکا رقيب کړې و دلبر ته غمازي ده

**(۱۰) محمد يار:** د پېښور د شاوخوا سيمو شاعر و، د يوولسمې هجري پېړۍ په وروستي دور کې تېر شوی دی؛ څينې غزلې يې په ورکه خزانه کې راغلې دي. غزل يې ساده او د مينې بيان لري، د يوې غزلې مقطع يې دا ده:

راشه کښېنه محمد ياره د خپل يار و مخ ته ګوره
د خپل يـارو مخ ته ګوره راشه کښېنه محمد ياره

**(۱۱) فيض طلب:** د پېښور د شاوخوا سيمو اوسېدونکی و، د دوولسمې پېړۍ شاعر ښکاري يو غزل يې ترلاسه شوی دی، په غزل کې يې رواني او ساده ګي ليدل کېږي. دا يې هم د ترلاسه شوې غزلې مقطع:

که په سيل د ګلزار زه فيض طلب ځم بې له دوسته که ځم ګرم دی زما روح

**(۱۲) نور محمد:** دا سړی د دوولسمې پېړۍ د اواخرو شاعر معلومېږي. د ملاکنډ د تانې کلي اوسېدونکی و. د پښتو غزل سرا شاعر و، څينې غزلې يې ليدل شوې دي. ده د بردې قصيده هم په پښتو نظم ترجمه کړې ده. غزل يې رواني او

ساده کې لري؛ د غزلې مقطع يې دا ده:

دا غزل په پښتو وايه نور محمده          که په دا سره دې زيات د ستړکو نم شي

**(۱۳) حميد:** دا شاعر د مشهور عبدالحميد مومند نه بيل شاعر دی، د پېښور په شاوخوا کې يې ژوند کړی دی. د دوولسمې پېړۍ د اواخرو او د ديارلسمې پېړۍ د اوايلو غزل ويونکی شاعر معلومېږي. د محمد بياض ګدا نه په ديوان کې يې يوه غزله راغلې ده، چې زه يې مقطع دلته راوړم:

زه حميد د خدای حمد و ثنا وايم          بل د يار صفت کوم په زبان ورو ورو

**(۱٤) محمد نور:** د ديوان خاوند شاعر و؛ د ده ځينې غزلې په پښتانه شعراء پنځم ټوک کې چاپ دي؛ د يوې غزلې له مطالعې يې ښکاري چې ده د پښتو د زاړه ادب مطالعه کړې وه او د پښتو د قديمو شاعرانو په تقليد يې غزلې ويلې دي، د يوې غزلې مطلع يې دا ده:

صبر، سکون راته عطا کړې زما ربه          ورك له ما نفس و هوا کړې زما ربه

**(۱۵) علي اکبر اورکزی:** د دوولسمې پېړۍ د دوهمې نيمايي د ديوان خاوند شاعر تېر شوی دی. د ده ديوان (ګلشن افغان) نومېږي، چې تراوسه نه دی چاپ شوی. د ده په ديوان کې غزلې، قصيدې، رباعي او نور شعري انواع شته دي د پارسي ژبې شاعر او ليکوال هم و. د ده پلار محمد قاسم خان اورکزی و؛ دی په تيرا کې زوکړی او هورې ځوان شوی و. ده په ځوانۍ کې سپه ګري ته مخه وکړه او د همدې کار په لړ کې کشمير او د هند نورو سيمو ته هم تللی دی. دی متصوف سړی او د نقشبنديه طريقې پيرو و.

د ده ځينې غزلې د رحمان بابا په پيروۍ ويلې شوې ښکاري، خو په عام ډول دی مور د رحمان بابا د سبك په پيروانو کې نه شو درولای، ځکه چې ده په خپلو قصايدو کې داسې واقعات بيان کړي دي، چې دا قصايد يې د خوشحال او هجري له قصايدو سره نژدېوالی لري. د ده ځينې غزلې هنري جذب او کشش هم لري.

**(۱٦) مسکين :** د ديوان لرونکی شاعر دی، د کندهار د سيمو معلومېږي د ژوند زمانه يې هم د ديارلسمې پېړۍ اواخر اټکل کېدای شي، د پښتو د قديمو شاعرانو په پيروۍ او تقليد يې غزلې ويلې دي. پر غزل يې عاشقانه رنګ غالب دی، د يوې غزلې مقطع يې دا ده:

ته که له مسکينه سره مل يې تر آخره          څه فايده که وکا سپی رقيب له غمازي

**(۱۷) احمد جان تاجر:** مولوي احمد جان تاجر د آزاد خان الکوزي

زوی و؛ د کندهار اوسېدونکی و؛ د زوکړې کال یې د ۱۲۶۰ هـ ق شاوخوا او د مړینې هغې یې د ۱۳۲۰ هـ ق شاوخوا اټکل کېږي. دی په کابل کې مړ دی. د پښتو او درې ژبو لیکوال او شاعر و؛ یوه خوږه او ابتکاري پښتو غزله یې پښتو تذکرو راوړې ده، چې مطلع یې دلته راوړم:

سپېدې مګر خیال د چولو لري
چې زړه تلاش د تېېدلو لري

**(۱۸) ملا خیر الله هوتک:** د ولي محمد زوی د کلات د ښه بولان اوسېدنکی و. د زوکړې کال یې ۱۲۱۳هـ ق راوړی او ژوند یې تر ۱۲۸۶ هـ ق کال پورې یقیني دی. دی د دیوان خاوند شاعر دی. دیوان یې تراسه نه دی چاپ شوی؛ په اشعارو یې د تصوف رنګ غالب دی. غزل یې شور او مستي نه لري د یوې غزلې یو بیت یې دا دی:

له ترکه دخودی مې دنیاز اوښکې بهېږي
د ګلو پر اوږو لکه شبنم سیر مهتاب را

**(۱۹) عیسی هوتک :** دکندهار د سیمو دیوان لرونکی شاعر دی. د زوکړې کال یې ۱۲۱۹هـ ق کال اټکل کېږي؛ ده خپل دیوان د دیارلسمې هجري پېړۍ په اواسطو کې بشپړ کړی دی. غزل یې هنري ښکلې او د عرفان مالکه هم لري. عیسی د خلیل بن احمد فراهیدي د عروضو پر مستخرج سیستم شاعري کړې ده، د یوې عروضي غزلې دوه بیته یې دا دي:

اې چې تل تل په ثنا حق د کمال ستا که صفات
څه به بلبل په چمن ستا د ثنا وایي نکات
تـول شکر لب د عرب هم د عجم واړه صنم
ستا و رخسار ته نمایان لکه آفتاب ته ذرات

**(۲۰) جانان هوتک:** د یار محمد زوی د هارون لمسی عمرزی هوتک و. په پښتو اشعارو کې یې فدوي او په پارسي شعر کې یې خامي تخلص کړی دی. دی د کلات په غوره مرغه کې اوسېده؛ د زوکړې کال یې ادبي مورخینو د ۱۲۲۵هـ ق شاوخوا ښوولی دی او تر ۱۳۰۹ هـ ق کال پورې ژوندی و. دی د پښتو او پارسي ژبو شاعر و. د پښتو او پارسي څلور دیوانه څنې پاته دي، د شعر ویلو تر څنګه دی عالم او متصوف سړی هم و؛ علمیت او عرفاني مشرب یې پر شعر اغېزې کړې دي، اشعار یې څینې بدیعي ښکلاوې لري، یو ښکلی بیت یې دا دی:

فقط ستا د تیغ د لبو تبسم یې خونبها ده
که پراته دي ستا په در کې د شاهي لایق سرونه

(۲۱) میرعالم: میر عالم خان د باجوړ اوسېدونکی و. څه وخت یې په دوابه کې هم تېر کړی دی. د ۱۲۵۰هـ ق شاوخوا ژوندی و او د باجوړ له مخورو څخه و. ده په پښتو غزل ویلی دی او یو پښتو مثنوي هم ځینې پاته دی؛ غزل یې خوند او رنګ دواړه لري. د یوې غزلې مقطع یې دا ده:

آفتاب یې شرمنده که د مهتاب د مخ له تابه
چقمق د سترګو یې پریوست میر عالم له زیروزوره

(۲۲) نادر: د دیارلسمې هجري پېړۍ غزلسرا شاعر یادېږي؛ د پښتو غزل مؤلف یې له نامه سره د یوسفزي نسبت هم لګولی دی؛ غزل یې سوز او ساز دواړه لري، د یوې غزلې مطلع یې دلته راوړل کېږي:

خماري سترګې راپورته کړه له نازه    خوبرویان د جهان ته کړه بې نیازه

(۲۳) شاه غریب: د میا حسیب ګل په بیاض کې یې شعرونه راغلي دي؛ د دیارلسمې پېړۍ د اواخرو غزل ویونکی شاعر دی.

(۲٤) سفید شاه خټك : د محراب شاه خټك زوی په ۱۲۵۷ هـ ق کال په اکوړې کې پیدا و. د خپل وخت لوی عالم او د پښتو شاعر و، ځینې ښکلې غزلې هم لري. سفید شاه په ۱۳۲۷ هـ ق کال مړ شوی دی؛ د یوې ښکلې غزلې دوه بیته یې دا دي:

اې دلبرې لب شکرې ماه جبینې
بیا د خیال جامې دې واغوستې رنګینې
د پتنګ غوندې دې زه په اور جلیا کړم
ترس دې هېڅ راباندې نه شي دل سنګینې

(۲۵) غلام محمد خټك: دا شاعر د پښتونخوا د جهانګیرۍ په سیمو کې اوسېده؛ په ۱۹۱۹ ع کال مړ دی، د اشعارو مجموعه یې د رموز خټك په نامه چاپ شوې ده. ده قصیدې او غزلې ویلې دي.

(۲٦) امکل جان خټك : دا شاعر د پښتونخوا د سیمو شاعر او د څورلسمې پېړۍ په لومړیو لسیزو کې ژوندی و. د شعر مجموعه یې د ګلشن امکل جان په نامه چاپ ده. دی هم یو غزلسرا شاعر دی.

(۲۷) روشن الدین خټك: ختکو په اکوره کې یې ژوند کړی دی. د ژوند زمانه یې د څورنسمې پېړۍ اوایل اټکل کېږي. د پښتو غزل سرا شاعر و؛ غزل

يې د قدماوو د غزل رنګ او خوند لري. په ګلزار روه کې يې ځينې غزلې چاپ شوې دي، د يوه غزل مطلع يې دا ده:

همېشه د يار له غمه په کوکار که چېرې نه شوم د وصال په نوبهار که

(۲۸) **محمد نصير:** دی هم د ديارلسمې هجري پېړۍ غزل سرا شاعر و ځينې غزلې يې په ګلزار روه کې چاپ شوې دي، د يوې غزلې مطلع يې دا ده:

چې مدام مې فريادونه کړه آغاز الوتلی مې طوفان دی په شهناز

(۲۹) **شير محمد:** د پښين د سيمو ديوان لرونکی شاعر و. په غزل کې يې د مينې سوز ليدل کېږي. د ژوند زمانه يې ديارلسمه هجري پېړۍ ښوول کېږي؛ ديوان يې تراوسه نه دی چاپ شوی، د يوې غزلې يو بيت يې دا دی:

الهي د حقيقت مسته پياله را دا رنګين شراب د عشق په ميخانه را

(۳۰) **حمدالله کاکړ:** دی هم غزلسرا شاعر تېر شوی دی؛ د جنوبي پښتونخوا (بلوچستان) د سيمو د پښين اوسېدونکی، د رساله د لريش په نامه د شعر مجموعه لري، چې شپږ سوه بيته ده، دا مجموعه نه ده چاپ شوې او په دې بيت پيل شوې ده:

منور په نور د ځان دی يار زما لمر ختلی پر جهان دی يار زما

(۳۱) **جان محمد کاکړ:** د دوولسمې پېړۍ د اواخرو او د ديارلسمې پېړۍ د اوايلو شاعر و. دی د ژوب د ګوسې د ناوې د شمامزو په کلي کې اوسېده. تر ۱۲۵۰هـ ق د مخه تېر دی. د اشعار ديوان يې پاتې دی، په ديوان کې يې غټه برخه د غزلو ده. غزلې يې زياتره ديني، اخلاقي رنګ لري؛ د وعظ او نصيحت خبرې هم پکې شته؛ پر ځينو غزلو يې د عرفان مالګه دوربدلې ده. د ده ديوان نه دی چاپ، دا يې د يوې غزلې يو بيت:

بې حسابه يم په مينه دخپل يار خوښ داسې شان به بلبل نه وي په ګلزار خوښ

(۳۲) **رحمت سدوزی:** په ديارلسمه پېړۍ کې يې د کندهار په سيمو کې ژوند کړی دی، غزل ويونکی شاعر و او د اشعارو د يو نيمګړی ديوان يادونه يې پښتو تذکرو کړې ده، غزل يې ادبي قوت لري، د يوې غزلې مطلع يې دا ده:

په طلب کې ستا د لبو د ياقوت شپه و ورځ دي د زړه وينې زما قوت

(۳۳) **عبدالحکيم سايل:** دا سړی هم د ديارلسمې پېړۍ د حدود لورتګين بيان شاعر يادېږي، متفرقه آثار يې ليدل شوي دي، په ادبي ستوري کې يې يوه خوندوره غزله راغلې، چې يو بيت يې دا دی:

بند دې په تحقیق کړم منت بار یم یاره ستا                هر چېرې چې اوسم طلب کار یم یاره ستا

**(۳٤) محمد رفیق:** محمد رفیق اکبر پوری د پښتو له کثیرالکلامو شاعرانو څخه دی. د پښتو غزل او مثنوي یوه درنه ذخیره مونږ د ده په آثارو کې پیدا کولی شو:

د ده دیوان د شمس الفلك په نامه شهرت لري او د پښتو د اسلامیه کالج په کتابخانه کې یې نسخه موجوده ده. ده د فردوسي شهنامه د دېرو نواب په غوښتنه پښتو کړې وه، چې د یوې برخې خطي متن یې د پېښور د پښتو اکاډیمی په کتابخانه کې شته.

رساله صفاتیه، شمع الهدایت، روضه النعیم، ارشاد الطالبین او شمس الهدایت د ده نور منظوم پښتو آثار دي.

د یوه روایت له مخې مولوی محمد رفیق په ۱۳۰۳هـ ق کال مړ شوی دی. د ده قلمي خدمت زمونږ په فرهنګي تاریخ کې خپل خاص ځای لري.

**(۳۵) سید لالاجي:** د سید پاچا زوی او د کندز اوسېدونکی و. په ۱۲۵۳هـ ق کال زېږېدلی او په ۱۳۲۰هـ ق کال مړ دی. په بخارا او هند کې ګرځېدلی دی. د پښتو او پارسي ژبو شاعر و، دیوان یې درلود؛ غزل یې د عشقي وارداتو بیان کوي، دا یې د یو غزل یو بیت:

بېلتانه مې زړه قلم کړ په خنجر                څکه وینې ترې بهېږي په در در

## د غزل دې بهیر ته یوه کتنه:

مونږ د همدې بحث په مقدمه کې ولوستل، چې پښتو غزل په پښتو کې کله پیدا شو او د پښتو ادبیاتو دتاریخ په لومړي پړاو کې یې څنګه پاینبت وموند. په دوهمه ادبی دوره کې غزل له نویو تمایلاتو سره څنګه ځان په روښاني آثارو کې څرګند کړ، په دغه دوهمه ادبی دوره کې مونږ ته له زرونه د زیاتو پښتو شاعرانو نومونه څرګند دي، دا به مبالغه نه وي که ووایو چې له دې زرو تنو څخه اتو سوو تنو په پښتو غزل ویلی دی. په دغو غزل ویونکو کې د ځینو بشپړ دیوانونه او د ځینو متفرقې غزلې تر مونږه رسېدلې دي، د دغو غزلسرایانو غزلې د بېلابېلو فکري او ادبي هنري جریانو تر اغېزې لاندې ایجاد شوې دي، لکه: د روښاني پېر غزل، د اخوند درویزه (رح) د پیروانو غزلیات، د هندي سبك تابع غزل، د هوتکو او احمد شاهي عصر پورې مربوط غزلیات.

په لورو ټولو یادو شویو جریانونو کې پښتو غزل د فکر او هنر له پلوه یو ډول انکشاف نه دی کړی، بلکه له لورو څورو سره مخ و. د مثال په ډول په روښاني آثارو کې ډېر محدود غزلیات د هنر مالکه لري، زیاتره غزل یې وچې او یوازې تبلیغي اهدافو ته وقف شوې دي. د درویزه (رح) په پیروانو کې غزل سره له دې چې

عرفاني او تبليغي اهداف هم لري، خو ورسره شعريت پکې د روښانيانو د زياترو غزلو په پرتله په اوچت معيار کې ځای لري.

د صوفيانه حلقو غزل د يوې داسې جذبې لاندې ويلې شوی ښکاري، چې خاصه روحاني جذبه او خاص کشش لري او پر لوستونکي او اورېدونکي اغېزه کوي.

د خوشحال په آثارو او د ده د پيروانو په آثارو کې غزل د موضوع له پلوه وسعت وموند؛ هر ډول مسايل پکې بيان شوي او هنري ښکنې يې هم د توجه ور دي. د رحمان بابا په ديوان او د ده د پيروانو په آثارو کې پښتو غزل د خپل انکشاف لوړو پوړيو ته وخوت او د هند سبك په پيروۍ ويل شوو غزلو کې پښتو غزل نوی هنري کړه وړه خپل کړل.

له دغو جريانونو سربېره موږ دوه دری سوه تنه نور غزل ويونکي شاعران هم پېژنو، چې آثار او نمونه يې د پښتو ادبياتو په دوهمه دوره کې د مطالعې ځای لري. له دغو غزل ويونکو څخه څو تنه ما په دې بحث کې د روپېژندل، نور يې ځينې په وروستيو بحثونو کې د دوی د نورو او متبارزو ادبي کارونو په اساس پېژندل کېږي او ځينې نور چې پاتېږي هغه به د پښتو ادبياتو په مفصل تاريخ کې د مطالعې موقع ومومي؛ ځکه که موږ پر ټولو دغو شاعرانو خبرې وکړو او يا يې حتی نمونه واخلو نو به خبره ډېره اوږده شي.

د پښتو د دغو متفرقو غزلو ويونکو په باب بايد ووايو، کوم پښتو غزليات چې دغو غزلسرايانو [illegible] کړي دي. د پښتو د ادبي تاريخ په کوم خاص ادبي جريان پورې اړه نه لري: د دغو خلکو په غزلو کې که هغه د دوولسمې پېړۍ دي او که د ديارلسمې او د څوارلسمې د اوايلو، ډېرې محدودې غزلې هنري او فکري ارزښتونه لري. زياتره غزلې هغه شور، مستي او کشش نه لري چې د پښتو غزل د يوولسمې پېړۍ د دوهمې نيمايي او د دوولسمې پېړۍ د خوشحال، رحمان او حميد په سبکونو پورې مربوطې غزلې يې لري.

په ديارلسمه پېړۍ کې د غزل پر ځای په پښتو ادبياتو کې داستان ته زياته توجه ليدل کېږي، په زياته د ديارسمې پېړۍ په دوهمه نيمايي کې زياتر شاعران د شرقي ادب ځينې داستانونه او حکايات [illegible] پښتو نظموي. دا کار په هند او پښتونخوا کې د چاپ د وسايلو په پرمختيا سره زيات بابيږي او په سلګونو داستانونه پښتو ته اوړي او د تاجرانو له خوا چاپېږي او خلکو ته وړاندې کېږي. د دې کار يو علت دا دی، چې عام خلك له داستاني آثارو سره زياته علاقه ښيي، نو ځکه تاجرانو به د دغسې آثارو له چاپ سره زياته مينه ښووله او شاعرانو هم [illegible] او ديواني ادبياتو پر ځای داستاني ادبياتوته توجه کوله.

*ښوونکي دې په ټولګي کې د پښتو غزل پر پرمختيايي سير يوه تبصره وکړي او شاګردان دې په پښتو د غزل د پرمختګ يا نه پر مختګ پر عواملو ويوهوي.*

((۱۱))

# د پښتو داستاني ادبياتو پرمختيايي مسير

د پښتو د ليکلو ادبياتو مطالعه را څرګندوي، چې د پښتو ادبياتو د ايجاد او ودې د لومړۍ دورې په وروستيو پړاوونو کې ځينې حکايتي آثار په پښتو ادبياتو کې رامنځ ته شول، لکه د غرغښت نامې حکايات او د سعدي د بوستان پښتو ترجمه او نور.

د پښتو د ادبي تاريخ ددوهمې دورې په لومړنيو پړاوونو کې هم موږ د پښتو حکايتي آثارو لومړنۍ بېلګې د ارزانې روښاني په آثارو کې ګورو، د ارزاني حکايت رسول يوه منظومه حکايه ده، چې د اسلام د ستر پېغمبر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د يوه خوب قصه يې پکې بيان کړې ده.

په يوولسم قرن کې اخوند احمد ديوسف عليه السلام قصه، د ابراهيم خليل الله قصه او ځينې نورې قصې په پښتونيم منظوم سبك وليکلې.

اما په اساسي ډول د پښتو په منظومو ادبياتو کې د رمانتيکو قصو نظمول د يوولسمې هجري پېړۍ په اواخرو کې پيل شول.

په ۱۰۹۰هـ ق کال سکندر خټك د ليلی ومجنون قصه په پښتو نظم کړه. عبدالقادر خان خټك د جامي يوسف زليخا پښتو کړه او بيا د خوشحال بل زوی صدر خان خټك د پښتودوه ملي عشقي داستانونه آدم درخانۍ او د لی شهو په پښتو نظم کې راوړل.

بيا د دوولسم قرن په جريان کې د پښتنو بل ملي رمان شها او ګلان بابو جان بابي په پښتو نظم کړ او مهين خليل په تذکره ابرار کې ډېر حکايات او قصې په پښتو واړولې.

په ديارلسم قرن کې ډېر حکايتي آثارپه پښتو ترجمه شول، لکه رحمت داوي د حکيم نظامي ګنجوي ليلی ومجنون په پښتو نظم ترجمه کړه.

د دغو لوړو يادو شويو حکايتي آثارو په خصوص کې د دې کتاب په د مخنيو برخوکې لنډې لنډې خبرې شوې دي. د دې بحث د پس منظر په توګه يې لوړې يادونې کافي بولم او اوس پر هغو پښتو حکايتي آثارو خبرې کوم چې په د مخنيو برخو کې يې يادونه نه ده شوې او ورسره په پښتو حکايتي آثارو کې د انکشاف مراتب

نیو:
د پښتو له قدیمو داستان ویونکو شاعرانو څخه یو تن حافظ نظام دی، ده دلیلی ومجنون داستان په ۱۱۰۰ هـ ق کال په پښتو نظم کړی دی؛ د حافظ د لیلی ومجنون قصه په ورکه خزانه کې چاپ شوې ده.

غلام محمد ګکیانی د شېر خان زوی چې ډېر زیات دیني آثار، لکه د والضحی د سوره تفیسر او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د معراج قصه یې په ۱۱۱۵ هـ ق په هندوستان کې منظومه ترجمه کړې ده او نور دیني رسایل هم لري چې ځینې یې قصې دي؛ خو د ده په آثارو کې یو بل داستاني اثر هم یاد شوی دی، چې ادبي ارزښت لري. دا اثر د سیف الملوك داستان دی. ده دغه داستاني اثر له پارسي څخه منظوم پښتو ترجمه کړی دی. د غلام محمد ګکیاني دسیف الملوك قصه تر اوسه نه ده چاپ شوې، خطي نسخه یې په برټش میوزیم کې خوندي ده.

د خوشحال خټك (۱۰۲۲ـ۱۱۰۰ هـ ق) معاصر بای خان بونیری د حضرت عبدالرحمن جامي رحمه الله د لیلی ومجنون قصه په پښتو ترجمه کړه. دا قصه تر اوسه نه ده چاپ شوې، یوه خطي نسخه یې د پېښور د پښتواکاډیمۍ په کتابخانه کې شته.

د مغلي اورنګزېب (۱۰۶۸ – ۱۱۱۸ هـ ق) معاصر مسعود د عبدالله زوی د سوات په پښتنو کې د تېرې شوې قصې د (آدم درخانۍ) متن په روان او خواږه پښتو نثر ولیکه.

د خوشحال خان د اولاد ونو معاصر فیاض مندړ د دوولسمې هجري پېړۍ په اوایلو کې د شهزاده بهرام او ګلندامې قصه په پښتو نظم کړه. د فیاض د شهزاده بهرام ګلندامې قصه پادري هیوز په کلید افغاني کې شامله کړې ده. د پېښور د پښتو اکیډیمۍ له خوا هم چاپ شوې ده او نور چاپونه یې هم شته.

د احمد شاهي عصر د ډېرو آثارو خاوند شاعر اخوند کبیر دی، چې د پېښور د تهکال اوسېدونکی و، ده په پښتو ډېر دیني آثار نظم کړي او له نورو ژبو څخه یې ترجمه هم کړې دي. د ده په منظومو ترجمه کړو او لیکلو آثارو کې ځینې حکایتي آثار هم شته، لکه دتمیم انصاري قصه او د غل او قاضي قصه. د ده د تمیم انصاري قصه په ۱۲۸۶ هـ ق په پېښور کې چاپ شوېده اود غل او قاضي د قصې خطي نسخه د پېښور پوهنتون په کتابخانه کې شته. له دې سربېره اخوندکبیر یوه طوطي نامه هم لري.

د احمد شاهي عصر (۱۱۶۰ـ۱۱۸۶ هـ ق) ناظم او شاعر محمد اعظم کودیزي د جلات خان محبوبا قصه په پښتو نظم کې راوړه، د تېمور شاه (۱۱۸۶ـ۱۲۰۷ هـ ق) دزمانې معاصر طالب رشید، چې د پکتیا د ځاځیو د اریوب دسیمو اوسېدلی شاعر دی، ده په ۱۱۹۴ هـ ق کال د ګل صنوبر قصه په پښتونظم کړه، دا قصه پخوا په ډېلي

کې او وروسته د پېښور پښتو اکاډیمۍ چاپ کړې ده.

د تېمور شاه د دوران بل شاعر شبر ګل دی. چې د سیف الملوك او بدرۍ جمالی قصه يې په پښتو نظم ليکلې ده.

ابراهیم سواتی د ۱۲۰۰هـ ق شاوخوا ژوندی شاعر دی. ده هم د سیف الملوك قصه او د زقوم جنګنامه په پښتو ليکلي دي. ولې محمد بل ناظم دی، چې ده هم د سیف الملوك قصه په پښتو نظم کړې ده.

امام الدين او رشيد د پښتو دوه نور ناظمان دي، چې دواړو د جمجمې قصه په پښتو نظم کې راوړې ده.

عبدالقدير مومند په ۱۲۷٤هـ ق کال د اماني خراساني يوسف زليخا په پښتو لنډه مثنوي را ژباړلې ده. دا مثنوي هم نه ده چاپ شوې، خطي نسخه يې د پېښور د پښتو اکاډيمۍ په کتابخانه کې شته.

صاحب شاه د باړې اوسېدونکی و، د شهزاده رت ويدم قصه يې په پښتو نظم اړولې ده، د ده د شهزاده رت ويدم قصه چاپ شوې ده.

اول خان د ديارلسمې پېړۍ په جريان کې د چارسدې په رځړوکې اوسېده، د نيمبولا قصه يې په پښتو نظم کړې ده؛ دا قصه چاپ شوې ده.

عبدالکريم د پښتونخوا د سيمو شاعر و؛ د محبوبا او جلات قصه يې په پښتو نظم کړې ده؛ د ده قصه هم څو ځله په هند او پاکستان کې چاپ شوې ده.

عبدالکريم مراني غزنوي د پښتو بل شاعر دی، چې د ورقه او ګلشاه قصه يې په پښتو نظم کړې ده؛ دی د ملا امام ګل زوی، په اماني عصر (۱۲۹۷ ـ ۱۳۰۷) کې يې د غزني په جامراد کې ژوند کاوه.

دلبر جان مومند د پېښور د بروسوريزو د کلي بزګر شاعر و. د سبزپري او زرد پري قصه يې د (ګلدسته دلبرى) په نامه په ۱۳٤۹هـ ق کال له پارسي څخه منظومه په پښتو ژباړلې ده.

انځر ګل د ديارلسمې پېړۍ په حدودو کې د پېښور شاوخوا ژوند کړی دی. ده د روشن بانو او اخترمنير قصه د ترانه محفل په نامه له اردو څخه منظومه په پښتو ژباړلې ده. د ترجمې کال يې ۱۸٤۷ع ښوول شوی دی. ترانه محفل نومې قصه چاپ شوې ده.

سعدالدين، د پښتو بل شاعر دی، چې ښايي د ديارلسمې پېړۍ په حدود کې يې ژوند کړی وي، ده د يوسف زليخا قصه ډېره خوږه ويلې ده، د ده قصه په بېدياني ګلونه نومې تذکره کې راغلې ده.

فضل ربي د اسرار ګل زوی و، د ۱۳۰۰ هـ ق شاوخوا په چارسده کې اوسېده، د شهزاده استنبول او شهزاده پارس منظومه پښتو قصه د ده ده. دا قصه په اوږده

مثنوي نظم شوې او په لاهور کې چاپ ده.

عبدالباقي نومي شاعر د ۱۳۰۰ هـ ق شاوخوا د دلي وشهی قصه په پښتو نظم کړې ده؛ دا قصه چاپ ده.

ارسلا د دیارلسمې پېړۍ داستان ویونکی شاعر دی، د سوات په خوازه خیلو کې اوسېده؛ د ۱۲۷۷ هـ ق شاوخوا مړ دی ده د فتح خان کندهاري قصه په پښتو نظم کړې ده، دا قصه په لاهور کې چاپ شوې ده.

مسافر مروت د پښتو بل شاعر دی، چې د دیارلسمې پېړۍ اواخر او د څورلسمې اوایل یې مونږ د هنري او ادبي فعالیت دوران بللای شو. ده د فتاحي نیشاپوري د حسن ودل قصه په پښتو ترجمه کړې ده. د مسافر مروت د حسن ودل قصه په ۱۳۶۱کال په کابل کې چاپ شوې ده. دی له دې قصې سربېره د شعر دیوان هم لري دیوان یې تر اوسه نه دی چاپ شوی.

په پښتو ژبه د حکایتي ترجمو په لړ کې مونږ د مثنوي معنوي د کامل متن له هغې ترجمې هم سترګې نه شو پټولای چې مولوي عبدالجبار بنګښ د اسرار العلوم په نامه ترجمه کړې ده. دا ترجمه هم نه ده چاپ شوې او خطي متن یې د پېښور د پښتو اکیډیمۍ په کتابخانه کې شته.

که څه هم د مثنوي معنوي، موضوعي او معنوي ارزښتونه تر حکایتي هغې ډېر لوړ دي، خو دا چې دا کتاب د حکایاتو په بڼه تهیه شوی دی، نو ځکه مونږ یې هم د حکایاتو او داستاني ادبیاتو په برخه کې دلی یادونه وکړه.

امانت مالیار بل قصه ویونکی شاعر دی، د دیارلسمې پېړۍ په اواخرو کې یې ژوند کړی و. دشهزاده دل افروز پښتو منظومه قصه د همدغه امانت مالیار ده. دی د پښتونخوا دمینې د کلي اوسېدونکی و.

رمضان د پېښور د سیمو اولسي او قصه ویونکی شاعر و. ده د شهزاده دلخورم قصه په پښتو نظم کړې ده، دا قصه هم چاپ ده.

عبدالغفار ملنګ د پښتو بل قصه ویونکی شاعر دی. ده د شهزاده ګلشن او بي بي هارون قصه په پښتو نظم کړې ده؛ دا قصه هم چاپ شوې ده. سلیمان شاه د مرغۍ او مروس قصه، نور الله یوسفزی د نظامي سکندر نامه په پښتو نظم ترجمه کړې ده او غازالدین د چهار درویش قصه په پښتو نظم راوړې ده.

اسحق نومي شاعر هم د پښتو د داستان ویونکو په ډله کې شامل دی؛ ده د شهزاده جهانګیر قصه په پښتو نظم کړې ده.

له دغو قصه ویونکو سربېره مونږ ځینې نور قصه ویونکي شاعران هم لرو، چې ادبي فعالیت یې ګرده داستان ویلو ته وقف کړی دی. له دې ډلې څخه مونږ دغه لاندې شاعران یادولای شو.

احمد خلیل: د پښتو دا شاعر د احمد ګل، احمد اخوند خیل، احمد پڅکي احمد تیراهي، احمد خلیل، احمد سفید ډېري په نومونو یاد شوی دی. دا کړده نومونه د همدغه یوه شاعر دي. د ده دزوکړې نېټه ۱۲۶۷هـ ق تخمین شوې ده تر ۱۳۰۵هـ ق پورې ژوندی و. دی په خټه خلیل او د پېښور دتوابعو د سفید ډېری اوسېدونکی و. په پڅکي تیراهي او نورو سیمو کې اوسېدلی دی. ده ډېر دیني کتابونه هم نظم کړي دي، خو داستاني آثار یې دا دي: د بدر منیر قصه، د ګل بکاولي قصه، د لیلی ومجنون قصه، قصص الانبیا، د جمجمی قصه، درت وېدم قصه، د طوطي او مینا قصه.

معین الدین: د پښتو دغه داستان ویونکی شاعر د څهار سدې په توابعو کې ژوند کاوه.دوامق وعذراقصه یې په ۱۲۵۶هـ ق کال نظم کړې ده. دا قصه تر اوسه نه ده چاپ شوې، خطي نسخه یې په بریتانیا کې محفوظه ده.

د همدې معین الدین بله قصه ورقه او ګلشاه ده. د ده د ورقه او ګلشاه قصه هم نه ده چاپ شوې، خطي نسخه یې د پېښور د پښتو اکاډیمی په کتابخانه کې شته. معین الدین له دغو داستاني آثارو پرته شعري آثار هم لري.

قدرت علي هزاروي: د پښتو دغه قصه پرداز شاعر د هزاره ضلعې په ټکرۍ کې اوسېده؛ ژوند یې تر ۱۳۶۰هـ ق کال پورې یقیني دی. دی د مشکل کشاي طالبان په نامه د منظومو او منثورو آثارو دوې مجموعې لري. په دې دوو مجموعو کې د ده دوې قصې هم شته، یوه درت وېدم قصه ده او بله د فتح خان قندهاري.

چراغ دین: قصه ویونکی شاعر دی، د ۱۳۲۰ هـ ق په شاوخوا کې د پېښور په دواوه کې اوسېده. ده ځینې مذهبي او روایتي قصې په پښتو نظم کړې دي. ده خپلې قصې زیاتره له پارسي څخه منظومې په پښتو را ژباړلې دي، د ده په قصو کې: قصۀ شمشاد، قصۀ دختر قاضي، کرامت حسنین، قصۀ فقیر بغداد، ګلدستۀ حیدري او اله دین چراغ مور ته معلومې دي. دا قصې ټولې چاپ دي.

امان ګوجراتي: د پښتو دا قصه ویونکی شاعر د پښتونخوا د ګوجرات په سیمو کې اوسېده؛ د ژوند زمانه یې د څورلسمې هجري پېړۍ حدود ټاکل کېږي. د ده په منظومو قصو کې: ګل وصنوبر، شهزاده بهرام و ګلندام او افسانۀ غم آور معلومې دي. دغه قصې ده له اردو او پارسي څخه پښتو ترجمه کړې دي.

سید ابو علی شاه: د پښتو له مشهورو قصه ویونکو شاعرانو څخه دی،پلار یې سید امیر الدین نومېده؛ په ۱۸۳۳ع کال د شبقدر په توابعو کې زوکړی او په ۱۹۰۳هـ ق کال مړ شوی دی. د ده ډېر دیني آثار او د شعر دیوان هم شته، خو هغه آثار یې چې حکایتي ارزښت لري دا دي: قصۀ جابر انصاري، قصۀ مرغابي، قصۀ بختیار، قصۀ میر حاتم، آدم درخانی، قصۀ دل افروز، جنګنامه حنیفه، جنګنامه شیر علی او نور... د ده

نول حکایتي آثار چاپ شوي دي.

ملا احمد جان: د پښتونخوا د سیمو د مردان اوسېدونکی و. ژوند یې تر ۱۳۳۲هـ ق کال پورې یقیني دی، دی هم د پښتو له پخواو زبردستو داستان لیکونکو څخه دی. د ده داستانونه د پښتنو تر منځ ډېر لوستونکي لري. د ده په حکایتي آثارو کې: شهزاده ممتاز، ورقه وګلشاه، شهزاده بهرام ګور، شهزاده شیرویه، یوسف زلیخا شهزاده فلك ناز،سکندر نامه، طوطي نامه او نور شامل دي. د ده ګرده داستاني آثار په وارو وارو چاپ شوي او اوس د چاپ زمینې لري.

ملانعمت الله: د پښتو نومیالی داستان ویونکی شاعر ملا نعمت الله د عطاء الله اخونزاده محمد زی زوی دپښتونخوا په نوښار کې اوسېده، په ۱۲۷۵هـ ق کال زوکړي و، د ۱۹۲۹ع کال د ستمبر په ۲۰مه نېټه مړ شو او په نوښار کې خاورو ته وسپارل شو. د ده په ترجمه کړو او لیکلو داستاني آثارو کې دغه لاندې کتابونه موږ ته معلوم دي.: موسی خان ګلمکی، ظریف خان د سوات، فتح خان قندهاري، لیلی ومجنون، شیرین وفرهاد، سوهنی مهنیوال، ګل وصنوبر، شهزاده بهرام ګور، طوطي نامه، قصه خجسته بانو، چهار درویش، حاتم طایي، مکر زنان، نیمبولاو تیمبولا، شهزاده رعنا و زیبا، هشت بهشت او قصص الانبیا. ده د رستم و سهراب داستان د فردوسي له شهنامې او همدارنګه د شاهنامې ځینې نور داستانونه په پښتو ترجمه کړي دي. دی له دغو داستاني آثارو سربېره نور ډېر دیني او طبي او معلوماتي منظوم او منثور آثار هم لري. خو د دې په نهایت کې یو قصه ویونکی شاعر دی.

له دغو قصه ویونکو سربېره په پښتو کې ځینې نور قصه ویونکي شاعران هم شته، چې تفصیل یې خبر اوږدوي او دا بحث دهمدې شاعرانو په یادونه بسوو او د دې بحث نتیجه ګیري داسې وړاندې کوو:

د دې بحث له لوستونو څخه موږ ته معلومه شوه، چې که په پښتو کې لومړني داستاني آثار د لسمې هجري پېړۍ په جریان کې رامنځ ته شوي دي، نو د یوولسمې او دوولسمې پېړۍ او هم د دیارلسمې هجري پېړۍ په لومړي نیمایي کې متفرق حکایتي آثار نور هم په پښتو کې راداخل او له نورو ژبو څخه ترجمه شول، په پښتو کې د داستان لیکنې (دلته مراد معاصر داستاني ژانرونه نه دي) د اوج مرحله د دیارلسمې پېړۍ له دوهمې نیمایي څخه شروع کېږي، د پرمختیا او ترقی دا مرحله د څورلسمې پېړۍ تر نیمایي پورې دوام کوي او په کابو دغو سلو کلونو کې په لسګونو داستاني آثار په پښتو نظم ولیکل شول او یا هم له پارسي او هندي ژبو څخه په پښتو را وژباړل شول، د هند په نیمه وچه کې دچاپ د صنعت پرمختیا د دغو داستاني آثارو د رشد له مسالې سره کافي مرسته کړې ده.

د پښتو کوم منظوم داستاني آثار چې موږ لیدلي دي، په هغو کې یوه کافي

برخه زمونږ د ملي داستانونو ده. زمونږ ځینو شاعرانو په پښتنی جامعه کې دځپلو ملي قصو خواره روایات په پښتو نظم اړولي دي، لکه د آدم خان درخانۍ، دلی شهو، شها او ګلان، ظریف خان سواتي، فتح خان رابیا، موسی خان ګلمکۍ، قطب خان نازو، مرغۍ مروس، مومن خان شیرینو او نور... د دغو یادو شویو داستانونو ځوځو وار یانته موږ لرو، دا په دې معنی چې د آدم درخانۍ، دلی او شهو او نورې قصې د دوو دریو شاعرانو له خوا نظم شوې دي.

له دغو ملي قصو سربېره نورې کومې منظومې قصې چې موږ لرو، هغه په بېلابېلو فرهنګونو پورې اړه لري، لکه: دهندیانو، عربو، ایرانیانو، چینایانو او نورو. دا قصې د ترجمو له لیارې پښتو ته راغلې دي او ددغو قصو په وسیله پښتانه د یادو شویو ولسونو د فرهنګونو له ځینو اړخونو سره اشنا شوي دي.

د پښتو د دغه منظومو داستاني آثارو ناظمان او شاعران پرته له دغو منظومو داستانونو څخه غزلې، ولسي بدلې، چاربیتې او نور شعري آثار هم لري، خو د داستانونو ادبي ارزښت یې پر نورو هغو ډېر او لوړدی.

دغه داستاني آثار زیاتره، حتی ټول د مثنوي په شعري قالبونو کې نظم شوي دي، ځینې په اوږده مثنوي او ځینې په لنډه مثنوي نظم شوي دي.دغو داستانونو په پښتو کې دمثنوي د شعري ژانر له ودې سره ډېره مرسته کړې ده.

په دغو داستان ویونکو کې ځینې د استادۍ درجه لري، لکه ملا نعمت الله او ملااحمدجان د دوی مهارت دا دی چې د داستان ترپیل دمخه د داستان لپاره خورا ښکلی ادبي تمهید ږدي او بیا قصه شروع کوي.

د پښتو د کابوګردو داستاني آثارو ژبه پسته، خوږه او نظمونه یې روان دي. پر لوستونکو او اورېدونکي یې تاثیر مثبت پرېوزي، د ځینو دغو داستاني آثارو شعر سست او بې مزې هم دی خو اکثر په شعري او هنري لحاظ ښه معیار لري.

د پښتو په دغو منظومو قصو کې چې کومې له نورو ژبو ترجمه شوې دي، زیاترو شاعرانو خپل اصلي ماخذ نه دی ښوولی، دومره یې ویلي دي چې له پارسي یا اردو څخه یې پښتو کړه. دا کار د پښتو د ادبي څېړونکو لپاره څه ستونزې ایجادوي.

# د پښتو رزمي او حماسي ادبياتو دايجاد نوي شرايط

هسې خو په پښتو کې د مقاومت د ادبياتو د ايجاد تاريخ لرغوني دى او د چنګېز او د ده د بقاياوو په وړاندې چې د افغانستان خلکو کوم مقاومت کړى دى، دغو جګړه ييزو کارنامو هم په پښتو شعر کې انعکاس موندلى دى.

دغه راز په هوتکي او احمدشاهي دورانونو کې هم ځينې رزمي او حماسي آثار ايجاد شوي دي چې پر خپل ځاى موږ خبرې پرې باندې وکړې. اما په ديارلسم قرن کې زموږ په هېواد کې د ځينو نوو شرايطو په ايجاد سره ځينو نورو حماسي او رزمي ادبياتو ته د ايجاد زمينې برابرې شوې، چې په دې برخه کې به موږ لږ بحث پروکړو.

د تيمور شاه تر سلطنت وروسته چې پاچهي د ده زامنو ته ورسېده، د دغو شهزادګانو د بې اتفاقيو او د دوى د جاه طلبيو او قدرت غوښتنې له امله په ملک کې پخواني استقرار له خطر سره مخ شو او د واحد او پياوړي لوى افغانستان په بېلابېلو برخو کې د بېلابېلو شهزادګانو حکمرانيو په خلکو ژوند تريخ کړى و او کله چې د سدوزيو او بارکزيو سردارانو تر منځ روابط خړ پړ شول، نو دغو نويو شخړو د افغانستان د خلکو بد بختيو ته ببوځي ووهل. د هېواد واحده اداره تر سوال لاندې واقع شوه. مرکزي حکومت ضعيف او له زياتو پرابلمونو سره مخامخ و. د افغانستان هغه وختنيو ګاونډيو خارجي يرغلګرو ته دا زمينه مساعدوله چې د افغانستان پر پيکر تجاوز وکړي.

په دغه تجاوز کې د افغانستان شرقي او غربي ګاونډيان شامل وو. د شرق له خوا د سکهانو ناتار او د غرب له خوا پر هرات د پارس د حکومت چپاو او د هرات محاصره داسې پېښې دي،چې د همدې ديارلسم قرن په جريان کې پېښې شوې دي.

دسکهانو او غربي ګاونډيانو له تجاوزه سره سره د همدې قدرت طلبيو په کير و دار کې د ۱۸۳۹ع (۱۲۵٤ هـ ق) شاوخوا انګريزانو پر افغانستان حمله وکړه، د خلکو له زبردست مقاومت سره مخامخ شول، که څه هم د افغانستان ځينې مهم ښارونه يې

اشغال کړل. خو له شرمناکې ماتې وروسته د ډېرو تاوانونو له منلو سره بېرته ووتل. دوهم ځل بې بیا په (۱۸۷۸ع - ۱۲۹۵هـ ق) کال پر افغانستان حمله وکړه.داخل بیا په ماته زمور له هبواده لاړل، کله چې امیر عبدالرحمن خان په هېواد کې پاچا شو. ده د موجوده افغانستان سرحدات حفظ کړل او یو استقرار په هېواد کې ټینګ شو خو له انګریز سره زمور معامله لاپاته وه. تر هغه چې په ۱۹۱۹ع کال د اعلیحضرت غازي امان الله تر قیادت لاندې د جنرال محمد نادرخان په تدبر د افغانستان د خلکو په اراده زمور ولس خپله خپلواکي له انګریزه ترلاسه کړه.

له دې سربېره د امیر عبدالرحمن په زمانه کې د روسانو ځاري لښکرو په ۱۳۰۲ هـ ق - ۱۸۸۵ع پر پنجده حمله وکړه. سره له دې چې افغاني قوماندان جنرال غوث الدین خان په مېړانه دفاع وکړه،خو پنجده روسانو ونیوله.

دغه پېښې چې ما یې لنډ فهرست دمخه وړاندې کړ زمور پر خلکواو شاعرانو اغېزمنې وې او دغو واقعاتو ګردو په پښتو ادبیاتو کې انعکاس موندلی دی او د پښتو ځینې حماسي او رزمي ادبیات د همدغو واقعاتو په ارتباط ایجاد شوي دي، چې زه به دغه ادبي آثار لاندې وښیم:

## (۱) مستقل حماسي آثار:

هغه مستقل حماسي آثار چې ددغو پېښو په ارتباط ایجاد شوي دي. په هغو کې تقریبا قدیم اثر دصاحب دین خټک فیروز نامه ده، دا اثر د فیروز خان خټک او رنجیت سنګ د جګړو بیانونه لري.

د دې حماسې ناظم سیني خټک او د کوهاټ د ګنبت اوسېدونکی و. دده نظم کړې فیروز نامه تراوسه نه ده چاپ شوې. یوه خطي نسخه یې چې په ۱۲۹۲ خطاطي شوې د مرحوم استاد کامل مومند په کتابخانه کې وه؛ د دې حماسې د بیان شیوه په لاندې دوو دریو بیتونو کې داده:

| | |
|---|---|
| دا کور بحر دی لـه خاره | ترې ګوهر خېژي ابداره |
| هـر ګوهـر یې ناب تاب | تابنده دی تــــر آفتاب |
| که د هر ګوهر صفت کړم | بویه صرف څه مدت کړم |
| لــږ صفت بـه یې ووایـم | لــه خرواره موټی نمایـم |

بله ځانګړې حماسه د پښتنې شاعرې سپینې ده. سپینه د نور محمد خان الکوزي لور وه او د هرات په شاوخوا کې اوسېدله. کله چې په ۱۲۵۵ هـ ق کال د پارس د دولت لښکرو هرات محاصره کړ او زمور هراتیانو افغانانو له خپلې سیمې په مېړانه دفاع وکړه. د دې دفاع واقعات سپینې په خپله حماسه کې بیان کړي دي؛ د دې حماسې د پیل او د یوه حکایت یو دوه بیته دادي:

د حماسي پيل:

لومړی څښتن د تول عالم ستایمه　　بیا محمد رسول اکرم ستایمه

د بوه حکایت دوه بیته :

راشه چې تـاتـه حکایت کومه　　د سـدوزو د سلطنت کومه

پخوا تردې وو د هرات پاچهان　　د سدوزو ذوالفقار، زمان خان

د دې دوران بل حماسي اثر د ملا فیض محمد اخونزاده روضة المجاهدین دی، چې د دیني ارشاداتو په رڼا کې یې د جهاد مسایل پکې بیان کړي دي. دا اثر اخونزاده صاحب په ۱۲۹۳ هـ ق بشپړ کړی دی.

فیض محمد اخونزاده د مولوي مغل خان زوی د مولوی یارګل لمسی او د مولوي اختر کړوسی و په ۱۲۵۰ هـ ق کال زیږیدلی او په ۱۳۱۹ هـ ق مړ شوی دی. دی د لوګر په موسهي کې اوسېده، دی لـه روضـة المجاهـدین سربېره د ذخیره السعادت او معدن الجواهر په نامه نور کتابونه هم لري د خطبو کتاب یې چاپ شوی دی؛ د پارسي او پښتو شعرونو څانګړی دیوان یې هم شته. د ده د روضه المجاهدین څو بیتونه دا دي:

په لښکر کې چې افسر وي　　می باید چې دلاور وي

شجاعت لـــري کرار وي　　په صفونو کې جدار وي

هم عـــاقل او مدبر وي　　نبه دینـــداره مذکر وي

له روضه المجاهدین چې ورتېر شو، بل حماسي اثر چې موږ ته معلوم دی، هغه د افغانستان د تاریخ د فولادي شخصیت امیر عبدالرحمن (۱۳۱۹هـ ق) شاهنامه ده، چې احمد ګل د للمې نظم کړې ده. دللمې احمد ګل د سمن ګل زوی د پښتو او پارسي ژبو شاعر و؛ تر دې شهنامې سربېره ده د نیمبولاقصه او د کوتوال قصه هم نظم کړې دي او دا دواړه قصې یې په هند کې چاپ شوې دي. دیـوان او دغه شاهنامه یې نه دي چاپ. ده د مثنوي معنوي ځینې حکایات هم په پښتو ترجمه کړي دي.

د دې پېر بل حماسي اثر چې موږ ته معلوم دی، هغه د مغل خان جنګنامه ده، چې دلاور طالب عمر خیل نظم کړې ده، دا حماسه د افغان انګلیس په دوهم جنګ کې د مغل خان او انګریز د جنګونو بیانونه لري؛ د دې حماسي دوه بیته دا دي:

روایت که په دا شان راویان د دین　　چې لښکر د اسلام کل په دیـن کـې سپین

راحـــاضر پـــه نغـــاره شه د نواب　　نواب ډېـر کـاوه پـه دوی باندې شتاب

دلاور طالب له دې حماسي اثره سربېره متفرق شعرونه هم لري او د عنایت الله کنبوه بهار دانش یې هم په پښتو ترجمه کړی دی.

## (۲) د چاربیتو برخه:

د دیارلسمې پېړۍ په جریان کې چې د افغانستان پر خاوره د هرچا له خوا تجاوزونه شوي دي د دغو تجاوزونو او بیا له متجاوزینو سره د افغانانو د مبرزې مقابلې رویدادونو او جریانونو کردو چاربیتو ته لاره پیدا کړې ده؛ په سلګونو چاربیتې په دغو واقعاتو پورې ویلې شوې دي.

د افغان ـ انګلیس د لومړي جنګ ډېرې چاربیتې اوس زموږ په واک کې نشته یوازې د دیوان خاوند شاعر احمد کلاچي په دیوان کې او هم د کونډې مروت تر لاسه شوو اشعارو کې د دې جنګ په باب چاربیتې زموږ په واک کې دي. د افغان ـ انګلیس د دوهمې جګړې ډېرې چاربیتې ثبت شوې دي؛ دغه راز د دریمې جګړې او هم د پښتونخوا په سیمو کې د انګریزانو او ځینو سیمو د خلکو د جنګونو پورې مربوطې پېښې ګردې په دې چاربیتو کې بیان شوې دي.

دغه راز د سکهانو د بریدونو اوله دوی‌سره په مقابلې پورې ویلې شوې چاربیتې هم شته او عزیز خان رښاخیل هراتي افغان د پښتو شاعر د هرات د محاصرې په خصوص کې سندرې لري. هغه چاربیتیان چې رزمي چاربیتي یې ویلې دي، دا دي: نوره دین، ملا مقصود، پایاب، نورشالی، سعدالله، دلیل، عبدالغني، جمال الدین، فضل احمد، عبدالمجید، سید عباس، عبدالرحیم، حافظ عظیم، رحمدین، خان شاه، عزیز، ملا مومن او نورو په لسګونو اولسي شاعرانو دغسې رزمي چاربیتې ویلې دي؛ د دغسې یوې رزمي چاربیتي سر دا دی:

پـوځـونه راغلــه د انګـرېز عالمه — واړه ګورکیان سکهان سرتیز عالمه

اخلي تیرا اوس ملك پرې تنګ دی — خلکـه اسلام د کفـر جنګ دی

دغه راز په پنجده کې د جنرال غوث الدین او روسانو په جنګونو پورې هم چاربیتې ویلې شوې دي، چې یوه په کې د زاهد خان ابراهیم زي د هرات د شاوخوا سیمو د پښتون شاعر ده. زاهد خان ددغه جنګ واقعات په یوه چاربیته کې بیان کړي دي چې سر یې دا دی:

جنګ دی په پنجده غوث الدین خان ویل لښکر ته

فـوځـو نـه بـاندې راغلـه پښتنو کښېنئ سنګر ته

## (۳) د مروتو کسرونه:

د پښتو د ولسي شعر یو ډول کسرونه دي، چې د کټه واز د سیمو په ځینو شاعرانو ګنډه پوړو او مروتو پښتنو کې دغه شعري ډول رواج لري.

**د مروتو په کسرونو کې عشقي او دیني، اخلاقي موضوعات هم بیان شوي دي، خو په دغو کسرونو کې زیاتره د مروتو د قبیلې خپل منځې جګړو او هم د مروتو او**

خټکو او د مروتو او وزیرو، مروتو او نیازیو او هم له نورو قبیلو سره د مروتو د جنګونو د واقعاتو بیان ته وقف شوي دي. د افغان ـ انګریز د جنګونو په ارتباط ویل شوي کسرونه هم شته.

له دغو کسرونو څخه د دې پښتني قبیلې د اجتماعي روابطو او تاریخ په روښانولو کې ډېر ښه نکات ترلاسه کېږي، هغو شاعرانو چې کسرونه ویلي او نومونه یې موږ ته معلوم دي، دا دي: جرس، دوران، میرهوس، دینک، سلطان، میخان، حسینا، عطایي، کونډی، لاجمیر، نور محمد او نور...

د پښتو له دغو حماسي او رزمي ادبي آثارو څخه د افغانانو د سیاسي او ملي مبارزو د تاریخ لپاره ډېر د کار او لومړي لاس مواد ترلاسه کېږي او موږ کولای شو له دغو حماسي او رزمي آثارو څخه د خپلو خلکو د ملي، سیاسي او اجتماعي تاریخ په لیکلو کې د اساسي اسنادو په توګه کار واخلو.

په دغو رزمي او حماسي ادبیاتو کې ځینې هنري معیار هم لري، خو د زیاترو هدف د واقعاتو د راوړو او بیان ته وقف شوی دی، نو ځکه هنري خوا یې لږ څه ضعیفه ده.

# د پښتو د ولسي شعر هنداره

کله چې د پښتو شعر تاریخ مطالعه کېږي، نو موږ په دغو شعرونو کې دوې شعري عنعنې ګورو. یوه د پښتو د خپلو ملي شعرونو او اوزانو عنعنه ده او بله هم د شرقي شاعرۍ عنعنه.

د شرقي شاعرۍ د عنعنې په تعقیب چې د پښتو شاعرانو د زرو کالونو په جریان کې کوم شعري ژانرونه خپل کړي دي، په هغو کې قصیده، غزل، قطعه، رباعي، مثنوي، مخمس، مسدس، مسبع، مثمن، معشر، ترکیب بند، ترجیع بند او نور شعري انواع شامل دي او د پښتو آثارو یوه عمده ذخیره په همدغو کالبونو کې خوندي ده. چې په دغو سندرو کې چاربیتې، بدلې، لوبې، بګتۍ، کسرونه، مقامونه او اولسي منظوم داستانونه شامل دي. دغو شعري ژانرونو د پښتو له هغو لرغونو سندرو څخه انکشاف موندلی دی چې په لومړیو اسلامي پېړیو کې، پښتنو شاعرانو پکې شاعري کوله.

د پښتو د شفاهي ادبیاتو ځینې سندرې، لکه: لنډۍ، سروکي، د ښادۍ بدلې، د اتڼ سندرې، نارې، چغیان، ساندې او نورې دغسې سندرې عام خاصیت لري. دا په دې معنی چې ویونکي یې نه دي معلوم او د تاریخ په بېلابېلو پوړیو کې ایجاد شوې او خورې شوې او له منځه تللې دي. داډول سندرې اوس هم په کلیو او بانډو کې د ایجاد زمینې لري، مګر زموږ ولسي سندرې، لکه: چاربیتې، بدلې او نور لکه لنډیو او نورو غوندې عامې او په ټول ولس پورې اړه نه لري، بلکه دا خاصې سندرې دي، چې ځینو مشخصو کسانو ویلې دي. د هرې سندرې ویونکی او وخت معلوم دی، نو ځکه دا سندرې د هغو له ویونکو سره د ادب د تاریخ په بېلابېلو پوړیو کې د مطالعې ځای لري.

د تاسف ځای دی، چې دغه چاربیتې، بدلې، بګتۍ، لوبې، کسرونه او مقامونه زیاتره د پښتو د ولسي شاعرانو له خوا ویل شوي دي او دا سندرې هم ډېرې نه دي لیکل شوې او لکه د پښتو د عامو شفاهي سندرو غوندې له منځه تللې دي، ډېرې لږ نمونې یې چې په ځینو تذکرو او یا ځینو جونګونو کې ثبت شوې دي، پر هغو موږ د

پښتو د ادبي تاریخ د لومړۍ دورې او دوهمې دورې په بېلابېلو پړاوونو کې خبرې وکړې، خو موږ ګورو، چې د دیارلسمې پېړۍ په دوهمه نیمایي او د څورلسمې پېړۍ په اوایلو کې ځینو مستشرقینو، لکه جیمزډارمستتر فرانسوي ) د ۱۸۴۹ ـ ۱۸۹۴) د پښتونخوا د شعر په هاربهار کې او د ځینو پښتو خواخوږو، لکه سید عمر په (ګلشن اشعار افغاني) کې د دغو سندرو ډېرې نمونې ثبت کړې او د ډېرو ولسي شاعرانو نومونه او آثار یې له نابودۍ څخه ژغورلي دي. د څورلسمې پېړۍ په جریان کې چې په افغانستان او پښتونخوا کې ځینې علمي، ادبي ټولنې جوړې شوې، نو یې د پښتو شعر دې ولسي ذخیرې ته هم جدي توجه وکړه، له کلیو او باندو یې د دغو شاعرانو سندرې او احوال راټول کړل؛ د مقالو په ترځ کې یې په مطبوعاتو کې نشر کړل. که اوس موږ د پښتو معاصرې لیکل شوې ادبي تذکرې وګورو په سلو کې تر څو پښتو ژبات داسې شاعران پکې معرفي شوي دي، چې په ولسي آهنګونو کې یې شاعري کړې ده، لکه د پښتانه شعراء پنځه سره ټوکونه، د ادبي ستوري دواړه ټوکه، د خیبر ادب، تیر هیر شاعران، بیدیاني ګلونه، د سردرو توتیان، د هشنغر ادب، د کسي ګلان، د کاروان ملګري او نور... دغه ډول د دغو شاعرانو متفرق اشعار د سندرغاړو او نورو ذوقیانو له خولو ثبت شول او د دغو اشعارو مجموعې ځینې جوړې شوې، لکه د پښتني سندرې دوهم ټوك، د غرو څوکې او د ولسي سندرې درې واړه ټوکه او نور.

د دغو تذکرو او مجموعو له پاڼو موږ د پښتو د ډېرو ولسي شاعرانو له نومونو او آثارو سره اشنا کېږو. دغه شاعران د دوولسمې پېړۍ د اواخرو، د دیارلسمې پېړۍ او د څورلسمې پېړۍ دي.

په دغو شاعرانو کې چې کوم شاعران او آثار د پښتو ادبي تاریخ په دوهمه دوره کې د مطالعې ځای لري دا دي: خواجه رزق الله د چپلیار، میا عبدالکریم د لغمان د الیشنګ ، میا صاحب ډیري، شیخ احمد خان د لغمان د ده زیارت، آدم د کندهار د ریګ، آزاد خان ساپی د تګاو، احمد ځدراڼ د پکتیا، احمد جان وردګ، احمد ګل د ټکري، احمد نور آهنګر د لغمان، احمد دین طالب د هشتنغر، ارسلا د میدان د زیولات، اعظم د لغمان، اعظم الدین د کامې، الو لالا د پښین، الهداد پوپلزی، امام د لغمان، قاضي اموجان ترین د بوري، امیر د کلابټ، امیر پوپلزی، حاجي بازار کاکړ، بنګي د لغمان، بهايي جان دغونډان، بیګ محمد د لغمان، پاچا اخوند، پاچا ګل، پاینده ګل، پیر غلام مروت، پیره ګل سبري، عبدالعزیز فراهي، تورسم خان د دوه سرو توکل او سید کمال د ننیوې، توره باز شینواري، ټاټ د مقر، جان خان منګل، رابیا خروټی د کهواز، جمال الدین د بنو، میرا اپریدي، خسرو اپریدي، نور صاحب روغانیوال، جمین مقبل، حلیم بابا د تیري اورزګان، حمید ګل د پلوسې، حمید ګل مقبل، عبدالحنان طالب، عبدالحنان داعي د لغمان، ډاکي د کونړ، سید مهربان،

ډيراني د خوشكنبد، ذهين رسول خان خټك، حافظ عظيم ګنهه پور، ملا عبدالعزيز زوري، سرورخان مروت، سلطان ساپي د كونړ، سيد كرم اخون د هشتنغر، صاحب ګل د پړانګو چارسدي، صفدرجان يوسفزي، ميا جزيل كاكاخيل، طوطي جان، كمال بابا د كندهار د درويشانو، سليم زمينداوري، رحمدين او ظريف خان د لغمان عبدالرحمن زميندآور، علاوالدين د لغمان، اشرف د لغمان، د كجوري ملا د لغمان، علم ګل د چپليار، سوكيه، بيربل سنك، سورج كشن چند، منګارام، لدهارام د پښتونخوا بلوچستان او افغانستان د سيمو هغه هندوان سكهان دي، چې په پښتو يې ولسي سندرې ويلې دي. طالب حضرت امان، عبدالكريم يوسفزي، ناز عمر خيل، كريمداد، اصالت د شمالي او مركزي هندوستان ځينې ولسي شاعران دي چې د پښتو په ولسي اوزانو يې شاعري كړې ده ما دلته يوازې څو شاعران ياد كړل. كه نه وې د سلكونو اولسي شاعرانو اشعار موږ ته معلوم دي.

د پښتو د كليوالي ژوند ټول كړه وړه د دغو ولسي شاعرانو اشعارو ته لاره پيدا كوي؛ د كليوالو غوښتنې، اجتماعي روابط، دودونه او نور په دغو اولسي اشعارو كې بيانيږي.

په دغو سندرو كې عشق او مينه هم بيان شوې ده، خو د ډېرو ساده انځورونو په قالب كې په خورا طبيعي ډول او د كليوالي ژوند له شرايطو او غوښتنو سره سم، د سيد مهربان د يوې چاربيتې دا سر د ليدو دی:

سپينه ده جـــلی سپين يـې په غاړه هيكلونـه دي

سپين يې اننكي سپينه يې خوله سپين يې غابښونه دي

د دين او ديني ارزښتونو په رڼا كې ځينې اخلاقي مسايل هم دغو شاعرانو، په مقامونو كې بيان كړي دي.

همدارنګه د پښتو ملي داستانونه، لكه آدم درخو، دلی شهو، مومن خان شيرينو، فتح خان رابيا، موسی خان ګلمكی، قطب خان نازو، ظريف خان سواتي، طالب جان ګل بشره، جمال خان او زيب النسا او هم له نورو اولسونو څخه راغلې قصې، لكه: نيمبولا، سيف الملوك، شهزاده بهرام او نورې روايتي ديني قصې زياترو دغو شاعرانو د اوردو چاربيتو او داستانونو په قالب كې په نظم راوړې دي، د يوه ولسي داستان پيل يې داسې دی:

| | |
|---|---|
| • ننـ‌ـهې وليد عجيبه نوی داستان | كلمات به درتـــه واړه كړم بيان |
| ديمن يـــو شهزاده و زمـا ياره | يوه ورځې ښكار ته وواته له ښاره |
| ښكار ته لاړو په ځنګل او بيابان | يـو غرڅه يې پـه نظر شو ناګهان |

كليوالي دودونه، د غم ښادی مسايل ټول په دغو سندرو كې له كليوالي غوښتنو سره سم بيان شوي دي.

د کليو او سيمو او شاعرانو نومونه، تاريخي واقعات، طبيعي پېښې، سيلابونه او نورهم په دغو سندرو کې راغلي دي.

د دغو کليوالي سندرو يوه عمده برخه د هغو شاعرانو ده، چې په مذهبي لحاظ شيعه دي. دا خلك د کورمې او شاوخوا سيمو کې اوسېدلي دي. د پښتو په ولسي آهنګونو يې شعرونه ويلي دي او په دغو شعرونو کې يې د کربلا واقعات په خورا سوزناك ډول بيان کړي دي. دا شاعران توري، ملي خيل يو نيم بنګښ او ورکزي هم دي.

دغو په ولسي آهنګونو کې ويلو شوو سندرو ته د هماغې سيمې خلك نوحې او سوزخواني وايي.دغه سندرې د محرم الحرام د مياشتې په لومړيو لسو ورځو کې په امام باړو او تکيه خانو کې له يوې خاصې غاړې سره ويل کېږي. هغه نوحه ويونکي شاعران چې پښتو نوحې يې ويلې دي، دا دي: آدم خان، نادرعلي، خداى نظر، مير شاه رضا، سيد ګلون، غلام نبي، احمد شاه، عباس غلام، اسمعيل خان، سيد حسين، سيد شاه اوليا او نور. له دې نوحو څخه د يوې نوحې سر دا دى:

تمامه شپه به دې زنګويه زنګومه — زويه ودې سومه
که شم روانه تا به ځانه سره وړمه — زويه ودې سومه

د پښتو دغه ډول ولسي سندرو ويونکو اکثر سندرې نه دي ټولې شوې. د هر ولسي شاعر څو محدودې سندرې په ځينو مجموعو او د شاعرانو په تذکرو کې خوندي دي يوازې د حافظ عظيم ګنډه پور ولسي شعرونه، د عبدالحنان داعي ولسي شعرونه، د محمد نور ولسي شعرونه، د خسرو اپريدي ولسي شعرونه د ځانګړو مجموعو په ډول راټول شوي دي.

په دغو سندرو کې د هنر تومنه خو شته، مګر په ابتدايي بڼه پکې ځلېږي. د دغسې سندرو د هنري انځورونو يوه نمونه د لاندې سندرې په سر او يو بند کې د کتلو ده:

سور ټيك دې په جبين باندې شغلې کا قلندرې — په شان لکه د لمـر
راوزې لــه دربـاره چاســره نـه کړې خبرې — په وخـت د مازيګـر

* * *

سور ټيك دې په جبين باندې شغلې کابې حسابه — وطن کې لور پـه لور
طــاقت د زړه مې نـه شي زه وتلې يـم د خوابه — ستې شـومـه په اور
سپين مخ دې نــازنيني رابنکــاره کــه له نقابه — خبر دې نه شي ورور
د ګل پــه شان غــوړېږم چې دې ووينم دلبرې — پــه دې وکــه باور

# په پښتو ادبياتو کې د مقامي سندرو دوران

د ديارلسمې پېړۍ په دوران کې که له يوې خوا پښتو غزل خپل پخواني کره وړه له لاسه ورکړه او له ځينو استثنايي مواردو پرته د دې پېړۍ زياترو غزلو هغه پخوانۍ مستي او شور نه درلود. د غزل پر ځای داستاني ژانر د مثنوي په کالب کې خپل موقف تثبيت کړ او پښتو داستاني ادبياتو خورا وده ومونده.

دهمدې ديارلسمې پېړۍ په اواخرو او د څورلسمې پېړۍ په اوايلو کې پښتو غزل په يوه بله بڼه تبارز وکړ او هغه دا چې دهندي موسيقي له راګونو سره په توافق کې پښتو غزل رامنځ ته شو او دهندي موسيقي له څېو سره يې د پښتونخوا په سيمو کې وده ومونده. دا ډول غزل د پښتو شعر څېړونکيو مقامي سندرې بللې دي، دا سندرې د دغو لاندې راګونو مطابق ويلې شوي دي: بهوپيالي، پهاړي، شام ګليان، رت ګليان، اساوري، پيلو، مالکوس، تلنک، بنګله، بيرومي، کستوري، سارنګ، پروټو ملتاني او نور...

د پښتو دا ډول غزلې د موسيقي له څېو سره دپښتو په سيمو کې بابېدلې او د خانانو نو ابانو په دربارونو کې به ويلې کېدې. دا ډول موسيقي او سندرې د پښتو د ولسي موسيقي په مقابل کې د يوه نوي جريان را منځته کېدل وو، چې اغبز يې په ولسي او کليوالي موسيقي باندې بې بدله نه و.

هغو شاعرانو چې د هندي موسيقي د مقامونو په پيروۍ يې غزلې ويلې دي، په هغو کې ملك نوروز، آزاد، سعادت، معلم عبدالعزيز، عبدالرحمن، دريشا، داراشاه خدابخش، اسلم شاه، ميرزا محمد، سيد محمد، سيد ميسر، شاه پسند، سيد احمد، محمد دين، حسين شاه، غلام جان او نور په لسګونو شاعران ... په دغو شاعرانو کې نوروز او سعادت د دغسې مقامي غزلو کوچني ديوانونه لري چې په ځانګړي ډول په لاهور کې چاپ شوي دي.

د معلم عبدالعزيز د مقامي غزلو مجموعه د فراق پردانه په نامه چاپ شوې او د عبدالرحمن مجموعه د نوبهار دل افروز په نامه چاپ شوې ده.

د مقامي غزلو مجموعې، دبهار ګلشن، جشن نوروزي، بهار نوروزي، چمن فيروزي او ګلزار پښتو په نامه په وار وار چاپ شوې دي.

د مقامي سندرو په ويونکو کې ځينو يوه نيمه په ولسي آهنګونو برابره سندره هم جوړه کړې ده، مګر د دوی د دغو سندرو ادبي هنري ارزښت پر هغو ولسي سندرو زيات دی، نو ځکه دوی د ولسي شاعرانو په کتار کې نه درېږي، بلکه د مقامي غزلو ويونکي دي. د دې مقامي سندرو يوه نمونه د نوروز له ديوانه دلته را اخلو:

| | |
|---|---|
| چېچې مې په زړه ځي د غم داسې داسې | ژوندون مې کړ تنګ ستاستم داسې داسې |
| نه مجنون شه پاتې نه فرهاد وشيرين | فنا شو په عشق کې عالم داسې داسې |

سېلاب مې د اوښکو همېش څې په مخ
بهېږي لــه ستـرګو مې نم داسې داسې
ملنګ ستــا د دریــم اې مـاه جبینې
کرېږم مـدام خـورم قسم داسې داسې
غمـاز مې پربباسي د غم په خندق کې
زه غــوارم مـدد وکـرم داسې داسې
نــوروزه مشال د عمل خــانته بل کـړه
شته څای دخطر په تور تم داسې داسې

دغه ډول مقامي سندرې په پښتونخوا کې د نارینه وو تر څنګه ښځو هم ویلې دي او څینې ښځې شاعرانې لرو، چې مقامي سندرې ترې پاتې دي، لکه: زیبو، قدري، باجوړۍ، آفتاب پري، وابجان، شموجان، پیاري او نورې... د دغو ښځو له مقامي غزلو څخه د باجوړۍ غزله دا ده:

مــه کــوه وورکیـه هومره ظلم بې نیـازي
دا ظلـم ستـم بـه چېـرې ستـا نـه شـي روزي
ستغی سپورې زه چې ستا د خـولې اورم خبـرې
نن دې کــه سبا دي اجـل بـه ماکورتـه بـوزي
تن زما عاجزې شه دعشق په اور کبــاب یــاره
خـدای دپاره راشـه یـــو خـل وکړه دلســوزي
خدایږو چې له تاسره به خپل خــان قلندر کړمه
وابه چـوم خــاورې پــه سر بانـدې دمـوزي
ته چې درقیب په خوا کې کښېنې په خندا شې
غشـي د هجـران مـې لـه دې خـوږ خاطـر وزي
چـاري دتقدیـر شوې باجوړۍ وته راپېښې نن
چــرتـه بــاجــوړ وپښــورو اپــوزي

دمقامي سندرو (غزلو) د ویلو رواج یوازې په پښتونخوا پورې محدود پاتې نه شو، بلکه کندهار ته یې هم سرایت وکړ او د کندهار ډېرو شاعرانو د خپلو ولسي بدلو تر څنګه د هندي موسیقي د دغو مقامونو نه پیروي وکړه. ددغو مقامي سندرو ویل حتی تر معاصرې دورې پورې هم رواج درلود؛ د کندهار ډېرو معاصرانو شاعرانو په دې طرز غزلې ویلې دي.

د کندهار په سیمو کې د دې طرز له اوسنیو پیروانو سره په دې څای کې رمونږ کار نشته، خو هغه د مخې شاعران چې غزلې یې په دې وزنونو او آهنګونو برابرې دي، دا دي:

ملا عبدالسلام کرزی، ملا رحمت الله،حکیم محمد عیسی، ملا عبدالمنان. مولوي عیشي، خدایرحم اکاخېل، ملا میران، کمال بابا،حلیم بابا، سید عبدالحمید. عبدالله نورزي، بل عبدالله او حتی د پښتو او پښتنو د لوی محسن علامه عبدالحی کاکړ

(۱۲۸۹ـ ۱۳٦٤ هـ ق) ځینې غزلې هم د همدې مقامونو له اوزانو سره برابرې دي. د علامه عبدالعلي د شعر یوه وړه مجموعه د شاخ ګل په نامه په کوټه کې چاپ شوې ده. د ده ښکلې غزلې خاص شور او مستي لري، د ده هره غزله یوه ښکلې نغمه ده، دا یې هم د یوې ښکلې غزل مطلع:

ژړه ښه ګرځم په دربار کې د خوبانو　　نه یې کړم ګلګونه په شراب دسرو لبانو

د کندهار د سیمو د شاعرانو د دغه ډول غزلو درې مجموعې جوړې شوې دي، یوه ګلزار محبوبان، بله بهار جانان چې دا دواړې د مرحوم مولوي عبدالله عیشي په همت او خط چاپ شوې دي. دریمه مجموعه د ګلزار سید احمد ده، دا مجموعه مرحوم سید احمد ښزار ټوله کړې او د کندهار د تاجرانو له خوا چاپ شوې ده. د کندهار د سیمو د دې جریان تابع شاعرانو کې ماځینې په ولسي شاعرانو کې هم راوستل دوی که ولسي شاعران هم وي، د دې مقامي غزلو په پیروي یې هم غزلې ویلې دي.

دا مقامي سندرې زیاتره د ساز او سرود دمحافلو او د موسیقي د بنداړونو له پاره جوړېدې، نو ځکه دا سندرې ګرده او حسي زیاترې یې عشقي صبغه لري، ځینې اخلاقي او کله کله اجتماعي نکات هم د ځینو عشقي سندرو په ترڅ کې بیان شوې دي.

دا ډول سندرې د هنري پلوه ښېرته پاتې نه دي، د کلیوالي او ولسي هنري معیارونو په پرتله د دې سندرو هنري معیارونه څه پرمختللي او تر ولسي سندرو یې انځورونه او هنري انداز هم د مخه ښکاري. داهم له دې ډول سندرو څخه د محمد دین تیلي یوه سندره:

ګـل دې په زلفو باندې قطار دی توبه　　دواړه زلفان دې محبوبا ګل د انار دی توبه
پـروت یم بېهوشـه د عشق له جوشه　　چې شي مین هغه په سر کلـه حصار دی توبه
نــن دې آئیـن مـخ ته نیولی　　• شینکي خالونه دی په مخ وهلي چار دی توبه
چمـن دې جـوړ کـړ د ګل دپاره　　پکې بلبلې سره طوطیان ګډ په چغار دي توبه
خدای چـې پیدا کـړ زموږ رسول　　ښایسته سې مخ یې ګلاب یاران یې چار دي توبه

فضل تــه وکــړی بــه محمد دین
واړه غموسه د بیي په سر امبار دي توبه

# په پښتو کې د نوي معاصر نثر د پيدا کېدو زمينې

د پښتو د ادبي تاريخ په دوهمه دوره کې موږ د بېلابېلو جريانونو د مطالعې به ترڅ کې ځينې منثور آثار ياد کړل. دغه نثرونه دخپلو جوړښتونو او موضوعي خصوصياتو له پلوه بېلابېل انواع لري.

په دوهمه ادبي دوره کې د پښتو د بېلابېلو نثرونو تر څنګه د همدې دوهمې دورې په وروستيو پړاوونوکې د پښتو نثر ليکنې په جريان کې ځينې داسې تمايلات پيدا شول چې پښتو نثر ليکنه يې اصلاح کړله. پخواني روشونه يې پرېښوول او د نثر ليکلو نوې او پرمختللې لارې يې خپلولې.

دپښتو په دغو لومړنيو ساده نثرونو کې الفاظ پرېولي او ښکلي انتخاب شوي دي، په نثر کې رواني او ساده ګي ليدل کېږي.

نثر ليکونکو کليوالي اصطلاحات او محاورې په خپلو نثرونو کې استعمال کړي دي او نثر ليکونکو زيار ايستلی دی، چې خپل نثرونه دخپلو خلکو له وينګ او خبرو سره برابر وليکي.

په عام ډول د لومړنيو وختونو روانو نثرونو په حکايتي ژانرو کې خپل ځای څرګند کړی دی. زما د مطالعې له مخې دمولوي نور محمد نوري افغاني ليکلي واړه حکايتونه د دې لړۍ دنثر ليکنې په لومړنيو تجربو کې شمارل کېږي.

نوموړی مولوي نور محمد نوري افغان د غنچه روه په وروستيو برخو کې د اولسو په شاوخوا کې ډېر واړه واړه حکايات په خوږه او پسته ژبه ليکلي دي.دغه حکايات چې موضوعات يې د ولس په فوکلور پورې اړه لري، نور محمد نوري دخپلو خلکو له محاورې سره سم او دپښتو دکندهارۍ لهجې مطابق ليکلی دی. مولوي نور محمد افغان غنچه روه په ۱۲۸۰ هـ ق کال بشپړ کړی دی. نو دا نثرونه هم د همدغه مهال دي.

د پښتونثر د دغه اصلاحي جريان بل سر لاری د هشنغر د تنګي مولوي احمد (۱۲٦۱ ـ ۱۳۰۰ هـ ق) دی. ده په نظم ونثر ډېر آثار ليکلي او يا هم ترجمه کړي دي. د ده نثرونه د پښتو نثر ليکنې د دغه اصلاحي جريان بشپړوونکي اود پښتو هنري نثر ليکنې لپاره د اساس ارزښت لري.

د ده په منثورو آثارو کې يوه د آدم درخانۍ کيسه ده، چې په خواږه او روان

آثارو د شکلي او جوړښتي او موضوعي او فکري خصوصیا تو له مخې تاکل کېږي،نه د
کلونو او تاریخي سنو او پېښو په اساس.

په دوهمې ادبي دورې پورې مربوط ادبي آثار کابو د څلورو سوو کالو په ترځ
کې ایجاد شوي او رشد یې موندلی دی.

په دې دوره کې پښتو ادبیاتو هم دکمیت او هم د کیفیت له پلوه تر دې حده
وده موندلې ده، چې دمنطقې دځینو ژبوله ادبي آثارو او ادبیاتو سره سیالي کولای
شي. په دې دوره کې پښتو ځینې داسې آثار هم پیدا کړي دي، چې د شرقي آثارو د
شهکارونو په لړ کې د درېدو حق لري او د نړیوال فرهنګ په عمده آثارو کې د
حسابېدو وړ دي، لکه د خوشحال بابا دستار نامه او نور...

په دې دوره کې پښتو ادبیات د منطقې له ادبیاتو او ادبي جریانو سره په ارتباط
کې پاتې شوي دي. دپارسي، عربي او هندي ژبو ځینې ډېر مهم ادبي آثار په همدې
دوره کې پښتو ته ترجمه شول. دغه راز په همدې دوره کې د ځینو پښتو آثارو ترجمو
ته هم زمینه مساعده شوه.

دپښتو شاعرۍ د دوو عنعنو (ولسي او دیواني) ټول شعري ژانرونه په دې دوره کې
پښتو ادبیاتو خپل کړل او د موضوع او فکر په لحاظ یې دومره پراختیا او پرمختیا
وموندله، چې د لومړنۍ دورې د آثارو په پرتله په مراتبو د انکشاف او رشد څرکونه په
لاس راکوي په دې دوره کې په پښتو کې په سلګونو دیوانونه حکایتي آثار او نور
ولیکل شول او یا ترجمه شول چې د دې ژبې ادبي او فرهنګي پانګه یې ډېره بډایه
او شتمنه کړه.

د دویمې ادبي دورې په وروستیو پړاوونو کې د پښتو نثر د اصلاح، سمون او له
عامې محاورې سره د نږدېوالي لپاره دځینو لیکوالو له خوا هڅې پیل شوي او دې
ډلې په خپلو ترجمو او تالیفونو کې د نثر لیکلو داسې لاره ونیوله، چې له پخوانۍ نثر
لیکنې بېله او پرمختللې وه. دوی په حکایتي ژانر کې د نثر یو داسې ډول وپاله چې
د هنري تابه خواته یې ځان نږدې کاوه او په معاصر دوران کې یې د هنري نثر د
ودې او پرمختیا لپاره زمینې برابرې کړې.

دمولوي احمد، نور محمدنوري افغان، میر احمد شاه رضواني او نورو نثرونه وو،
چې د آینده نثر لیکونکیو لپاره یې د لارې دمشال حیثیت پیدا کړ.

دویمې ادبي دورې له خپلو ټولولورو او څورو سره د شلمې پېړۍ په لومړیو
لسیزو کې خپله لمن راونغښتله او د نوي زمان له نویو شرایطو سره یې یوې نوې
پرمختللې ادبي دورې ته خپل ځای پرېښود او دریمه یا معاصره ادبي دوره له غربي
او شرقي ادبیاتو سره په اړیکه کې پیل شوه.

